# د مجاهدينو

# خپلمنځي

# جګړې

د حکمتيار او مسعود تر منځ ستونزې او جګړې، د ډاکټر نجيب الله او احمدشـــاه مســـعود وژنه، د کابل جګړې، خلقيان له حکمتيار او پرچميان له مسـعود سره، د شـورای نظار او روسـانو ترمنځ تړون، د شـمال ټلوالې او امريکايانو ملګرتيا، د حکمتيار صـدارت او د اسـتاد رباني حکومت، د طالبانو پيدايښـت او کابل نيول او ډېر نور مسـايل



انجنير نظرمحمد مطمئن



# د مجاهدينو
# خپلمنځي
# جګړې

لیکوال: **نظرمحمد مطمئن**

خپرندوی: **د سبا فکر ټولنه**

د کتاب خپرېدل: **د ثور ۸مه ۱۴۰۱ - ۲۸ اپریل ۲۰۲۲**

چاپچاري: **د سبا فکر ټولنه**

**یادونه**: همدا کتاب د اووم څپرکي په ګډون د زمری میاشت ۱۳۹۹ - اګسټ میاشت ۲۰۲۰ کې بشپړ شوی و، د امنیتي ستونزو له کبله یې چاپ ستونزمن و، د امریکا/ناټو پوځیانو بشپړ وتلو او د طالبانو لخوا د کابل تر نیولو وروسته اتم، نهم او لسم څپرکی هم په ډیر لنډون سره پکې زیات شول.

کابل - افغانستان

nazarmutmaeen@gmail.com

| لیک لړ | مخګڼه |
|---|---|

## سریزه

**بسم الله الرحمن الرحیم**

د الله ﷻ ډیر زیات حمد او ثناء وایم، د الله ﷻ پر نازولي پیغمبر محمد ﷺ باندي درودونه وایم چې د یو بل مهم تاریخي کتاب لیکلو وس یې هم زما په برخه کړ.

له ډیرې مودې راهیسې مې په همدې کتاب لیکلو کار وکړ، غوښتل مې په وخت سره یې لوستونکو ته وړاندي کړم. د جهادي مشرانو له ځینو پېژندل شوو څېرو سره مې مرکې وکړي، د ډاکټر نجیب الله د وخت پخواني پرچمیان مې پیدا کړل، د هغوی نظریات مې را واخیستل او ډیره لټه مې وکړه تر څو د عیني شاهدانو له خولې د مهمو پېښو اړوند واورم.

د ځینو کتابونو څخه مې مهم ټکي په اختصار سره را واخیستل او هڅه مې وکړه چې د انجنیر احمدشاه مسعود له ورور احمدولي مسعود او یا هم احمدضیا مسعود سره مرکه وکړم، خپله ټوله هڅه مې وکړه، ولي ونه توانېدم او جنرال عتیق الله امرخیل هم کلکه ژمنه وکړه چې د احمد ضیا مسعود سره به د ناستې زمینه برابره او د کتاب محتویاتو اړوند به یې مرکې ته چمتو کړي، ولي بیا هم موږ ونه توانېدلو.

داچې د مجاهدینو تر منځ ولي جګړې پیل شوې، لاملونه یې څه وو، د انجنیر حکمتیار [1] او انجنیر احمدشاه مسعود تر منځ ولي اختلافات ژور شول، د حکمتیار او

---

[1] انجنیر ګلبدین حکمتیار: د اسلامي نهضت له مخکښانو او لومړیو مشرانو څخه دی، د سردار داوود خان د حکومت پر مهال پېښور ته ولاړ، د حکومت ضد هڅې یې پیل کړي، د حزب اسلامي ګوند مشر و، له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال دده ګوند تر ټولو ستر او قوي و، له روسانو او افغان کمونستانو سره یې سختې جګړې وکړي، خپله حکمتیار هم د جګړې کرښو ته کله ناکله تلی.

له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال، د حزب اسلامي مجاهدینو د جمعیت اسلامي او حرکت انقلاب اسلامي له مجاهدینو سره جګړې کولې.

استاد برهان الدین رباني تر منځ د نظر کوم اختلاف وو چې د حزب او جمعیت + شورای نظار تر منځ خبره جګړو ته ورسېدله، د همدې کورنۍ جګړې د لاملونو پېداکولو اړوند مې د بېلابېلو پخوانیو مجاهدینو نظریات را ټول کړي.

دلته دا موضوع هم څېړل شوې، چې ولې خلقیان له حکمتیار او پرچمیان له مسعود سره یوځای شول او د کابل د جګړو پر مهال یادې ډلې د همدوي تر څنګ ولې ودریدلې.

د حکمتیار د صدارت په دوره کې کومې ستونزې وې چې هغه ونه شوای کولای په کابل کې پاتې شي او انجنیر مسعود په رښتیا هم د واک انحصار غوښت، همدغه مسایل او د دوی ترمنځ د سولې او جوړې هڅې هم په کتاب کې را نغښتل شوې.

د طالبانو د پیدایښت اړوند بېلابېل نظرونه شتون لري، همدارنګه څه ډول طالبان

---

د مجاهدینو د لومړي لنډمهاله حکومت (۱۹ جون ۱۹۸۸) پر مهال چې راولپنډۍ کې جوړ شو، د حکمتیار د ګوند برخه د بهرنیو چارو وزارت و، قاضي نجي الله یې یادې دندې ته معرفي کړ.

کله چې د ډاکټر نجیب الله حکومت ړنګ شو، احمدشاه مسعود کابل ته ننوت او حکمتیار ونه شوای کولای چې د کابل ډیرې سیمې تر واک لاندې راولي، په چهار اسیاب کې یې مرکزیت جوړ او له مسعود سره یې سختې او ډیرې درنې جګړې وشوې.

د حکمتیار وسلوالو له طالبانو سره په کندهار، غزني، میدان ښار او چهار اسیاب کې لږ او ماتې خوړونکي جګړې وکړې.

حکمتیار د استاد رباني له حکومت سره د ماهیپر تړون (جون ۱۹۹٦) وکړ، کابل ته د لومړي وزیر په توګه ننوت. کله چې طالبانو کابل ونیو، حکمتیار مزار شریف ته ولاړ او له هغه ځایه ایران ته.

کله چې امریکا پر افغانستان برید وکړ، حکمتیار یې په ضد جهاد اعلان کړ، تر مئ ۲۰۱۴، حکمتیار پټ او بیا یې د ډاکټر غني له حکومت سره سوله وکړه، د مئ پر ۴مه ۲۰۱۴، کابل ته راغی. حکمتیار د ۲۰۱۹ ولسمشرۍ ټاکنو لپاره نوماند و، مګر کمې رایې یې تر لاسه کړې.

وتوانېدل چې کابل ونیسي، په داسي حال کې چې حکمتیار په څلورو کلونو کې ونه شوای کولای له مسعود څخه کابل ونیسي، همدا مسایل په تفصیل سره څېړل شوي.

د ډاکټر نجیب الله د مرگ اړوند ډول ډول راپورونه په رسنیو کې ورکول کیږي، په دي اړه ډیرې لیکنې شوې، چې ډاکټر نجیب الله چا او ولې یې وواژه، همدا موضوع هم په مناسب تفصیل دلته راوړل شوي.

همدا رنگه د احمدشاه مسعود د وژلو اړوند، چې هغه له عربو سره د جهاد پر وخت او یا هم د کورنۍ جگړې پر مهال ستونزې درلودلې او ولې د عربو له خوا په نښه او له منځه یوړل شو.

د کتاب په پای کې د شمال ټلوالې او امریکا یو له بل سره مرستې او انډیوالي او د حامد کرزي او ډاکټر غني د حکومتونو پر مهال په حکومت کې د شمال ټلوالې ونډې ته ځغلند نظر شوی.

کله چې د ملي امنیت له خوا زنداني (٣١ جولای – ۴اکتوبر ٢٠١٧) شوم، زما یوه هیله دا وه چې همدا کتاب بشپړ او لوستونکو ته وړاندي کړم، ولې امنیتي شرایطو ته په کتلو، همدا کتاب لا زیات وځنډیدی.

د دې کتاب لیکلو او چاپ څخه مې موخه داده چې د کورنۍ جگړې لاملونه راتلونکي نسل ته ور په گوته شي، چې په کورنۍ جگړو کې کومې ډلې او هغوی څه وکړل، چې بالاخره موږ د ډاکټر نجیب الله د حکومت تر سقوط وروسته ٢٨ نور کلونه (١٣٧١ تر ١٣٩٩ل. کال) هم په جگړو کې ولي پاتې شوو؟



تصویر: افغان مهاجر د ډیورنډ کرښې ها خوا اوړي



ستنګر توغندی چې جیټ الوتکه په نښه کوي

## د مجاهدينو اوه ګونې تنظيمونه - پېښور

۱۳٦۰ ل کال کې څلور ګوندونه (جمعيت اسلامي، حزب اسلامي، اسلامي حزب او اتحاد اسلامي) يا څلورګونی اتحاد يو لور ته او درې ګوندونه (حرکت انقلاب اسلامی، محاذ ملی اسلامی، نجات ملی اسلامی) يا درې ګونی اتحاد بل لورته وو، څلور ګوني اتحاد کې يې سخت دريځه رهبران او مجاهدين وو[۲].

۱۳۵۴ ل کال په دوبی کې پنجشير، لغمان، ارګون، کنړ او د بدخشان کشم کې حکومت ضد حملې وشوې. له همدې جګړو وروسته د ولسمشر داود خان له خوا د اسلامي نهضت مشر غلام محمد نيازی بندي شو او بيا وروسته د جوزا ۹مه ۱۳۵۸ کې د افغانستان د خلق ډيموکراټيک جمهوريت مشر او د انقلابي شورا د رئيس نور محمد تره کي [۳]له خوا له ځينو نورو مسلمانو مبارزينو سره يو ځای د پلچرخې زندان کې اعدام کړل شول.

"په ۱۳۵۴ کال کې نږدې ۳۰۰ تنه د نهضت جوانان اسلامي بنديان وو، په مولوي حبيب الرحمن، دکتور محمد عمر، خواجه محفوظ منصور د اعدام حکم وشو.

---

[۲] حزب اسلامي افغانستان (حکمتيار)، جمعيت اسلامي افغانستان (استاد برهان الدين رباني)، اتحاد اسلامي افغانستان (استاد عبد رب الرسول سياف)، اسلامي حزب (مولوي خالص بابا)، حرکت انقلاب اسلامي افغانستان (مولوي محمد نبي محمدي)، محاذ ملي افغانستان (پير سيد احمد ګيلاني) او نجات ملي افغانستان (پروفيسور صبغت الله مجددي).

[۳]نور محمد ترکی د خلقيانو رهبر او مشر و، خلقيانو د ثور ۷مه ۱۳۷۵، د سردار داوود خان پر ضد کودتاه وکړه، داوود خان يې له کورنۍ سره په ارګ کې وواژه او ترکی د انقلابي شورا مشر او د خلق ډيموکراټيک جمهوريت ولسشمر اعلان (۳۰ اپريل ۱۹۷۸ تر ۱۴ سپټمبر ۱۹۷۹) شو. د خلقي حفيظ الله امين له خوا ووژل شو، واک امين په لاس کې واخيست.

د سردار داودخان [٤] او پاکستان ترمنځ د ډیورنډ مسئلې زور اخیستی و، کله چې استاد برهان الدین رباني او انجنیر ګلبدین حکمتیار پېښور ته ولاړل، د پاکستان د لومړي وزیر ذوالفقار علي بهټو [٥] له خوا یې تود هرکلی وشو.[٦]" جنګ های کابل **۳٦**مه او **۳۹** مه پاڼه.

" استاد برهان الدین رباني پېښور کې په لومړیو وختونو کې د اوسیدو پر مهال قوي نه و، د حزب اسلامي قومندانانو، ادم خان، زاهد، رسول او ځینو نورو بدمعاشي کوله، تر دې چې د استاد رباني د وژلو هوډ یې درلود، بیا استاد رباني درې میاشتې په سعودي عربستان کې تیرې کړې، په پېښور کې ورته ګوزاره سخته وه، د استاد رباني یو پلوي انجنیر جان محمد کونړی و، هغه حزبیانو (مولوي سرفراز، حاجي دین محمد او وحیدالله سباوون) په دې تور مړ کړ چې د سردار داوود خان حکومت ته جاسوسي کوي، ژوندی یې له پیشوګانو سره په ګونۍ کې اچولي و، چې ته د رباني او داوود ترمنځ جاسوسي کوي[٧].

---

[٤] سردار داوود خان د جولای ۱۷مه **۱۹۷۳** د خپل اکا د زوی پاچا ظاهرخان پر ضد سپینه کودتا وکړه، سلطنت یې ختم او جمهوریت یې اعلان کړ. د داوود خان پر ضد د اپریل **۲۷**مه **۱۹۷۸** کمونستانو کودتا وکړه، یوه ورځ وروسته د کورنۍ له غړو سره د کمونستانو له خوا په ارګ کې ووژل شو.

[٥] ذُوالفِقار علي بهټود پاکستان لومړی وزیر (اګست **۱۹۷۳** – **۵** جولای **۱۹۷۷**) و، د جنرال ضیاء الحق له خوا کودتا وربانديي وشوه او اعدام شو.

[٦] د جنرال سید عبدالقدوس کتاب (جنګ های کابل) **۳٦** او **۳۹**مه پاڼه. له دې وروسته یاد اخځلیک (جنګ های کابل) لیکل کیږي.

جنرال سید عبدالقدوس د بدخشان ولایت د بهارستان ولسوالۍ کې پیدا شوی. هیواد کې دننه، هند او پخواني شوروي اتحاد کې یې نظامي زده کړې کړې. د افغان پوځ په هوايي او ځمکني قواوو کې یې دنده لرلې، د حزب وطن د مرکزي شورا د سیاسي او تربیتي د اردو (پوځ) د رهبري په څانګو کې یې کار کړی. اوس مهال المان کې اوسیږي.

[٧] موثق معلومات دادي چې انجنیر جان محمد یو تکړه او مسلمان مجاهد و، هغه جاسوس نه و، بلکې د هیواد لوړې ګټې ورته تر بل هر څه مهمې وې.

په استاد رباني باندې هم د حزب اسلامي د مشرانو له خوا تور لګول کېدی چې غواړي د داوود خان له حکومت سره پټې اړيکې ولري او يا خو ورسره جوړه وکړي[۸].

استاد برهان الدين رباني مخکې له دې چې د اسلامي نهضت ځوانان پاکستان ته ولاړ شي، په ځينو مجلسونو کې يې د اسلامي نهضت مشرانو ته ويلي وو، چې ښه به وي که د داوود خان سره سياسي معامله وشي او د هغه په حکومت کې ورسره يوځای شي[۹].

---

مولوي سرفراز وروسته له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال د حزب اسلامي د جنوب لويديځې حوزې (کندهار، هلمند، زابل، ارزګان، فراه، نيمروز، هرات، بادغيس) ولايتونو د دفتر رئيس شو.

حاجي دين محمد د مولوي خالص د ګوند مرستيال شو، د مجاهدينو د لنډمهاله حکومت دفاع وزير و. پر افغانستان د امريکا تر بريد وروسته د ننګرهار والي، وروسته د سولې عالي شورا مرستيال مشر و.

وحيدالله سباون د حزب اسلامي له برخې د استاد برهان الدين رباني د حکومت پر مهال دفاع وزير شو. له طالبانو سره د جګړې پر مهال له شمال ټلوالې سره ملګری و.

پر افغانستان د امريکا له بريد وروسته د ولسمشر حامد کرزي سلاکار وزير و، دارنګه د ډاکتر غني په لومړۍ دوره کې د هغه سلاکار و.

۸ که استاد رباني او نورو د مجاهدينو د هغه وخت د ګوتو په شمار سړو چې پېښور کې اوسېدل، له ولسمشر داوود خان سره يې روغه او جوړه کړې وای، موږ به د جګړې له دومره لوی ناورين او بدبختي سره نه وای مخ شوي او نه به افغان کمونستان په دومره اسانۍ سره واک ته رسيدلي وای. زه په ډاډ وايم چې د داوود خان د نظام څخه ۴۰ کاله وروسته د انجنير حکمتيار روغه او جوړه د ډاکټر اشرف غني له حکومت سره په مراتبو ذليله ده او د داوود خان نظام په مراتبو د ډاکټر غني له نظام څخه په مذهبي، اداري، اصلاحي او اقتصادي برخه کې بهتر وو.

۹ استاد محمد زمان مزمل هم همدا خبره تائيد کړه، هغه وويل که هغه وخت د غلام محمد نيازي نظر تائيد شوی وای او ځوانانو يې مخالفت نه وای کړی، ممکن هيواد دومره د بدبختۍ لور ته نه وای تللای.

د استاد رباني سره دوه نور کسان په پېښور کې وو، یو بلال مسعود او بل استاد یاسر چې اصلي نوم یې زمرک دی، بیا یې همدا دواړه هم د حزب اسلامي له ویري او گواښ څخه له ځانه لرې ساتل وغوښتل، په لومړي وخت کې مولانا مودودي صاحب لورته ولاړل[۱۰]، هلته یې ختې او مزدوري کوله بیا وروسته دواړه سعودي عربستان ته ولاړل او هلته یې د مدینې پوهنتون ووایه[۱۱].

کله چې پاکستان ته افغانان مهاجر شوو، د استاد رباني ډله هم قوي شوه، ځینې نور پښتانه هم ورسره ملگري شوو، انجنیر احمد شاه احمدزی وایې:" زه په سعودي عربستان کې وم، د پوهنتون استاد وم، استاد رباني راڅخه وغوښتل چې پېښور ته راشم، ورته راغلم، عربو د پوهنتون د استادي معاش په پېښور کې هم تر نږدې شپږ کلونو پوري راکاوی، کابل کې د داوود خان نظام چپه او د کمونستانو حکومت وو، زه د استاد رباني مرستیال شوم. په وروسته وختو کې پاکستان د جمعیت اسلامي

---

[۱۰] ابو الاعلی مودودي په بریتانوي هند کې د جماعت اسلامي بنسټ (۲۶ اگسټ ۱۹۴۱) ایښودونکي و، هغه تر مارچ ۱۹۴۴ پوري د گوند مشر او له ده وروسته میا طفیل محمد د جماعت اسلامي مشر (مارچ ۱۹۴۴ – ډسمبر ۱۹۶۵) و. جماعت اسلامي د اسیا په کچه تر ټولو لوی سیاسي گوند دی، مرکزیت یې پاکستان کې دی، په هند، بنگله دیش او ځنیو نورو هیوادو کې هم یاد گوند فعال او پیروان لري. مودودي صاحب د ۷۵ کلو په عمر د سپټمبر ۲۲مه ۱۹۷۹ کې وفات شو.

[۱۱] استاد یاسر وروسته د مجاهدینو د اتحاد اسلامي (اسیاد سیاف) مرستیال شو، کله چې امریکا پر افغانستان برید وکړ، استاد یاسر د طالبانو ملاتړ او له طالبانو سره یوځای شو، د طالبانو د فرهنگي کمیسون مشر وټاکل شو. د پاکستان د حکومت له خوا ونیول او افغان حکومت ته وسپارل شو، د پلچرخې زندان کې بندي و.

طالبانو د مارچ پر ۵مه ۲۰۰۷ کې په لښکر گاه کې ایټالوی خبریال ډانیل ماسټرو جیاکومو ونیوی او د نیول شوې ایټالوي خبریال په بدل کې طالبانو د خپلو زرگونو بندیانو له جملې څخه یوازې ۵ نفره (استاد یاسر د طالبانو د فرهنگې کمیټې مشر، ملا عبداللطیف حکیمي د طالبانو ویاند، ملا اختر محمد منصور د ملا دادالله ورور، ملا حمدالله او ملا عبدالغفار) طالب بندیان د افغان حکومت له باگرام او پلچرخې زندانو څخه وغوښتل او د مارچ پر ۱۸مه تبادله شول.

سره مرسته کوله، دا ډول يې د محاذ ملي او نجات ملي ګوندونه هم په پاکستان کې رسمي کړل.[١٢] "

استاد محمد زمان مزمل وايي:" انجنير حکمتيار او استاد رباني ته د جمعيت اسلامي مشر مودودي صاحب ويلي وو چې بيرته خپل هيواد ته ولاړ شئ، په پردي هيواد کې تر ازادي په خپل هيواد کې زندان بهتر دی[١٣]. "

---

[١٢] د افغانستان د پخواني لومړي وزير انجنير احمدشاه احمدزي سره زما (ليکوال ) مرکه (د اکتوبر ٩مه ٢٠١۴). د کتاب په راتلونکو برخو کې د ده د يادې مرکې پر مهال څرګندونو سره يواځې "انجنير احمد زی" ليکل کيږي.

له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال، انجنير احمدزی په لومړي وخت کې د جمعيت اسلامي (استاد برهان الدين رباني) مرستيال و، وروسته د اتحاد اسلامي ګوند (استاد سياف) مرستيال و، پېښور کې د مجاهدينو د موقت حکومت رئيس او کله چې کابل د مجاهدينو له خوا ونيو شول، د استاد برهان الدين رباني د حکومت پر مهال د کورنيو چارو وزير او لومړی وزير و.

د طالبانو د واکمنۍ پر مهال له هيواده بهر اوسيدی، پر افغانستان د امريکا تر حملې وروسته کابل ته راغی، د ملي اقتدار ګوند يې جوړ کړ، دارنګه د بهرنيو اډو پر ضد د ملي يووالي جبهې مشر و. انجنير احمدشاه احمدزی د اکتوبر ١٧مه ٢٠٢١ په اسلام اباد کې په روغتون کې وفات، پر سبا يې په کابل کې جنازه او دفن مراسم و.

[١٣] د حزب اسلامي د پخوانۍ اجرايه شورا غړي استاد محمد زمان مزمل سره زما (ليکوال) مرکه ٢١ جنوري ٢٠١٨. د کتاب په راتلونکو برخو کې د ده د يادې مرکې پر مهال څرګندونو سره يواځې "استاد مزمل" ليکل کيږي.

استاد مزمل د حزب اسلامي افغانستان د اجرائيه شوار پخوانی غړی، د سياسي کميټې مشر، د سولې فعال، ليکوال او شاعر دی. د شاه نواز تنې تر کودتاه وروسته له ځينو نورو مهمو د حزب اسلامي غړو سره يو ځای له حزب اسلامي څخه ولاړ او د حزب اسلامي پر ځينو تګلارو يې نيوکې درلودلې.

کله چې مجاهدينو کابل ونيو، استاد مزمل او ځينو نورو مخورو مجاهدينو د حکمتيار او مسعود + استاد رباني تر منځ د سولې هڅې کولې.

همدا خبره مولوي جميل الرحمن او نورو ورسره ملګرو علماوو ته مفتي محمود صاحب هم کړي وه چې تاسی ډېر غلط کار کړی چې د خپل هیواد پر ضد پاکستان ته راغلي یاست. بيرته خپل هیواد ته ولاړ شئ او هلته د داوود خان له حکومت سره ګوزاره وکړئ، دلته پاکستان کې د انګريز قانون دی، خو بيا هم موږ د پاکستان علماء ګوزاره کوو او ستاسي ملک (افغانستان) کې خو اسلامي قانون دی[۱۴].

د اپریل ۲۷مه ۲۰۱۷ د کابل بګرامي، د ضعیف صاحب کور کې د کونړ یوه عالم ما (لیکوال) ته وویل:"د داوود خان د حکومت پر مهال چې کله ځینې افغانان پاکستان ته ولاړل، د مولوي جمیل الرحمن سره یوځای ۵ نور کسان هم مفتي محمود چې د هغه وخت د پارلمان غړي و، ورغلي وو، یوه تن یې ماته دا خبرې وکړي چې کله موږ د داود خان د حکومت په وخت کې پاکستان ته ولاړو، هغه وخت مفتي محمود د پاکستان د پارلمان غړی و، موږ مشوره وکړه چې هغه ووينو او مرسته ورڅخه وغواړو، موږ مولوي جمیل الرحمن چې خپل نوم یې مولوي یوسف و، له هغه سره د خبرو لپاره وټاکی. کله چې اسلام اباد ته ورغلو، مفتي محمود ته انتظار او چې له پارلمان څخه هغه راووتی، په موټر کې سپور و، شیشه یې کښته کړه، مولوي جمیل الرحمن ورته وویل چې موږ غواړو د داود خان په ضد پاڅون وکړو، تاسي له موږ سره مرسته وکړئ.

---

استاد په کابل کې د بهرنیو اډو پر ضد د ملي یووالي جبهې مرستیال مشر و، هغه د سولې برخه کې څو ځله په قطر کې د طالب مشرانو سره ناستې کړي.

د کابل د امام ابو حنیفه عالي دارالعلوم څخه فارغ او لوړي زده کړي یې په مکه مکرمه کي کړي. د کابل ولایت د ده سبز ولسوالۍ اوسیدونکی دی، اوسمهال کابل ښار کې استوګن دی.

[۱۴] مولوی جمیل الرحمن سلفي مجاهد مشر و، د حزب اسلامي له خوا په کونړ کې ووژل شو.

مفتي محمود د جماعت علماء اسلام – پاکستان بنسټ ایښودونکی او مشر و، د مفتي صاحب له مړينې وروسته یې زوی مولانا فضل الرحمن د یا ګوند مشر شو.

مفتي محمود ورته وويل چې هلته (افغانستان) کې قضاء شته، هلته عدالت شته، هلته اسلامي نظام دی، هلته د عدالت ازاده اسلامي اداره شته، زموږ په هیواد (پاکستان) کې چې د انګریز عدالت / قانون دی، هم موږ له حکومت سره ګوزاره کوو او نور یې مولوي جمیل الرحمن ته غصه پیل کړه، ډیرې سختې خبرې یې وته وکړي، ویې ویل چې ځئ بیرته ولاړ شئ، خپل نظام مه خرابوئ، بیا به همدا اوسني ( د داوودخان) نظام هم نه شئ جوړولای. "

"په لومړي وخت کې حزب اسلامي د انجنیر ګلب الدین حکمتیار او جمعیت اسلامي د پروفیسور برهان الدین رباني په رهبري په پېښور کې فعالیت درلود، ونه توانېدل چې دواړه ګوندونه ګډ کار وکړي، د مولوي سدوزي اغا او مولوي عبدالله ذاکري په مشرۍ د علماوو په منځګړیتوب؛ د مجاهدینو دواړو مشرانو ژمنه وکړه چې مولوي محمد نبي محمدي به د ټولو مجاهدینو د مشر په توګه مني[15]. د حرکت انقلاب اسلامي تر نوم لاندې اتحاد (لیندۍ ۱۳۵۷ ل) وشو او مشر یې مولوي محمد نبي محمدي شو.

[15] مولوي محمد نبي محمدي د پاچا ظاهر د واکمنۍ پر مهال (۱۹۶۵ تر ۱۹۶۸) د ولسي جرګې غړی و، کله چې افغان کمونستانو کودتاه وکړه، مولوي محمد نبي محمدي د ډیورنډې هغې غاړې کوټې ښار ته ولاړ، د حزب اسلامي او جمعیت اسلامي ګډ مشر شو، وروسته د حرکت انقلاب اسلامي ګوند مشر پاتې شو، د مولوي محمد نبي محمدي د قومندانانو او حزب اسلامي قومندانانو ترمنځ په هلمند ولایت کې سختې او ځینې نورو ولایتو کې جګړې وشوې.

پېښور کې د مجاهدینو د لنډمهاله حکومت د کورنیو چارو وزارت دده برخه و، مولوي محمدشاه فضلي یې یادې دندې ته معرفي کړ.

د مجاهدینو تر بریالیتوب وروسته قضاء او محاکم مولوي محمدنبي محمدي ته وسپارل شول، مګر هغه کابل ته رانغی، پر ځای یې مولوي محمد شاه فضلي د سترې محکمې مشر و.

له طالبانو څخه یې خپل ملاتړ اعلان کړ او د مرګ تر وخته (۲۱ اپریل ۲۰۰۲) د طالبانو پلوي پاتې شو.

مولوي خالص بابا او مولوي جلال الدین حقاني چې دواړه عالمان وو[۱۶] او د داوود خان د نظام مخالف خلک وو، له حکمتیار او استاد رباني سره یو ځای پېښور ته تللي وو، د مجاهدینو ځینې مشران وایي چې دوی د مجاهدینو رهبري خپل حق ګاڼه، داچې مولوي محمد نبي محمدي له کوټې ښار څخه پېښور ته راوستل شو او د مجاهدینو مشر اعلان شو، مولوي محمد یونس خالص بابا او مولوي جلال الدین حقاني چې د حزب اسلامي د اجرائیه شورا غړي وو، دواړه له دغه اتحاد سره ملګري نه شول او مولوي خالص بابا د اسلامي حزب تر نوم لاندي ګوند جوړ کړ.

شپږ میاشتې وروسته د استاد رباني او انجنیر حکمتیار تر منځ د اختلافاتو له امله بیا هم د مولوي محمدي په مشرۍ د مجاهدینو اتحاد مات او مولوي محمدي د حرکت

---

[۱۶] مولوي محمد یونس خالص بابا د اسلامي حزب مشر، د پخواني شوروي اتحاد پر ضد یې په لومړي وخت کې جهاد پیل، د مجاهدینو ترمنځ د کورنۍ جګړې پر مهال په کور کیناست، خالص بابا هغه څوک و چې کله د استاد برهان الدین رباني د حکومت پر مهال، د القاعده ډلې مشر اسامه بن لادن او ملګري یې افغانستان ته راوستل شول، په جلال آباد کې خالص بابا د هغوی کوربه او ځای یې ورکړ.

د طالبانو د تحریک ملاتړ یې وکړ، زوی یې انوارالحق مجاهد له طالبانو سره ملګري او د لوړو زده کړو وزارت کې یې لوړه دنده درلودله.

په افغانستان د امریکا د حملې پر وړاندي مولوي خالص بابا د جهاد فتوی ورکړه، هغه بیاځل له هیواده هجرت وکړ، د هجرت پر مهال وفات شو، د مدینې منورې په نبوي مسجد کې یې د جنازې لمونځ (۱۹ جولای ۲۰۰۶) اداء او په جنت البقیع کې دفن شو.

مولوي جلال الدین حقاني هم له طالبانو سره ملګری او د سرحدونو او قبایلو چارو وزیر و، پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته یې هم د طالبانو تر چتر لاندي زوی سراج الدین حقاني د خپلو وسلوالو مشرې کوله، په لویدیځو رسنیو کې د حقاني شبکې په نوم د دوی ډله یادیده. سراج الدین حقاني د طالبانو دواړو مشرانو "ملا اخترمحمد منصور او شیخ هبة الله اخوندزاده) دویم مرستیال و.

انقلاب اسلامي په نوم د ګوند مشر پاتې شو. د اتحاد له برکته د دوو ګوندونو (حزب اسلامي او جمعیت اسلامي) پر ځای د مجاهدینو ډلې په څلورو وویشل شوې.

د دې لپاره چې روحاني او د طریقت خلک هم په جهاد کې فعاله ونډه ولري، د پیر سید احمد ګیلاني[۱۷] په مشري د محاذ ملي اسلامي ګوند او د حضرت صبغت الله مجددي [۱۸] په مشرۍ د نجات ملي اسلامي ګوند هم د پاکستان له خوا رسمي او نړیوالو ته ور وپېژندل شول.

کله چې استاد عبد رب الرسول سیاف د کابل له پلچرخي زندان څخه خلاص شو، پېښور ته ولاړی، د مجاهدینو رهبرانو ورته ډېرې هیلې او امیدونه درلودل، د

[۱۷] پیر سید احمد ګیلاني: له پخواني شوروی اتحاد سره د جهاد پر مهال د محاذ ملي اسلامي مشر (۱۹۷۹) و، د مجاهدینو د لنډمهاله حکومت د لومړۍ دورې مشر و. د کورنۍ جګړې پر مهال یې په جګړه کې برخه نه درلوده. پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته یې د حامد کرزي د حکومت ملاتړ وکړ، له افغانستان سره د امریکا امنیتي او دفاعي تړون سرسخت او جدي ملاتړی و، هغه د سولې عالي شورا (۲۱ فبروري ۲۰۱۲ – ۲۱ جنوري ۲۰۱۷) مشر و، د ۸۵ کالو په عمر د جنوري ۲۱مه ۲۰۱۷، په کابل کې ومړ.

[۱۸] حضرت صبغت الله مجددي په پېښور کې د نجات ملي اسلامي ګوند (جولای۱۹۷۸) جوړ کړ. له پخوانی شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال یې په جهاد کې فعاله ونډه درلوده، پېښور کې د مجاهدینو د لومړي لنډ مهاله حکومت مشر و، کله چې مجاهدینو کابل ونیوی حضرت مجددي د دوو میاشتو لپاره (۲۸ اپریل – ۲۸ جون ۱۹۲) ولسمشر و. پر افغانستان د امریکا/ناټو تر حملې وروسته د بیا پخلاینې رئیس و، له امریکا سره د افغانستان د امنیتي تړون سخت او جدې ملاتړی و. د فبروري ۱۱مه ۲۰۱۹ د ۹۲ کالو په عمر کابل کې مړ شو.
پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته یې د حامد کرزي د حکومت ملاتړ وکړ، د ملي پخلاینې او یو ځای کیدو بهیر مشر و، د مشرانو جرګې مشر (ډسمبر ۲۰۰۵ – ۲۹ جنوري ۲۰۱۱) و، د طالبانو له خوا مرګونی برید وربرندې وشو، سخت ژوبل او درملنه یې په ترکیه کې وشوه. د مرګ تر ورځې د شخړو او منازعاتو د حل کمیسون د مشرې پر دنده پاتې و.

ځینو مخلصو مجاهد مشرانو او علماوو په وساطت د مجاهدنیو ۵ گوندونو د استاد سیاف په مشرتوب اتحاد وکړ[۱۹].

[۱۹] استاد سیاف په ۱۳۵۳ل کال کې د داوود خان د حکومت له خوا ونیول شو، د حکومت ضد ځرگندونو له امله ٦ کاله زنداني شو، د حفیظ الله امین د حکومت پر مهال په ۱۳۵۸ ل کال کې خوشی او پېښور ته ولاړ. ویل کیږي چې د حفیظ الله امین او استاد سیاف مورگاني خویندي وي، له همدې امله حفیظ الله امین د هغه د خوشي کیدو امر کړی و.

وحید مژده وایې:" چې کله حفیظ الله امین ووژل شو، د هغه کورنۍ سره تړلي او هغه ته ځینې نږدې دوستان او د ارگ اشپز یې د ببرک کارمل د حکومت له ویرې پېښور ته ولاړل، اسلام اباد کې د استاد سیاف له خوا د اوسیدو زمینه ورته مساعده او بیا بهر ته واستول شول."

د استاد سیاف د کاکا زوی حاجي محمد عمر هاشمي وایې:"کله چې استاد سیاف له بند څخه خلاص شو، د لوی باري موټر (لاری) په واسطه مې هغه د تورخم هغې غاړې ته وا ړاووو او په لاره کې ولاړو افغان ځواکونو ته مو ویل چې د موټر چلونکی دی او د موټر سټرینگ ته د پلټنو پر مهال همدی استاد سیاف ناست و."

هغه زیاتوي چې د حفیظ الله امین د ترونو ځینو کورنیو ته یې استاد سیاف په جلوزو کیمپ کې ځای ورکړی او د هغوی ښه ساتنه یې کوله.

زما (لیکوال) د څېړنې په پایله کې، استاد سیاف چې د کابل پوهنتون نوموتی استاد و، د لوړو زده کړو لپاره د امریکا متحده آیالاتو له خوا سکالرشیف ورته منل شوی و، په ۱۹۷۴ ز کال کې یې غوښتل چې امریکا ته د تحصیل لپاره ولاړ شي، مگر د کابل په هوایې ډگر کې د سردار داوود خان د حکومت د امنیتي کسانو له خوا ونیول او زنداني شو، د نورمحمد تره کي او حفیظ الله امین کمونسیتې رژیمونو پر مهال هم په زندان کې و، کله چې د جدې پر ٦مه ۱۳۵۸/ ۲۷ ډسمبر ۱۹۷۹، د ببرک کارمل له خوا کودتاه وشوه، هغه د ببرک کارمل لخوا، ټولو بندیانو ته د عمومي عفوې په جریان کې له پلچرخې زندان څخه خوشی، مخامخ پېښور ته ولاړ او هلته د مجاهدینو نورو رهبرانو پرې باور وکړ، هغه یې د مجاهدینو د هغه وخت د ټولو ډلو مشر ومانه.

سعودي عربستان کې د سفر پر مهال د استاد سیاف [۲۰] کړنو او د هغه لیدنو له سعودي پاچا او لوړ رتبه سعودي چارواکو سره؛ پرته د مجاهدینو له نورو رهبرانو څخه، انجنیر حکمتیار ډیر غوسه کړي و، کله چې د سعودي عربستان له سفر څخه بیرته را وګرځېدل، په پېښور کې بیاځل د مجاهدینو اتحاد مات او استاد سیاف د اتحاد اسلامي په نوم د ګوند مشر پاتې شو، چې له ٦ څخه د اتحاد له برکته ۷ ګوندونه شول." استاد مزمل.

---

[۲۰] عبد رب الرسول سیاف په ۱۳۵۳ل کال کې د داوود خان د حکومت له خوا ونیول شو، د حکومت ضد څرګندونو له امله ٦ کاله زنداني شو، د حفیظ الله امین د حکومت پر مهال په ۱۳۵۸ ل کال کې خوشی او پېښور ته ولاړ. هلته د مجاهدینو د ۵ګوني اتحاد (جمعیت اسلامي،حرکت انقلاب اسلامي، محاذ ملي اسلامي، نجات ملي اسلامي او اسلامي حزب – خالص بابا) مشر وټاکل شو، حزب اسلامي – حکمتیار ور سره یوځای نه شو، نورو ته یې وښودله چې حزب اسلامي په یوازي هم د نورو ټولو ګوندونو په پرتله زور او ځواک لري. د یاد اتحاد له ړنګېدو وروسته، استاد سیاف د اتحاد اسلامي ګوند مشر پاتې شو. او د ٦ ګوندونو پر ځای د مجاهدینو ۷ ګوندونو له پاکستان، سعودي عربستان، متحده عرب اماراتو، امریکا او نړۍ سره اړیکې پیدا کړي.
د مجاهدینو د لومړي لنډمهاله حکومت پر مهال د استاد سیاف مرستیال انجنیر احمدشاه احمدزی لومړی وزیر و. او د مجاهدینو تر بریالیتوب وروسته یې د استاد رباني او احمدشاه مسعود ملاتړ اعلان کړ، د هغه مرستیال انجنیر احمدشاه احمدزی د کورنیو چارو وزیر او لومړی وزیر و، په حکومت کې یې غوښنه برخه درلودله.
په کابل کې یې د استاد عبدالعلي په مشرۍ د اهل تشیع ګوند حزب وحدت سره بې رحمه جګړې وشوې، کله چې طالبانو کابل ونیو، استاد سیاف د شمال ټلوالې په جوړښت کې د طالبانو پر ضد جګړه کوله.
پر افغانستان د امریکا د حملې پر مهال له امریکایانو سره ملګری او کابل ته یې وسلوال ننوتل. استاد سیاف په ۷ ډسمبر ۲۰۰۵ کې د ولسي جرګې غړی شو، د ولسي جرګې د ریاست لپاره یې له یونس قانوني سره سیالي وکړه، مګر یونس قانوني زیاتې رایې واخیستې. استاد سیاف تر ٦ ډسمبر ۲۰۱۰ د ولسي جرګې غړی و، دوېمه دوره کې بیا ځل (۲۷ فبروري ۲۰۱۱) د ولسي جرګې غړی شو، هغه د ۲۰۱۴ ولسمشرۍ ټاکنو ته نوماند او له ولسي جرګې یې استعفی ورکړه، مګر د ولسمشرۍ ټاکنو کې یې ډیرې کمې رایې تر لاسه کړې.

## له رباني او احمدشاه مسعود سره د حکمتیارستونزه

" د احمد شاه مسعود [۲۱] ستونزه له حزب اسلامي سره شخصي او عقیدوي نه وه، په لومړیو وختونو کې دا خبره نه وه، ده هم جهاد کاوه او د حزب اسلامي مجاهدینو هم جهاد کاوه.

کله چې احمدشاه مسعود، د داوود خان پر ضد د زمري ۱۳۵۴ ل کال له ناکام قیام وروسته پاکستان ته ولاړ، ځینې راپورونه داسي دي چې نصیرالله بابر پټ هغه ته ویلې و چې حکمتیار تاسي (مسعود) وژلئ، مګر ما خلاص کړلئ، بیا نو مسعود پنجشیر ته راغی، دلته یې قوي جبهه جوړه کړه.

د حزب اسلامي قومندان سید جمال د احمد شاه مسعود د شورا نږدې ۳۵ غړي د خپل شخصي مشکل له امله په ۱۹۸۹ ز کال کې ووژل، دا د ګوند په سطحه اختلاف نه و، بیا احمد شاه مسعود سید جمال د اسلامي حزب تکړه قومندان له ډیرو ملګرو سره یو ځای په تخار کې وواژه، چې دغه ډول وژنو ددوی ترمنځ اختلافات ډیر کړل او دغه خلک چې دواړو خواوو ته ووژل شول دا ټول پښتانه نه وو، تاجک زیات وو[۲۲]."

---

[۲۱] انجنیر احمدشاه مسعود له لومړنیو مجاهدینو څخه و چې پېښور ته ولاړ، له استاد برهان الدین رباني سره و، د انجنیر حکمتیار له خوا د مرګ له ویرې بیرته پنجشیر ته ولاړ، په لنډه موده کې د جمعیت اسلامي د نوموتي قومندان په توګه را ښکاره شو، وروسته یې د نظار شورا جوړه کړه، له روسانو سره یې پر یو بل د نه برید تړون لاسلیک کړ.
د پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال؛ د حزب اسلامي او مسعود ترمنځ جګړې پیل او تر هغه وخته یې دوام وکړ تر څو حکمتیار کابل ته د لومړي وزیر (جون ۱۹۹۶) په توګه ننوت. د مجاهدینو د حکومت پر مهال مسعود د دفاع وزیر و. کله چې طالبانو کابل ونیو، د طالبانو پر ضد یې شمال ټلواله جوړه کړه، له طالبانو سره یې سختې او درنې جګړې وکړي، طالبانو تر پایه ونه شوای کولای چې د پنجشیر دره له مسعود څخه ونیسي. پر مسعود د سپټمبر ۹مه ۲۰۰۱، د دوو عربانو له خوا مرګوني برید وشو او مسعود مړ شو.
[۲۲] د وتلي لیکوال او د سیاسي چارو کارپوه احمد وحید مژده سره زما لیکوال مرکه (۳۰ سپټمبر ۲۰۱۴). د کتاب په راتلونکو برخو کې د ده د یادې مرکې پر مهال څرګندونو سره یواځې "وحید مژده" لیکل کیږي.

د احمدشاه مسعود او حزب اسلامي د قومندانانو جګړې په لغمان کې د قومندان طارق (جمعيت) او عبدالله جان (حزب اسلامي)، په پروان، تخار، بدخشان، هلمند او کندهار کې هم يادولای شو.

حکمتيار چې په پېښور کې ډېر قوت درلود، د جهاد په لومړيو وختونو کې يې استاد رباني او احمدشاه مسعود ته د مجلسونو پر مهال په سپکه سترګه کتل.

دوه داسي پيښې هم شوې چې په يوه کې استاد برهان الدين رباني او په بله کې په احمدشاه مسعود باندي د حکمتيار له خوا د دوی د تهديد هڅه شوې وه.

يوه خبره اړينه ده چې احمدشاه مسعود په پېښور کې د انجنير حکمتيار په شتون کې د خپل ځان لپاره ځای نه ليدی او يو ډول ويره او انديښنه يې هم درلودله، چې

---

وحيد مژده د جهاد پر مهال، پېښور کې د حزب اسلامي ګوند فرهنګي کميټه کې کار کاوو، وروسته يې د شهيد عبدالله عزام په دفتر کې کار کاوو. کله چې مجاهدينو کابل ونيو، د بهرنيو چارو وزرات کې يې دنده وه، د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د بهرنيو چارو وزارت د کونسلي چارو رياست مشر و.

د حامد کرزي د حکومت په لومړيو وختونو کې د سترې محکمې وياند و، له دندې يې استعفی ورکړه، په وروسته وخت کې د بهرنيو اډو پر ضد د ملي يووالي جبهې وياند و.

د کابل پوهنتون د اقتصاد پوهنځي فارغ، د بغلان ولايت د مرکزي بغلان د فابريکې سيمې اوسيدونکی دی، مګر په کابل ښار کې استوګن و.

د نومبر ۱۸مه ۲۰۱۹، چهار شنبه، د ماښام لمانځه تر اداء کولو وروسته د مسجد مخکې پر مژده صاحب بريد او شهيد شو.

د جون پر ۱۰مه ۲۰۲۰، طالبانو د داعش وسلوالې ډلې نيول شوې کس (عنايت الله دعزت الله زوی، د لوګر ولايت د پل عالم اوسيدونکي) ږغيز پيغام خپور کړ، چې هغه منلي وه چې د ملي امنيت"په ځانګړې ډول د ملي امنيت پخواني رئيس رحمت الله نبيل" سره د همکارانو " ډاکټر ضياء الدين او د رحمت الله نبيل د تره زوی حاجي ابراهيم " له خوا د وحيد مژده د ترور پلان ورکول شوې او دوی هغه د مسجد مخې ته شهيد کړی.

له امله يې بيا مسعود خپل ځان مجبور وګاڼه تر څو له روسانو سره تړون وکړي او په شمال کې د حکمتيار قوت کمزوری کړي.

استاد رباني ته يې قناعت ورکړ چې د ده (مسعود) تر مشرۍ لاندي د جمعيت اسلامي قومندانان منسجم شي، وسلې او نظامي تجهيزات په شمال کې د جمعيت اسلامي مجاهدينو ته د ده ( مسعود) له لارې وويشل شي. او همدغه جريان بيا د شورای نظار په نوم ونومول شو، چې مشر يې احمد شاه مسعود و[۲۳].

" ۱۳۵۶ ل کال کې د يوې ناستې پر مهال د حزب اسلامي دريو کسانو استاد رباني د مجلس په وخت کې ډير توهين کړ، ورته ويل يې چې ته (رباني) د څه شي رهبر يې، دروغجن رهبر يې. هغه ځوانانو په بد نيت نه توهين کاوه، هغوی فکر کاوه چې استاد رباني په غلطه روان دی او ولې له پاچا ظاهر سره اړيکې نيسي. کيدای شي درې ځله د استاد رباني ډير توهين د حزب د ځوانانو له خوا شوی وي. دا هم له امکان څخه لرې نه ده چې ځينو به د استاد رباني د له منځه وړلو هڅه هم کړي وي.

د حزب اسلامي او جمعيت اسلامي تر منځ لاندې درې ټکې د اختلاف لامل وو:

۱ –استاد رباني له پيښوره څخه له پخواني پاچا ظاهر سره اړيکه ونيوله چې د داوود خان پر ضد ګډه سياسي جبهه جوړه کړي. دا په حزب اسلامي ښه ونه لګيده د حزب مشر هغه وخت کې قاضي امين وقاد و.

۲ – کله چې د ځينو ولايتونو په مختلفو ولسواليو کې د ۱۳۵۴ ل کال جګړييز عمليات ناکام شول، له هغه وروسته استاد رباني د داوودخان له حکومت سره تفاهم

---

[۲۳] د مسعود دغه پلان و چې جمعيت اسلامي ګوند يې قوي کړ او په مقابل کې بيا حزب اسلامي خپل قوي قومندانان کمزوري او ډير واکونه يې نه ورکول چې بيا وروسته د کورنۍ جګړې په مهال د حزب اسلامي ډيری کوچني قومندانان هم د احمدشاه مسعود په څنګ کې د بېلابېلو نورو لاملونو له کبله ودريدل.

پېل کړ، چې احمد شاه مسعود او انجنير جان محمد [٢٤] هم پکې رول درلود او حزب اسلامي له داوود خان سره د تفاهم مخالفت کاوه.

۳ – استاد رباني او ملګرو يې د داوود خان پر ضد د نظامي عملياتو مخالفت کاوه او د حزب اسلامي ځوانانو بيا نظامي عملياتو ته بيړه درلودله." استاد مزمل

"د سيد قطب رح اخښی کمال الدين سنانيري چې پخوا په مصر کې نږدې ۱۸ کلونه بندي و، پېښور ته راغی، هغه غوښتل چې د اخواني ګوندونو ( حکمتيار، استاد رباني، استاد سياف او خالص بابا) منځ کې اتحاد راولي، استاد رباني په ښکاره د مجاهدينو له نورو ګوندونو سره د اتحاد کولو هوکړه وکړه، زه هغه وخت د جمعيت اسلامي مرسيتال مشر وم، مګر راتلونکي د جمعيت اسلامي په اجرائيه شورا کې همدا د اتحاد کولو خبره اجنډا کې نه وه نيول شوې، استاد رباني ته مې وويل چې تاسي د سنانيرې سره ژمنه کړې وه چې له نورو مجاهدينو ګوندونو سره به اتحاد کوئ، مګر نن هغه مهمه موضوع ولي اجنډا کې نه ده نيول شوې، استاد رباني وويل، هغه مهمه موضوع نه ده، په اجرائيه شورا کې بحث کول پرې اړين نه دی، هدف يې دا وو چې اتحاد نه کوي، له همهغه اجرائيه شورا مجلس څخه زه (احمدزی) ولاړ شوم او له جمعيت اسلامي څخه ووتلم او بيا د اتحاد اسلامي ګوند مرستيال مشر شوم. " انجنير احمدزی

[٢٤] مزمل صاحب وايي: انجنيرجان محمد په پېښور کې حزب اسلامي ونيو، د حزب کسانو ويل چې هغه ومنله چې د داودخان د حکومت لپاره کار کوي، مګر زما (مزمل) باور نه راځي. هغه ډير عزيز او پخوانی مسلمان شخص و. په دي پېښه (کيس / دوسيه) کې انجنير احمدشاه مسعود هم و، مګر په خپله طريقه پکې د حزب اسلامي څخه بچ شو. او کيدای شي له همدې ځايه يې د حزب اسلامي په اړه ډيره عقده اخيستي وي. کيدای شي چې مسعود هم پکې له منځه تللی وای. زما د معلوماتو پر بناء چې هغه وخت د حزب امير حکمتيار نه وو، مګر خلکو دا کار د حکمتيار ګانه، ما (مزمل) له حکمتيار څخه پوښتنه کړي، هغه خپله هم د انجنير جان محمد د مرګ په اړه متاسف و، مګر د ځوانانو ګروپ همدا چې له دولت سره تفاهم يې جاسوسي ګڼله، هغوی انجنير جان محمد هم وژلی وو.

"انجنیر حکمتیار راته وویل چې استاد سیاف ته زما له خوا ورشه، که حزب اسلامي ته راځي هم زموږ مشر ده او که دوه درې ګوندونه قانع کړي چې د ده په مشرۍ اتحاد وکړي هم يې منم. حکمتیار په استاد سیاف ډیر حساب کاوه او ویل به يې چې موږ ورڅخه مطمئن يو. د سید قطب رح د اخښي کمال الدین سنانیري سره ځینو ګوندونو د اتحاد کولو خبره ومنله، خو جمعیت اسلامي ونه منله او استاد سیاف خپلو ملګرو انجنیر احمدشاه احمدزي، استاد یاسر، بلال او ځینو نورو ته وویل چې له جمعیت څخه راووځئ، هغوی هم استاد سیاف ته ورغلل او جمعیت اسلامي تجزیه شو. بیا هم موږ له سیاف سره ودریدو تر څو په وروسته وخت کې د اوه ګوني اتحاد رئیس او مبایع مشر مو کړ. خلکو بیعت ورسره وکړ، دا مرحله د جهاد د وخت تر ټولو هسکه څوکه وه او له مبایع اتحاد عرب هیوادونه او نړۍ متاثره شوه، ډیرې زیاتې مرستې مجاهدینو سره وشوې او په داخل کې مجاهدینو قوي روحیه واخیستله. " استاد مزمل

د مجاهدینو د موقت حکومت پر مهال روسیې ته د استاد برهان الدین رباني سفر سره هم حکمتیار کلک مخالفت درلود، ولي استاد رباني روسیې ته سفر او ویل کیږي هلته يې پټې لیدنې او له روسانو سره د ښو اړیکو لپاره د خپل ځان او ګوند په ګټه کار وکړ، چې له دې وروسته د جمعیت اسلامي او حزب اسلامي تر منځ واک ته د رسیدو پر سر سخته سیالي پیل شوه.

"استاد رباني چې د جمعیت اسلامي مشر او د مجاهدینو د موقت حکومت د بهرنیو چارو سرپرست وزیر ؤ د ده په مشرۍ ماسکو ته هیئت وټاکل شو، ځینې ګوندونو يې مخالفت وکړ چې څرګند پکې حکمتیار او استاد سیاف ؤ.

د هیئت مطبوعاتي کانفرانس په اسلام اباد کې ۱۸ عقرب ۱۳۷۰ کال، لس بجې د هالي ډې هوټل کې و. او استاد رباني وویل:" ټول مجاهدین په دې ټکې موافق دي چې هیڅکله به د ډاکټر نجیب الله او د هغه له مزدور حکومت سره مذاکره ونه کړي، د ډاکټر نجیب الله حکومت غیر قانوني دی او په افغانستان کې د شوروي پوځیانو د شرمناک تجاوز ثمره ده."

استاد رباني، آیت الله محمد اصف محسني، مولوي محمد نبي محمدي، قاضي محمد آمین وقاد، ډاکټر حشمت الله مجددي، سید حامد ګیلاني، مولوي محمد شاه فضلي، مسعود خلیلي، سید محمد هادي، عمادالدین وثیق، فضل الرحمن، محمد آمین منصف، عبدالحمید منهاج، حاجي محمد اکبر عزیزي او عبدالکریم مستعین، چې ټول ۱۵ تنه ؤ، ماسکو ته د هیئت غړي وو.

جدې ته له رسیدو وروسته، د مطبوعاتي غونډې پر مهال بیا ځل استاد برهان الدین رباني وویل: "موږ د ډاکټر نجیب الله د مزدور حکومت سره مذاکره او خبرې نه کوو، موږ غواړو چې له روسانو سره مخامخ خبرې وکړو، هغوی زموږ په خاوره تجاوز کړی دی."

په سفر کې د پاکستان د آی ایس آی دوه نفره کرنیل طارق او بل تن هم ؤ، مګر په مجلسونو کې یې شرکت نه درلود.

د مجاهدینو هغه هیئت چې له ایران څخه راغلی ؤ له هغوئ سره هم درې تنه د ایراني استخباراتو کسان وو.

د نومبر پر ۸مه ۱۹۹۱، د مجاهدینو پلاوی ماسکو ته ورسید، د مجاهدینو د موقت حکومت د بهرنیو چارو وزیر استاد رباني د روسیې د بهرنیو چارو وزیر بوریس پانکین [25] سره په لومړي ناسته کې، هغه ته وویل:" تاسي د کابل له رژیم سره د

---

[25] بوریس پانکین Boris Dimitrievich Pankin د لنډ مهال لپاره د پخواني شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر (۲۸ اګست تر ۱۹ نومبر ۱۹۹۱) و.

اډوارډ شوارډناډزي Eduard Ambrosiyevich Shevardnadze د پخوانی شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر (۲ جولای ۱۹۸۵ تر ۲۰ ډسمبر ۱۹۹۰) و. کله چې د افغانانو د جهاد له برکته پخوانی شوروي اتحاد ړنګ شو، شوارډناډزي د ګرجستان د پارلمان رئیس (۴ نومبر ۱۹۹۲ تر ۲۶ نومبر ۱۹۹۵) و او له دې وروسته د ګرجستان انتخابي ولسمشر (۲٦ نومبر ۱۹۹۵ تر ۲۳ نومبر ۲۰۰۳) و.

ډيالوګ خبره وکړه، موږ صريحاً وويل، د ملګرو ملتونو مشر ته مو هم ويلي دي، چې هيڅ مسلمان افغان حاضر نه دی چې داسي ډيالوګ چې يو طرف يې د نجيب رژيم وي اشتراک وکړي او له نجيب سره ډيالوګ امکان نه لري.

تاسي روسانو د اګست مياشتی کودتاه کوونکي "افغان کمونستان "د محاکمي ميز ته کش کړي؟ موږ څه ډول د خپل ملت له قاتل سره خبرو ته کښينو. دا مسئله نه عدالت قبلوي او نه تاسي او نه موږ.

نجيب يونيم ميلون انسانان وژلي موږ څه ډول کولای شو هغه په خپلو اينده تصاميمو کې شريک کړو؟

داچې تاسي واياست شوروي په دي باره کې کوم کار نه شي کولای، موږ وايو چې د رژيم جنايتونه ستاسي په مرستو پورې تړلي دي.

هر سکاډ چې زموږ په کليو توغول کيږي روسيه يې مسؤليت لري، موږ له نجيب سره خبرې نه کوو، ښه لاره داده چې نجيب باندي فشار راوړل شي چې کابل پريږدي، نور استبداد ته ادامه ور نه کړي او دغه د سولې تر ټولو لنډه لار ده[۲۶]. "

"ماسکو کې په يوه جلا ناسته کې د خلق ډيموکراټيک ډلې پخواني غړي، د کورنيو چارو پخواني وزير سيد محمد ګلاب زوی هم په پټه يوازي له استاد رباني سره په هوټل کې دننه ليدنه وکړه، ګلاب زوی له ډاکټر نجيب الله څخه شکايت درلود چې د ولس د منافعو خلاف کارونه کوي. "مجاهدين در ماسکو

---

شوارډناډزي د جنوري ۲۵مه ۱۹۲۸ په ګرجستان کې زيږدلي او د جولای ۷مه ۲۰۱۴، د ۸٦ کلو په عمر مړ شو.

[۲۶] مجاهدين درماسکو (مذاکرات با روسها)، ليکوالان: فضل الرحمن فاضل او فيض الرحمن وثيق.

دواړو ليکوالو د ماسکو سفر کې د مجاهدينو له پلاوي سره يوځای، د شورويانو او مجاهدينو په عمومي ناستو کې يې ګډون درلود.

" ماسکو کې د پخواني شوروي اتحاد د هغه وخت ولسمشر ګورباچوف د مجاهدینو د موقت حکومت د بهرنیو چارو وزیر استاد برهان الدین رباني ته وویل: موږ تیروتنه وکړه چې د افغانانو سره په جګړه کې ډیر وخت بوخت پاتې شوو، موږ غواړو چې له افغانانو سره ښه ګاونډیتوب ولرو او موږ ته دا فرق نه لري چې تاسي (استاد رباني) او یا ډاکټر نجیب الله په واک کې وي. غواړو چې له افغنستان سره ښه ګاونډیتوب وساتو.

کله چې ډاکټر نجیب الله ته د ګورباچوف او استاد رباني ترمنځ د خبرو جزئیات ورسیدل، ډاکټر نجیب الله په احساساتي ډول د کابل راډیو او ټلویزون د لارې اعلان وکړ چې د دلوي ۲۶مه ۱۳۶۷ - ۱۵ فبروري ۱۹۸۹ د روسانو څخه د ازادي ورځ ونومول شوه.

ډاکټر نجیب الله چې پوه شو چې ګورباچوف یې له ملاتړه په شا شو، د پخواني شوروي اتحاد پر ضد یې ځینې څرګندونې پېل کړي، چې بالاخره روسانو د ببرک کارمل اړوند پرچم ډلې سره کار وکړ او د مزار شریف ښار ته یادې ډلې د جمعیت اسلامي ډلې سره یو ځای سقوط ورکړ، چې بیا وروسته په ګډه د نظار شورا د مشر مسعود سره د ایتلاف نتیجه کې کابل ته ننوتل.

کټ مټ همداسي کار مخکینې ولسمشر حامد کرزي هم وکړ[۲۷]، کله چې د ۲۰۱۴ ز کال د ټاکنو وخت را نږدې شو، کرزي امریکایانو ته وویل چې زه خو د دریم ځل ټاکنو لپاره نوماند کیدو حق نه لرم، دا ځل به زما ورور قیوم کرزی او یا هم زما د کورنۍ کوم بل غړی نوماند او واک ته ستاسي په مرسته ورسیږي، امریکایانو هغه ته جواب ورکړ، چې نور نه کرزی او نه یې د کورنۍ کوم غړی د ولسمشر په توګه غواړي، له همدې وروسته مخکېني ولسمشر کرزي په احساساتي ډول د امریکا ضد څرګندونې پېل کړي. " ۱۲ مئ ۲۰۱۸. حاجي سید داوود اغا

[۲۷] د جهاد پر مهال د حضرت صبغت الله مجددي د ګوند غړی، د استاد رباني د حکومت پر مهال د لنډ وخت لپاره د بهرنیو چارو مرستیال وزیر و.

په افغانستان د امریکا ترحملې وروسته په بُن کې د لنډ مهاله حکومت مشر، وروسته د انتقالي دورې رئیس او دوه ځله انتخابي ولسمشر ( ۲۲ ډسمبر ۲۰۰۱ – ۲۹ سپټمبر ۲۰۱۴) و.

## شورای نظار

" استاد برهان الدین رباني ډېر حوصله لرونکی سړی و، احمدشاه مسعود فکر کاوه چې استاد څه نه شي کولای، د شورای نظار په نوم یې په ۱۳٦۲ ل (۱۹۸۳ ز) کال کې تشکیلات جوړ کړل، استاد رباني هم مسعود غښ کړ، زیات نظامي تجهیزات او واکونه یې ورکړل، مسعود وتوانیدی چې په پنجشیر کې د حزب اسلامي مهم قومندان محمد قسیم فهیم [28] هم له ځان سره ملگری کړي، هغه څه چې مسعود کول هغه شورای نظار وه، جمعیت اسلامي د استاد رباني او شورای نظار د مسعود او پنجشیرانو وو." انجنیر احمدزی.

په ۱۳۵۴ ل. کال کې چې د پنجشیر د قیام پلان [29] د ډیورنډ هغې غاړې ته جوړیده، هغه وخت احمدشاه مسعود او جلال الدین حقاني دواړه د نظام په

---

[28] محمد قسیم فهیم د پنجشیر اوسیدونکی، د شورای نظار دویم نمبر نظامي قومندان و، د استاد رباني د حکومت پر مهال د استخباراتو عمومي رئیس و، له طالبانو سره یې سختې جگړې وکړې. د احمدشاه مسعود تر مرگ وروسته د شمال ټلوالې مشر و.

پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته دفاع وزیر (۱۹ سپټمبر ۲۰۰۱ تر ۱ ډسمبر ۲۰۰۴)، وروسته د ولسمشر حامد کرزي لومړی مرستیال (۱۹ نومبر ۲۰۰۹ تر ۹ مارچ ۲۰۱۴) و، د ناروغي له امله یو ناڅاپه په خپل کور کې، د مارچ ۹مه ۲۰۰۱۴ کې مړ شو.

[29] مجاهدین په ۱۳۵۳ ل. کال کې پاکستان ته ولاړل، په ۱۳۵۴ کال کې یې د داود خان پر ضد او بیا په ۱۳۵۷ کال کې یې د افغان کمونستانو پر ضد جکړه کوله، چې وروسته بیا د پخواني شوروي اتحاد سرو لښکرو پر افغانستان یرغل وکړ او مجاهدینو ورسره جهاد کاوه.

د یادولو ده چې ذکر یې وکړو، جنرال عتیق الله امرخیل په دي نظر دي چې:" د داودخان لویه تیروتنه داوه چې کله یې د خلقیانو مشران ونیول، په کار وه چې کابل ښار کې یې امنیتي تدابر او احظارات نیولي وای، مگر مغروره سړی و، امنیتي ستونزو ته یې توجه ونه کړه، غوښتل یې په سبا د خلقیانو د مشرانو برخلیک خلکو ته وښیې، چې په شپه کې حفیظ الله امین وتوانیدی، له خپلو خلقي ملگرو سره د کودتاه پلان ترتیب، قوای ۴ او قوای ۱۵

مخالفت کې د ډيورنډ هغې غاړې ته تللي وو، د احمدشاه مسعود او په ټوله کې د پنجشير د قيام مشري خواجه محفوظ منصور په غاړه درلودله، چې بيا ونيول شو او د داوود خان له خوا ووژل شو[۳۰].

"مسعود ته روسانو او فرانسې زيات رشد ورکړ، فرانسې له دي کبله چې مسعود په فرانسوې ژبه پوهيدی، کابل کې يې استقلال ليسه لوستي وه، د فرانسې له ژورنالستانو سره په فرانسوې يې خبرې کولي، ځکه د فرانسې ډيره توجه ورته واوښتله او هغه مجاهدين مشران چې په عربي پوهيدل هغوی ته عربو زياته توجه کوله لکه جلال الدين حقاني او استاد سياف ."وحيد مژده

"احمد شاه مسعود نظر آی ايس آی او سې آی اې ته له روسانو او فرانسې سره ښه روابط لرل، استقلال ليسه يې ويلي وه او په فرانسوې پوهيده، روسانو خپلو راتلونکو موخو ته د رسيدو لپاره د پاکستان او امريکا په سيالۍ کې د مسعود ملګرتيا کوله، د مسعود ملګرتيا له سي آی اې او آی ايس آی سره کمزوري وه، ولي د حکمتيار ملګرتيا له آی ايس آی سره ډيره ټينګه وه. " انجنير احمدزی

"روسانو په خپلو کورنيو مطبوعاتو کې مسعود ډير قوي او غټ مجاهد او ډله معرفي کوله "[۳۱]، هغوی د مسعود په غټ معرفت کې خپله ګټه او هدف درلود، دهمدې له پاره روسانو ډير کار وکړ، عام روسان په دي قانع وو چې د افغانستان په

---

ته يې هدايت ورکړي و، په هوايې ځواک کې يې هم خپلو کسانو ته د کودتاه کولو لارښونه کړي وه او په سبا يې د کودتاه پروګرام عملي او کامياب شو."

[۳۰] خواجه محفوظ منصور د بغلان ولايت د پلخمري اوسيدونکی، د کابل پوهنتون د ساينس پوهنځي محصل و. په ۱۳۵۴ لمريز کې د هغو عملياتو قومنده د ده په لاس کې وه چې په پنجشير کې ترسره شول، د عملياتو پر مهال ټپي او ونيول شو، وروسته د سردارد داوود خان د حکومت له خوا اعدام شو.

[۳۱] ۱۹۸۲ز کال کې مسعود له روسانو سره د دوستي تړون وکړ او مسعود د روسانو په نظر کې د راتلونکي افغان حکومت لپاره يو بل معادل مشر شو. جنګ های کابل ۲۷ مه پاڼه.

شمال کې احمدشاه مسعود یو تر ټولو مهم قومندان او لویه ډله لري، مهمه داده چې روسانو د شمال له پاره ډېر ژور پلان درلود، نو ځکه یې په مسعود سرمایه ګذاري له لومړۍ ورځې پېل کړه.

روسانو وغوښتل چې له احمدشاه مسعود سره اړیکې ټینګې کړي، وتوانیدل او د مسعود سره یې د نظامي اوربند تړون لاسلیک کړ، همدغه تړون روسانو خپلو ملتونو ته داسي وښود، چې دوی لویه لاسته راوړنه لرله، ځکه د مجاهدینو له یوه مهم مشر او ډلې سره یې داسي تړون کړی چې د روسانو په کاروانونو او پوځیانو به حمله نه کوي او مزاحمت به ورته نه جوړوي [۳۲]. روسانو په تړون کې منلي وه چې کوم خوراکي او نور مواد د سالنګ د لاري کابل ته وړي په هغوی کې د مسعود ځانګړې برخه وه او په سالنګ کې به د مسعود کسانو ته دهغوی برخه ورکول کیدله.[۳۳]

---

[۳۲] د روسانو د تلفاتو شمیر د کمښت یو علت د مسعود او روسي استخباراتو مداوم روابط وو، ځکه روسانو د شمال دلاري کابل ته تګ راتګ کاوه. جنګ های کابل ۴۷ مه پاڼه.

[۳۳] د مسعود او روسانو ترمنځ لومړی قرارداد پنجشیر کې په ۱۹۸۲ ز کال کې لاسلیک شو، جنرال ګروموف د ۴۰م لښکر مشر خپل کتاب (سرې لښکري افغانستان کې) دا خبره لیکلي چې له مسعود سره تړون بیا تر اخره همداسي موفقانه پاتې و. تړون کې راغلي و چې مسعود به په شمال کې د روسانو په کاروان حمله نه کوي، روسان به ورته وسلې، غذایي مواد، مهمات او د حزب اسلامي په مقابل کې د مسعود مرسته کوي. د مسعود شرطونه له پنجشیر څخه د روسانو وتل او حکومتي ځواکونو قطع کیدل وو. جنګ های کابل ۴۹مه پاڼه.

د مسعود او روسانو تر تړون وروسته، هر وخت به سرپوښ لارۍ موټر چې مهمات او تجهیزات به پکې وو، د شورویانو له کنډک څخه دمسعود لورته تللي او چورلکې به هم ورتلي، د مسعود ساحه د افغان پوځ له سیمې ۵ کلیومتره لرې وه.

مسعود به د روسانو په کاروان او پوستو برید نه کاوه، خو په افغان حکومتي پوځیانو به یې حملې کولي. جنګ های کابل ۵۴ مه پاڼه.

" د پنجشیر پیشغور کې د حکومت ۴۴۴ نمبر لوا وه، عبدالخالق یې قومندان وو، اوسمهال د امنیت شورا غړی له دي مخکې د دفاع وزارت مرستیال وزیر و، دوی هلته اوسیدل او د مسعود د وسلوالو له خوا پرې ډز نه کیدی." جنرال امرخیل

د نظار شورا له آی ایس آی سره هم رابطه لرله، دغه تماسونه دې حد ته ورسيدل چې د پاکستان د لوی درستيز ميرزا اسلم بيګ په غوښتنه احمد شاه مسعود پاکستان ته (لړم ۱۳٦۹ ل - نومبر ۱۹۹۰ ز کال) سفر وکړ. "وحيد مژده.
"د روسانو او مسعود تر منځ اړيکې او تړون و، د دفاع وزارت يوه کارکونکې ما (امرخيل) ته کيسه وکړه، هغه وويل:" زه نوکريوال وم او د پنجشير څخه د قطعې قومندان راته ټيليفون وکړ چې د روسانو يو نظامي کاروان زموږ د قطعې (د پنجشير – پيشغور سيمې) څخه تيريږي او د مسعود د وسلوالو په لور ور روان دی، موږ څه وکړو. کله چې مې له لوړو مقاماتو څخه هدايت وغوښت، هغوی وويل چې د روسانو کاروان ته د ي د قطعې له خوا مزاحمت نه کيږي، پري دي ږدي چې تير شي."

جنرال امرخيل وويل: يوځل احمدشاه مسعود د افغان ځواکونو له خوا په پنجشير کې محاصره شو، نږدې وو چې مسعود ژوندی ونيول شي، روسانو مداخله وکړه او بيا مسعود له هغه محاصرې ژوندی و ايستل شو. [۳٤] " جنرال امرخيل

" کله چې احمدشاه مسعود ته پاکستان د ورتګ (نومبر ۱۹۹۰ز) بلنه ورکړه، مسعود د چترال ها خوا ګرم چشمې سيمې ته ورغی، هلته يې د پاکستان د پوځ لوی درستيز اسلم بيګ او د امريکا سفير اوکلي تود هرکلی وکړ[۳۵]، په چورلکه کې اسلام اباد ته ولاړل، ويل کيږي په دغه وار له احمدشاه مسعود سره پاکستان ډيره زياته مرسته وکړه، د پاکستان له لورې ورته ديرش ميليونه پاکستانۍ کالداري او تر ٦۰ زياتې ۴x۴ قوي ډادسنې / موټر ورکول شول، له دې سره سره احمد شاه مسعود ته

---

[۳٤] د ډاکټر نجيب الله د واکمنۍ پر مهال د هوايې قواوو قومندان (۱۳٦۸ – ۱۳۷۱ ل. کال) جنرال عتيق الله امرخيل سره زما (ليکوال ) مرکه (۲٦ فبروري ۲۰۱۸). د کتاب په راتلونکو برخو کې د ده د يادې مرکې پر مهال څرګندونو سره يواځې "جنرال امرخيل" ليکل کيږي.

[۳۵] ميرزا اسلم بيګ Mirza Aslam Beg د پاکستان د پوځ لوی درستيز (۱۷ اګسټ ۱۹۸۸ تر ۱٦ اګسټ ۱۹۹۱) و، هغه د پاکستان پوځ کې (۱۹۵۰ تر ۱۹۹۱) پوري دنده اجراء کړي. روبرت بي اوکلي Robert Bigger Oakley په اسلام اباد کې د امريکا سفير (۱۸ اګسټ ۱۹۸۸ تر ۲۹ اګسټ ۱۹۹۱) و.

سي آی اېِ هم د پاکستان د استخباراتي شبکې او د مجاهدینو د نوور ډلو په پټه نقد ډالر او وسلې ورکولې.

له اسلام اباد څخه وروسته احمدشاه مسعود د پېښور ښار ته څېرمه د څمکنۍ په سیمه کې د جمعیت اسلامي په دارالایتام کې څو ورځې اوسیده او ملاقاتونه یې کول، دارالایتام چې د استاد رباني شخصي ملکیت و، په لویه ودانۍ کې دننه څو نورې ښکلې او موډرنې ودانۍ هم وې، د کابل ارګ ته یې ورته والی درلود، په یاده ودانۍ کې په زرګونو کسانو او په سلګونو واړه د جمعیت قومندانانو د مسعود د لیدو انتظار کاوه .

په هغه وختونو کې مولوي عبدالله ذاکري د پاکستان له کوټې ښار نه پېښور ته راغی، حکمتیار او مسعود یې په ښکاره سره پخلا کړل[۳۶]."

"مسعود په دولت کې د روسانو سره د تړون له امله ډېر خلک درلودل، د دولت له منځه به مسعود ته راپورونه ورکول کېدل، د دولتي پوځیانو هغه ځای چې وسلې او تجهیزات به یې کم شول، په بد حالت کې به وو، د مسعود جاسوسانو به د پوځ له دننه مسعود ته خبر ورکاوو، مسعود به حمله وکړه او د دولت پوځیان به یې تسلیم کړه او یا به یې ووژل، په پنجشیر کې عامو ساده خلکو ویل چې مسعود ولي (الله ﷻ ته ډېر نږدې سړی) دی، پټې وینې، څکه هر وخت چې به حکومت په پنجشیر د بمبارد پریکړه وکړه، د مسعود جاسوسانو به د دولت له دننه هغه ته خبر ورکړ چې په پلانۍ نیټه د پنجشیر په پلانۍ سیمه بمبارد کېږي، مسعود به خپلو خلکو ته وویل چې له کلي ووځئ، نور به یې هیڅ هم نه ویل، کله چې به په کلي بیا وروسته بمبارد وشو، خلک به پکې نه وو، نو د پنجشیر خلکو به ویل چې احمدشاه مسعود ولي دی." وحید مژده

---

[۳۶] د جهاد پر مهال د افغان نشراتي مرکز مشر حاجي سید داوود اغا سره زما (لیکوال) مرکه (د اکتوبر ۲مه ۲۰۱۴). د کتاب په راتلونکو برخو کې د ده د یادې مرکې پر مهال څرګندونو سره یواځې سید داوود لیکل کېږي.

"یوه مسئله مهمه وه د شمال ولایتونو ته امکانات او تجهیزات رسول سخت وو، فاصله ډیره وه، د کمونستانو له خوا کمینونه [۳۷] نیول کېدل، تګ راتګ به په کال کې یو ځل کیده، کله کله به داسي وو، چې تر یو ځل زیات به مجاهدین خپلو سېمو ته له پېښور څخه تللي وي. ځکه جوزجان، تخار، شبرغان ته تګ راتګ مشکل وو.

له همدې امله مسعود په دی فکر شو چې باید ځینې کارونه وشي:

د پېښور په ځای پنجشیر کې د مجاهدینو د روزنې (ټریننګ) مرکز جوړ شي، ځکه د ده ځینې مجاهدین / قومندانان چې به پېښور ته ولاړل، وسلې [۳۸] به یې خرڅي کړي [۳۹]، ودونه به یې وکړل او په بیرته ورتګ کې به یې ځنډ رامنځته کېده.

په **۱۳٦۲** ل . کال کې مسعود د شمال د نظار شورا جوړه کړه، د مجاهدینو ټریننګ یې داخل کې کړ، وسله به یې له دي ځایه (پنجشیر) څخه وېشله او نورو سېمو ته استوله، تر څو د غلا او وخت د ضیاع مخه ونیول شي.

بیا ډیر ژر مسعود متوجه شو چې د شمال کلیمه د روسانو د خوښې کلیمه ده، د روسانو مقدمه وه چې که مرکز (کابل) ته لاسرسی سخته شي بیا به شمال ته مرکز وړي او مزار ښار به مرکز کوي، مسعود دې ته متوجه شو چې دا دروسانو د پروګرام کلیمه ده بیا یې شمال نوم ورڅخه لیری کړ." سید داوود اغا

---

[۳۷] د هغه مهال افغان حکومت په لومړیو وختونو کې د مسعود پر کسانو سخت بریدونه هم کول. افغان حکومت هغه وخت ډیر نهیلی شو، چې کله له احمدشاه مسعود سره روسانو مخامخ ترون لاسلیک کړ.

[۳۸] د جهادي ګوندونو د نظامي کمیسون له خوا مجاهدینو ته د وسلو ویش او ورکړه په پېښور او کوټه کې کېدله.

[۳۹] مجاهدینو ته وسلې په پېښور کې ورکول کیدي، نه یواځې د جمعیت اسلامي بلکې د ځینو نورو ګوندونو قومندانانو هم چې وسلې به یې په پېښور او یا کوټه کې د خپلو ګوندونو له دفترونو څخه ترلاسه کړي، ځینو به یې یوه اندازه وسلې په ازاد بازار کې خرڅولې.

بیا وروسته چې کله کورنۍ جگړه پیل شوه، د همدې موخې له پاره چې که اړتیا وي نو مزار شریف د شمال جنگیالي خپل مرکز اعلان کړي او افغانستان وویشل شي، ایران او روسانو په گډه د شمال ټلوالې قومندانان مجبور کړل چې ایتلاف وکړي او په گډه د طالبانو مقابله وکړي.

کله چې احمدشاه مسعود، گلبدین حکمتیار، استاد برهان الدین رباني، استاد سیاف او ورسره د نورو ډلو مشران له کابل څخه و تښتېدل او کابل د طالبانو لاسته ولوید، دارنگه د ځینو نورو ډلو مشران (استاد کریم خلیلی، استاد محمد محقق [٤٠] او عبدالرشید دوستم) هم له بېلا بېلو ولایتونو څخه مزار ښار ته ورغلل، استاد برهان الدین رباني د خپل حکومت مرکز مزار ښار وټاکه او هلته یې خپله نوي کابینه هم اعلان کړه، چې ښاغلی حکمتیار ورڅخه جلا او نور ورسره پاتې شوو.

"کله چې د شورای نظار بنسټ کیښودل شو، احمدشاه مسعود د بدخشان، کندز، فاریاب او شمال کې ځینو نورو ولایتونو قومندانانو ته وسلي ورکولي، ځینو قومندانانو ورسره مخالفت درلود، بصیرخان بدخشان کي، قاري رحمت الله کندز کې، چې د دوی مستقلې اړیکې او لیدنې احمدشاه مسعود له استاد رباني سره نه غوښتلي او بیا یې خپل منځ کې اختلافات پیدا شوو، هغوی د ځان له پاره سپکاوی گاڼه چې له مسعود څخه وسلې واخلي.

د جمعیت د کندز مشهور قومندان قاري رحمت الله او یوه ډله نور قومندانان پېښور ته استاد رباني ته ورغلل، هغه ته یې وویل چې موږ اخوانیان او پخواني قومندانان یو،

[٤٠] استاد محمد محقق: کله چې عبدالعلي مزاري مړ شو، خلیلي د حزب وحدت گوند د یوې شاخې مشر او استاد محقق د بلې شاخې مشر شو، وروسته دواړه یو ځای او د طالبانو ضد یې جگړې وکړي. پر افغانستان د امریکا د حملې پر مهال دواړه له امریکا سره ملگري شول. د کابل تر نیولو وروسته دواړه سره جلا او هر یو د بېل بېل گوند مشران شول.

د حامد کرزي د موقت حکومت پر مهال استاد محقق د ولسمشر مرستیال او د پلان وزیر، د ولسي جرگې دوو دورو غړی (۷ ډسمبر ۲۰۰۵ تر ۲۰۱۴)، د اجرائیه رئیس ډاکټر عبدالله عبدالله دویم مرستیال (۱۳ اکتوبر ۲۰۱۴ تر ۲۴ جنوري ۲۰۱۹) و.

موږ ته شرم دی، چې له مسعود څخه وسلې اخلو، دغه خلک ډیر وخت هلته پاتې او له استاد رباني سره خفه شول. مګر استاد رباني ورته وویل چې بله لاره نه لرئ، مجبوره شوو او بیرته د مسعود تر قوماندي لاندي خپلو سیمو ته ولاړل.

قومندان فهیم ګدا، قومندان پنا او یو شمیر نور علمي کسان مسعود له ځان سره ملګري او سیمې ته راوستل، د مسعود هر کار نړیوال پوښښ درلود، د لندن او فرانسې څخه بهرنیان پنجشیر ته ورتلل، فرانسویان هلته په پنجشیر کې وو او روغتیایې کومکونه یې کول، مسعود پیښور کې هم له پوهو او د زده کړو لرونکو کسانو سره رابطه ونیوله، هغوی یې تشویق کړل چې د ده سره کار وکړي. " سید داوود اغا

" ۱۹۹۱ ز. کال کې د روسانو او شورا نظار ترمنځ د بدخشان په اشکاشم کې مذاکرات وشوو، هوکړه وشوه چې د یو او بل تر کنټرول لاندي سیمو کې به لاسوهنه او جګړه نه کوو.[٤١] "

" د اګسټ ۱۲مه ۱۹۹۱ ز کال کې د پخواني شوروي اتحاد د بهرنیو چارو وزیر انډري کوزیروف Andrey Vladimirovich Kozyrev (۱۱ اکتوبر ۱۹۹۰ تر ٦ جنوري ۱۹۹٦) سره د مجاهدینو ځینو مشرانو د مولوي محمد نبي محمدي په مشري په اسلام اباد کې ولیدل، استاد ربانی یو روسی بندی هم د روسانو هیئت ته په تحفه کې وسپاره.

د ډسمبر ۲۱مه ۱۹۹۱ز کال کې د مجاهدینو ځینو مشرانو د صبغت الله مجددي په مشرۍ بیا ځل د روسیې د ولسمشر د مرستیال الکسانډر روتسکوی[٤٢] په مشرۍ د

---

[٤١] د (حوادث تاریخي افغانستان) کتاب چې د (جمیل الرحمن کامګار) له خوا لیکل شوی. د کتاب په وروستنیو برخو کې دغه اخځ لیک یواځې (حوادث تاریخي) لیکل کیږي.

[٤٢] الکسانډر روتسکوی Alexander Vladimirovich Rutskoy د پخواني شوروي اتحاد د ولسمشر بوریس یلتسین مرستیال (۱۰ جولای ۱۹۹۱ تر ۱۴اکتوبر ۱۹۹۳) و او (۲۲ سپټمبر ۱۹۹۳ تر ۱۴اکتوبر ۱۹۹۳) پوري د روسیې سرپرست ولسمشر و.

پخواني شوروي اتحاد له هیئت سره په اسلام اباد کې ولیدل. د بندیانو د تبادلې اړوند خبرې یې وکړي، ولي حکمتیار، سیاف او خالص بابا له روسي هیئت سره لیدنه رد کړه. " حوادث تاریخي

" ۱۹۹۱ ز کال کې چې شوروي اتحاد د ړنگیدو په درشل کي و، بوریس یلتسین واک ته رسیدلی و، کوشش یې کاوه چې افغانستان کې داسي اسلامي حکومت وي چې منځنۍ اسیا پولو او د روسانو گټو ته گواښ نه وي.

پلان داوو چې د مجاهدینو دموقت حکومت د مشر صبغت الله مجددي په مشري هیئت ماسکو ته ولاړ شي، مگر هڅې وشوي چې د استاد رباني (احمدشاه مسعود یې مهم قوماندان و) په مشري هیئت ماسکو ته ولاړ شي. د مجاهدینو هیئت د نومبر ۸مه ۱۹۹۱ / ۱۷ عقرب ۱۳۷۰ د سعودي عربستان د جدې ښار څخه ماسکو ته ورسیدل.

د مجاهدینو او روسانو تر منځ یو توافق لیک لاسلیک شو، مجاهدین د غراماتو له غوښتلو، صریحاً تیر، د روسانو تجاوز او جنگي جنایات نه محکوم کیدل، د روسانو د منافعو تداوم په افغانستان کي او د روسانو له خوا توافق چې د ډاکټر نجیب الله د حکومت سره د مرستو قطع کول او د مجاهدینو اسلامي دولت منل وو.

د مجاهدینو د هیئت سفر ماسکو ته د ډاکټر نجیب د حکومت او مجاهدینو د ځینو ډلو له خوا وغندل شو، حکمتیار اعلامیه خپره او د روسانو سره رسمي معاهده یې له جهاد سره خیانت، جهاد ته سپکاوی او روسانو ته یې د تسلیمي په معنی یاده کړه." جنگ های کابل ۱۱۰ - ۱۱۱ مي پاڼې.

محمد ابراهیم ورسجي چې د جمعیت اسلامي غړی دی، جهاد افغانستان وجنگ سرد ۴۱۵مه پاڼه کې لیکی چې د مجاهدینو د هیئت تگ ماسکو ته دملگرو ملتونو له خوا د سولې پروسي ته محکمه ضربه وه او د نجیب حکومت لپاره د زهرو په معنی وو. "

" احمدشاه مسعود په سیاسي، فرهنگي، نظامي او روغتیا برخه کې او دارنگه په دولت (خاد / استخباراتو، پولیس او اردو ) کې کسان درلودل. دا ډول یې پر دولتي

ځایونو د روابطو په واسطه حمله کوله، چې د بدخشان ولایت د کران او منجان ولسوالۍ باندی حمله یې نمونه یادولای شو.

۱۹۸۹ ز. کال کې د حزب اسلامي قومندان سید جمال د احمدشاه مسعود نږدې ۳۵ قومندانان د یو کمین په ترخ کې له منځه یوړل، وروسته بیا سید جمال د احمدشاه مسعود له خوا ونیول او په دار وځړول شو [۴۳]. له دي وروسته د احمدشاه مسعود اعتبار په کور دننه او دباندي لا نور زیات شو." سید داوود اغا

د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر مهال د ټانک قطعي مشر علي محمد خان ځدراڼ (د پکتیکا د اومنې ولسوالۍ اصلي اوسیدونکی) وایې چې له احمدشاه مسعود سره له روسانو سربیره په وروسته وختو کې افغان دولت هم قراردادونه درلودل، هغه وایې چې کله به موږ پنجشیر دري ته تلو، پر موږ ډز نه کیده او موږ ته به د کورنیو چارو وزارت له خوا یو شفر او یوه پرزه خط راکول کیده چې هغه به مو د مسعود وسلوالو ته ښکاره کاوه او هغوی به مزاحمت نه کاوه، موږ ته به د حکومتي جنرالانو له خوا ویل کیدل چې که د مسعود د وسله‌والو مرمیو، وسلو او یا هم نورو نظامي تجهیزاتو ته اړتیا وه، هغه باید ورکول شي، کله چې به د مسعود کسانو ته موږ مرمۍ، وسله او یا نور نظامي توکي ورکړل، د هغوی له خوا به موږ ته تسلیمي خط راکول شو، همهغه د مسعود د وسلوالو تسلیمي خط د کورنیو چارو وزارت کي په رسمي ډول منل کیدی.

---

[۴۳] ۱۸ سرطان ۱۳۶۸کې د حزب قومندان سید جمال د مسعود قومندانان د تخار ولایت، فرخار تنګي کې د کمین په ترخ کې مړه کړل، بیا مسعود سید جمال ژوندی ونیوي او په تالقان کې یې په عام محضر کې اعدام کړ.

۱۳۷۰ ل کال په اوایلو کې په کنړ کې د حزب اسلامي او مولانا جمیل الرحمن ترمنځ جګړه وشوه، جمیل الرحمن پکې ووژل شو.

## د شورای نظار او روسانو تر منځ پټې اړیکې

"کله چې په ۱۳۶۱ ل کال کې له مسعود سره روسانو قرارداد وکړ او دولتي قوتونه له پنجشیر څخه ووتل، د پنجشیر د خولې ۱۲ کلیومترۍ د عنابه سیمه کې د روسانو یوه قطعه ځای په ځای شوه، د مسعود لپاره یې د محافظتي قراول او گارد حیثیت درلود، نظامي او مالي امکانات یې هغه ته ورکول، د مسعود د مخالفینو حزب اسلامي په ټکولو کې یې ورسره مرسته کوله، له دي وروسته د روسانو او مسعود ترمنځ نږدې رابطه ایجاد شوه، د روسانو استخباراتي ادارې کي جي بي KGB کسانو د مسعود په ډله کې نفوذ وکړ." جنگ های کابل ٦٧ مه پاڼه.

" د ترکستان شبه نظامي عملیاتي گروپ چې په ۴۰م نمبر اردو کې یې دنده وه، وایي چې د شوروی اتحاد د سفیر یوري ام . ورسنوف او د دفاع وزارت د عملیاتي نظامي گروپ قومندان جنرال وي. آی. وارنیکوف له مسعود سره لیدنه وکړه. له هغه یې وغوښتل چې له افغان حکومت سره تړون وکړي چې دکابل – حیرتان لاره وساتي او یا یې په یواځې ډول حفاظت وکړي. هغه تړون چې لاسلیک شو

۱ – د نظامي عملیاتو بندیدل په جنوبي سالنگ، د کابل –حیرتان لاري شاوخوا سیمې، هر ډول ډز د جمعیت اسلامي تر کنټرول لاندي سیمو او افغان حکومت تر کنټرول لاندي سیمو کې بند دی.

۲ – د پنجشیر مسلح قوتونه د تاجکو په سیمه کې د لارو د ساتلو مسؤلیت لري، د ډز بندي، غلا او یا هم د شوروي او یا حکومت پر پوځیانو د حملو مخه به نیسي.

۳ – شوروي اتحاد به لازم اندازه مواد او تجهیزات، عاجل او اړین مواد او نور ضرورتونه دا ډول مادي مرسته د پنجشیر سیمه او د سالنگ په اوږدو کې د مسعود د وسلوالو کوي.

۴ – د نورو گوندونو وسلوالو ته اجازه نه ورکول کیږي، چې د تړون شوې سیمې ته داخل او د نفتو پایپ ته زیان ورسوي، که بیا هم نورو ډلو هڅه کوله چې ستونزې

پيداکړي، د شوروي اتحاد هوايي او توپخانه قوتونه به د پنجشير د قوتونو په غوښتنه ورسره مرسته کوي. تر څو د نورو ډلو خلک له منځه يوړل شي

٥ – د معلوماتو او مرستې شريکول چې په ياده سيمه کې د شوروي او افغان حکومت کسان ورک شوې دي.

٦ – په بيړنيو حالاتو کې چې انديښنې موجود وي، مجلسونه او غونډې چې د نظامي عملياتو څخه مخنيوی وشي‌او سوله تامين شي.

٧ – د ترون ساحه د تاجکو په ټوله سيمه کې د تير شوې سړک دواړو لورو ته ٣٠ کيلومتره اعتبار لري، په همدې پولو کې د شوروي اتحاد او پنجشير مسلح قوتونه حق لري چې د نورو ګوندونو د هغو کسانو په ضد نظامي عمليات وکړي چې د شوروي پوځيانو او پنجشير وسلوالو په ضد خپل عمليات نه قطع کوي.

٨ - دا ترون تر لاسليک وروسته سمدستی‌د تطبيق وړ دی."

منبع: په افغانستان کې د شوروي اتحاد نظامي‌عملياتي‌ګروپ - ډسمبر ١٩٨٨.

لاسليک د جنرال بي، وي.ګروموف، افغان دفاع وزير شاهنواز تني او احمدشاه مسعود.

شيبارشين، دستان، مسکو. پاڼه ١٧٧ – ٢١۴

د ياد سند يادونه جنرا ل عبدالقدوس هم په خپل کتاب ( جنګ های کابل) ۵۹مه او ٦١مه پاڼه کې کړي.

" روسانو د لارو په اوږدو کې د مجاهدينو د ګروپو سره ترون درلود او خپلې پوستې يې هم درلودلې، پرته له ستونزو يې نفت او مواد باګرام ته رسيدل او سالنګ کې ورته ستونزې نه وي. افغان دولت هم ٢ فرقې په جبل السراج کې د سرې تپې سيمه کې درلودلې چې دا لاره د حکومت لپاره حياتي وه.

د غنډ مرستيال ډګرمن عبدالمجيد د سالنګ پر لاره د مسعود او شوروي ترمنځ اړيکو څخه داسي يادونه کوي:

٢٨ اسد ١٣٦٧ شپه وه، نظامي کاروان په همدې شپه له حيرتان څخه را روان وو، سهار د ازادي او د افغان اردو د تاسيس ورځ وه.

جنوبي سالنگ کې امنیت له هیجان تر فلاتک د شوروي قواوو او له فلاتک څخه تر جبل السراج د افغان قواوو په غاړه وو.

د ۲۱۵ غنډ نقلیه کاروان چې له حیرتان څخه کابل ته روان وو، د سالنگ څخه له وتلو او د شوروي قواو د امنیت له سیمي (فلاتک) وروسته تر حملې لاندي راغلی وو.

موږ یې په سهار مرستې ته ورغلو، د سړک شمالي لوري تامین ما(ډگرمن عبدالمجید) ته راکول شو، خپل کسان مې لوړو څوکو ته سوق کړل، ټولو بیرته خبر راکړ چې ځای په ځای شوې، ۱۲ کسیز گروپ چې دوه افسران هم پکې وو، له هغوی سره تماس قطع شو، یو ساعت وروسته د چپ لوري پوستې خبر راکړ چې هغوی د احمدشاه مسعود مجاهدینو کمین کې ولویدل او ونیول شول.

د فرقي قومندان جنرال خدایداد خان (د مجاهدینو د حکومت په مهال د دولتي امنیت / استخباراتو وزیر، د کرزي د حکومت پر مهال له نشیې توکو سره د مبارزې وزارت معین او وروسته وزیر و) ته مې خبر ورکړ، هغه وویل که د افرادو په اړه سم راپور او دخلاصون کوشش ونه کړئ، سر له نن ورځې به محکمې ته معرفي کیږي.

ډیر خفه وم، د احمدشاه مسعود د ۱۳٦۴ کال، پنجشیر کې د چاه اهو [44] پیښه مې یاده شوه چې د مسعود کسانو د دولت ۸۹ نفره بندیان ونیول او ټول یې ووژل.

---

[44] مرکزي قول اردو ۱۵ نفري هیئت د سرطان میاشت ۱۳٦۴ کې د جنرال ارکانحرب احمدالدین خان تر مشري لاندي پنجشیر ته واستاوی، هیئت ډیر ژر د پنجشیر د پیشغور گارنیزون کې د مسعود د کسانو تر برید لاندي راغی، د لوړپوړی هیئت غړي او د مرکزي قول اردو افسران د مسعود له خوا ونیول شول . دولت د بندیانو د تبادلې وړاندیز وکړ، مسعود ونه مانه، دولت د خپلو زنداني افسرانو د خوشي کیدو لپاره عملیات پیل کړل، له هوا او ځمکې د اردو کسان ورته ورسیدل، په چاه اهو کې چې د مسعود زندان ته ننوتل، هلته یې د خپلو افسرانو مړي ولیدل، ټول وژل شوي وو. مخکې له دي چې د مسعود کسان له دي ځایه تیښته وکړي، د ۱۰ افسرانو په گډون، ټول ټال یې د دولت ۸۹ کسان وژلی‌وو او د ځینو جسدونه یې د پنجشیر رود ته غورځولي وو. (دغه شمیر د دفاع وزارت اوپراتیفي شعبې ورکړي). جنگ های کابل ۷۵ مه پاڼه.

په همدې سوچو کې وم چې د شوروي قواوو یو زرهپوش ټانک راغی، پر سر یې ډګرمن نجم الدین تاجک د شوروي پوځیانو د سالنګ میشت قطعي د اوپراسیون امر ناست و، هغه چې زما خراب حالت ولید، پوښتنه یې وکړه، ومې ویل چې ۱۲ کسان د مسعود خلکو نیولي دي، هغه مکث وکړ، ویې خندل، سګریټ یې ولګاوو، ویې ویل چې شهرت یې، د وسلو او مخابري نوعیت یې راته راکړه،وبه ګورو چې څه کولای شم. بیرته شاته وګرځید، کاروان خلاص شو، ترانسپورتي او تجاراتي ګاډي هم روان وو، ۴ ساعته وروسته ډګرمن نجم الدین د روسانو د قطعيد اوپراسیون امر له خپل زرهپوش سره موږ ته راورسیدی، دا ځل یې ټانک ډک وو، هغه ۱۲ تنه ورسره وو، مګر وسلې او د مخابرې دستګاه ورسره نه وه، د روسانو په غوښتنه د مسعود له مجاهدینو څخه ازاد شوې وو." جنګ های کابل ۶۲ - ٦٦ مه پاڼه.

جنرال عبدالقدوس په خپل کتاب (جنګ های کابل) ۷۱مه پاڼه کې د محمد اعظم سیستاني (کودتاه ثور وپیامد های ان در افغانستان) په حواله لیکي: په پنجشیر کې د دولت او روسانو مشترک عملیاتو په ترڅ کې یوه کلا محاصره شوه، چې افغان عسکرو ډیر تلفات هم ورکړل، کلا ته ورسیدل، محاصره شوه، احمدشاه مسعود په کلا کې دننه وو، افغان افسرانو غوښتل چې کلا ته ننوځي او مسعود ونیسي، په همدې وخت کې د شوروي قواوو د مشر له خوا ورته هدایت وشو چې نور عملیات به د شوروي اتحاد کماندویان کوي، افغان افسران سخت له دي کاره نا خوښ شوو.

د شوروي کماندویانو چورلکي راغلي، کلا ته کماندویان داخل شول، ۵ او یا ٦ نفره چې خپله مسعود هم پکې و، په چورلکو کې یې ورسره سپاره کړل، مګر د نیول کیدو پر ځای د مسعود د تیښتې او ژوندي پاتې کیدو خبر د پنجشیر له بلې سیمې څخه ورکول شو.

"د فراه د ۲۱ میکانیزه لواء قومندان (ډګروال ارکانحرب محمد هاشم خان د ګل محمد زوی، د نیازبیګ، کابل اوسیدونکی، ٦۱ او ٦۲ کلونو کې د لواء قومندان و) چې په فراه کې د ښار د باندي د شوروي پوځیانو قطعه موجوده وه، د هغوی اکمالات له تورغونډۍ څخه کیدل، چې تر تورغونډۍ پورې لاره دښتونه او صحرا

ده، د هرات ولایت سیمې دي، د اسماعیل خان مجاهدین هلته وو، د شوروي پوځیانو قطار چې دوو زرهپوش ټانکو نو به یې بدرګه کوله او اکمالات به یې له تورغونډۍ کول، بیا به بیرته له فراه تلل، هیڅ ډول مشکل سره نه مخ کېدل، یو زرهپوش ټانک د قطار په سر او بل ټانک به په اخر کې وو.

د افغان لواء لپاره بیا د تورغونډۍ په لاره هر وخت قطار تر برید لاندې راتلی، روسي جنرال څخه مې پوښتنه وکړه چې ولې مجاهدین ستاسي په قطار برید نه کوي، هغه د ښي لاس درې ګوتې ونیولې، چې موږ ورسره رابطه لرو (یعني پیسې ورکوو) او تاسي هم ورسره روابط جوړ کړئ.

عبدالقدوس خان وایې چې د حزب وطن په مرکزي شورا کې مې دنده درلوده، د ملي مصالحې سیاست اړوند مې ولایتونو ته ډېر سفرونه درلودل، د ١٣٦٦ څخه تر ١٣٦٧ ل کال پوري مې څو ځله د کاپیسا ولایت مرکز ګلبهار ته سفرونه کړي.

زه به ګلبهار ته د چورلکې په واسطه تلم، کله به کارونه عاجل وو، چورلکه به د هواء د خرابې له امله په وخت نه راتله، دوه ځله د ولایتي کمیټې منشي د شوروي لښکرو له کنډک چې د ګلبهار په سیمه کې و، د مرستې غوښتنه وکړه چې تر جبل السراج پوري ورسیږم.

اول ځل د شوروی پوځیانو یو زره پوش ماته راغی، د ترجمان لومړی خبره داوه چې د زره پوش داخل کې به ارام ناست یې، که چیرته د نظار شورا او جمعیت مجاهدینو د زره پوش داخل ته راوکتل او تاسي یې ولیدلئ، بیا ستاسي لپاره خطر دی او له خطر څخه د خلاصون تضمین موږ نه شو کولای. ما ومنله او ومې ویل چې جبل السراج ته ورسیږم.

د زره پوش داخل کې کیناستم، تر کلکین مې کتل، د بازار او دوکانو او دریاب هغه غاړه چې د جبل السرج په لور روان وو، مجاهدین مې لیدل چې ږیرې یې لرلې او چترالي پکولونه یې په سر او څلور خانه یې دسمالونه یې په غاړو کې وو، چای به یې څښې او یا سګریټ به یې څکول، د ټانک پر سر ترجمان ته به یې لاسونه ښورول.

د بازار په اخر کې یوه مجاهد چې نږدې یو چای خانه کې مسلح کسان ناست وو، زموږ زره پوش ته لاس ورکړ او ویې دراوو، ترجمان د ټانک داخل ته راوکتل او ماته یې په روسي وویل چې تاسي ارام اوسئ، دا ټول زموږ خپل خلک دي.

مجاهد ترجمان ته وویل (ولادیه) چې وعده دي کړي وه، څنګه شو، راوړي دي دي که نه؟ ترجمان وویل دا ځل مې عجله وه، ونشو، په همدي اونۍ کې یې حتماً راوړم. هغه مجاهد وویل که زه نه وم، د چایخاني مالک ته یې ورکړه، ماته رسیږي.

ترجمان ورته وویل چې تا خپله وعده څنګه کړه؟ راوړي دي دي که نه؟ مجاهد د خپل جمپر له جیب څخه په کاغذ کې پیچل شوي چرس ورکړل، او وعده شوې روسي ودکا / شراب به ترجمان بیا ورته راوړي. زه سم سلامت جبل السراج کې د دویمي فرقي قرارګاه ته ورسیدم." جنګ های کابل ۸۷ - ۹۰ مه پاڼه.

۲۱ اکتوبر ۲۰۱۷، ما ( لیکوال) ته ډګروال امان الله خان صدیقي، د پغمان اوسیدونکی، اوس مهال د امریکا په ویرجینیا ایالت کې اوسیږي، هغه وویل:"دفاع وزارت کې د ۲۰۶ اوپراتیفي او اجنتوري ( څارګري) قطعي قومندان وم، یو ځل موږ د ډاکټر نجیب الله د حکومت په وخت کې له دفاع وزیر جنرال شاه نواز تني سره په نږدې پنځه زریپوښ ټانکونو کاروان کې د ځمکې د لارې مزار شریف ته روان وو، کله چې سالنګ سیمې ته ورسیدو، هلته یوه امنیتي کس د خپل پیکا میل د ټانک څخه پورته کړ، چې کومه امنیتي ستونزه پیښه نه شي، کله چې د دفاع وزیر ورته پام شو، هغه ته یې وویل چې ژر دي د پیکا مېل بیرته ټانک ته داخل کړه، زموږ امنیت ډاډمن دی او زموږ د امنیت مسؤلیت احمدشاه مسعود په خپله غاړه اخیستي، هیڅ ډول اندېښنه نشته، هغه ساتونکي همداسي وکړل او موږ په ډیر ډاډمن او امنیتي حالت کې مزار شریف ته د ځمکې د لارې ورسیدو."

"د فراه د میکانیزه لواء قومندان (۱۳۶۳ ل کال ) جنرال ارکانحرب محمد هاشم خان وایې چې د شوروي یو مهم او واکمن مشاور جنرال لارین چې د حوزه جنوب غرب مسؤلیت یې په غاړه درلود، وویل چې ۴۰۰ میله کلاشینکوف چمتو کړه. ومې ویل چې دومره وسله د لواء په ډیپو کې نشته، روسي جنرال وویل چې زه

امر کوم، ومی ویل چې تاسي زما آمر نه یاست، زما آمر د دفاع وزیر جنرال عبدالقادر دی. زه تاسي ته یوه مرمۍ هم د وزیر له امر پرته نه شم درکولای، تاسي د شوروي قطعي چې زموږ په څنګ کې ده، له هغوی څخه سلاح وغواړئ.

بالاخره جنرال لارین د پولیسو قومنداني تر فشار لاندي راوړه، له هغوی څخه یې ځینې وسلي او باقي یې د شوروي له دیسانټ قطعي چې د فراه میدان هوایې کي وه، تر لاسه او د چورلکو په واسطه یې د ګلستان او پرچمن ولسوالي کې د تورن اسماعیل د جمعیت اسلامي اړوند مجاهدینو ته ولیږلي. او زه بیا د همدې جنرال په غوښتنه له وزارت دفاع څخه تقاعد ته مجبوره کړل شوم. وروسته دفاع وزارت زما تقاعد بیرته مسترد او په احتیاط بست کې ونیول شوم." جتګ های کابل، ۱۰۳مه پاڼه.

د جون ۱۷مه ۲۰۱۷، استاد محمد زمان مزمل د تاج محمد وردګ [٤٥] له خولې ما(لیکوال) ته وویل:" د کابل پخوانی والي اسماعیل خان وردګ ( د پاچا ظاهرخان وخت کې والي وو) د روسانو د تجاوز وخت کې چې ډیر په تن کمزوری او ضعیف شوی و، کابل کې سوړ ماښام و، واوره وریدلي وه، والي اسماعیل خان واوري ته د باندي ولاړ و، زه ( تاج محمد وردګ) له پلچرخې تازه را خوشی شوی وم او زما د تیریدو لاره همدا وه، چې والي اسماعیل خان مې د کور مخکې واورې ته ولاړ ولید، ورڅخه پوښتنه مې وکړه، چې ولي د بدن په دي ضعیف حالت کې دې سړې هواء او واورې ته ولاړ یې؟

والي اسماعیل خان وویل: تودې بخارې ته ناست وم، یاد مې شول هغه مجاهدین، چې نن شپه به په همدې سړه هواء کې په غرونو کې شپه تیروي او د یرغلګرو روسانو مقابله کوي، له همدې امله چې خپل محبت له مجاهدینو او د هیواد له ازادي ګټونکو سره د خدای ج په وړاندي وښیم، له ګرمې بخاري را ولاړ شوم او د

---

[٤٥] تاج محمد وردګ د پاچا ظاهر خان پر مهال د بدخشان والي و، پر افغانستان د امریکا له برید وروسته، د حامد کرزي د واکمنۍ پر مهال د خوست والي او د لنډ وخت لپاره د کورنیو چارو وزیر و.

مجاهدینواو هیواد ازادي ګټونکو په محبت کې څو شیبې همدلته سړې هواء او واورې ته دریږم."

تبصره نه کوم، یواځې دومره وایم چې والي اسماعیل خان وردګ او د حق د لارې سپیڅلي مجاهدین دي  الله جل جلاله وبخشي، د هغوی روحونه دي الله ج خوشاله لري، چې خبر نه شي، چې هغه د پخوانیو مجاهدینو ډیری خپله او یا خو یې زامن نن په امریکایې شوبلو او رنجرو کې سپاره او زموږ له افغان ولس سره په جګړه  بوخت او خپل ولس وژني.

" د جګړیېزې قطعې وسلوال زموږ په چورلکو کې زابل ولایت ته ولاړل او په قلات کې پیاده شول، د دې لپاره چې څارنه وکړم، زه په ان ۳۲ الوتکه کې قلات ته ولاړم؛ غوښتل مې وګورم چې چورلکې په سم ډول افغان ځواکونه خپل نښه شوو ځایونو ته رسوې او یا کومه ستونزه خو به نه وی، په دې وخت کې زه د هوایې قواوو قوماندان وم، ګورم چې دوه جیټ الوتکې زما له الوتکې څخه مخکې تیرې شوې، ولې ما ولیدل چې هغوی بمونه د قلات ښار د باندې په یوه لویه دښت کې وغورځول، او ما دا هرڅه په خپلو سترګو ولیدل، د جګړې ډګر کې یې بمبارد ونه کړ او ما یې هم بیا هیڅ پوښتنه له پیلوټانو څخه ونه کړه، چې ولې یې دا کار وکړ. " جنرال امرخیل

د جنوري ۲۶مه ۲۰۱۸، استاد محمد زمان مزمل موږ ( ذاکر جلالي، شاکر جلالي او مطمئن) ته وویل:"قوماندان عبدالقادر چې د کابل سرای خواجه کې یې اطاق درلود، هغه به خپلو مجاهدینو ته ویل چې ماته به قهرمان او یا زړور نه وایاست، قهرمان او زړور هغه روسی دی چې له شوروي خاورې څخه راغلی، دلته د خپل وطن د ګټو لپاره زموږ سره جګړه کوي. هغوی (روسان) په پردۍ خاوره (افغانستان) کې چې مصنوعي غذایې خوراک ورته ورکول کیږي، جګړه کوي او موږ په خپله خاوره کې چې تازه انګور او طبعي خوراک راته رسیږی، د دفاع لپاره یې جګړه کوو، له دې امله روسی قهرمان ګڼم.

مزمل صاحب وایې چې قوماندان عبدالقادرخان تر پایه په کابل کې له روسانو او افغان کمونستانو سره جګړه وکړه، هغه به د ځان او ملګرو لپاره ۴۰ کفنونه چمتو

ګرځول او د روسانو سره يې جهاد کاوه، تر څو چې ژوندی و د دوی کلي ته د روسانو او حکومت پوځيان ور داخل نه شول."

ملا نیک محمد اخوند چې د کندهار ولایت د سنګیسار سېمه کې يې د سرو لښکرو په وړاندي جهاد کاو، د هغه وخت نور مجاهدين او د ملا نیک محمد ملګري وايي چې په يواځي سر به د سرو لښکرو لويو قواوو ته د جګړې لپاره ور وتی او ملا نیک محمد اخوند په سيمه کې د طالبانو د جبهې مشهور او پېژندل شوی مجاهد و.

هغه به له ځان سره راکټ، پیکا او خفیف ماشیندار درې واړه ګرځول، يوه مهمه خاطره چې ما (مطمئن) له ښاغلي ضعیف صاحب څخه د ډسمبر ۲۰مه ۲۰۱۷ واوریده: " یو ځل ملا نیک محمد اخوند د مستو ټوکرۍ ( د یو ډول لښتو څخه جوړه شوې ) په ختهو لړلي وه، د سړک پر غاړه د روسانو د لومړي څارونکي ټانک لپاره يې کمين نیولی و، د سړک په غاړه يې په همدې ختهو لړلي ټوکرۍ کې ځان پټ کړی و، کله چې هغه څارونکی ټانک ورته را ورسید، له ټوکرۍ څخه په چالاکۍ سره ور ووتی او په ټانک يې د راکټ ډز وکړ، ټانک يې وسوځاو. ضعیف صاحب وويل؛ ملا نیک محمد خپلو مجاهدو ملګرو ته ويلي وو که زما سر له تن څخه جلا شوی و، نو تاسي پوه شئ چې زه شهيد يم او بل دا که زه شهید شوم، ما به همدلته په سنګیسار کې ښخوئ، بل ځای به مې نه وړئ. ضعیف صاحب وايي: رښتيا هم چې کله ملا نیک محمد اخوند شهید شو، د هغه سر له تن څخه جلا شوی و، سر يې نه و، د ټانک په مرمۍ لګيدلی و.

د ملانیک محمد وروڼو غوښتل او ټينګار يي کاوه چې شهيد ملا نیک محمد اخوند خپلې سيمې (تيري –ارزګان) ته يوسي. هر څومره چې مجاهدينو هغوی ته وويل چې د شهيد ورور وصيت يې داو چې هغه بايد همدلته ښخ شي، مګر د هغه وروڼو نه منله.

د هغه وخت قوي موټر (آهو –سیمرغ) ته يې د شهيد ملانیک محمد اخوند جسد ور پورته کړ، په دې وخت کې لړ باران شوی و، کله چې آهو موټر حرکت وکړ، سليفونه يې پېل کړل او حرکت يې نه شو کولای، مجاهدينو بيرته ورڅخه د شهيد

جسد کښته کړ، موټر يې ټېله کړ، موټر حرکت وکړ، روان شو، بيا يې د شهيد ملا نيک محمد اخوند جسد مبارک هغه موټر ته ور پورته کړ، چې موټر ته يې حرکت ورکړ، په همدې سمه دمه ځمکه يې دومره زيات سليفونه وکړل، چې هيڅ حرکت يې نه شو کولای، بيا يې ورونيو ومنله او د الله ج په وړاندي يې توبې وکښلي. مجاهدينو ملا نيک محمد اخوند په سنګيسار کې ښخ کړ، د سنګيسار سيمې هديره کې د هغه مزار اوس هم شته.

ښاغلی ضعيف وايې چې شهيد ملا نيک محمد اخوند د کندهار له مشهورو او نوموتو مجاهدينو څخه و، ځيني وختونه به د روسانو سره د جنګ پر مهال ملا نيک محمد، ملا محمد عمر مجاهد [٤٦] او ملا معاذ الله اخوند سره ملګري وو.

دا رنګه شهيد ملا فداء محمد اخوند او شهيد ملا خواص هم د خپل وخت تکړه مجاهدين وو.

---

[٤٦] ملا محمد عمرمجاهد د کندهار ولايت د خاکريز ولسوالی د چاه همت کلي کې په ۱۹۶۰ ز.کال کې زيږيدلی دی، د طالبانو د اسلامي تحريک بنسټ ايښودونکی، د طالبانو روحاني او معنوي مشر، ديني زده کړې يې د ارزګان ولايت د دهراود ولسوالي د شهرکهنه سيمې ديني مدرسې کې کړي دي.

د پخواني شوروي اتحاد د سرو لښکرو پر ضد جهاد يې د ارزګان د دهراود ولسوالی څخه پيل او بيا په ۱۹۸۳ ز. کال کې کندهار ته د جهاد لپاره ولاړ هلته يې د ميوند، ژړی، پنجوايي او ډنډ ولسواليو په مربوطاتوکې د شوروي او افغان کمونسټ پلوه قواوو په ضد د حرکت انقلاب اسلامي اړوند جبهو کې جهاد کاو.

په اکتوبر ۱۹۹۴کال کې يې د خپلسرو وسلوالو پر ضد د طالبانو د اسلامي تحريک تر نوم لاندي جګړه پيل کړه، د ۱۹۹٦ د اپريل پر ۴مه د ۱۵۰۰ علماوو له خوا د "اميرالمؤمنين" لقب ورکړل شو. د ۱۹۹٦ز. کال د سپټمبر پر ۲۷مه نيټه طالبانو کابل تر خپل واک لاندي راوستی او د ۲۰۰۱ د نومبر پر ۱۳ مه، د امريکا او ناټو قواوو د بريد په پايله کې د طالبانو نظام ونړيدی، کابل يې له لاسه ورکړ.

ملا محمد عمرمجاهد د طالبانو د سرچينو په حواله، په ۲۰۱۳ د اپريل په ۲۳مه د زابل ولايت د سيوري ولسوالی په يوې لرې پرتې سيمې، د عمرزو په کلي کې له نړۍ څخه سترګې د تل لپاره پټې کړي.

## د کابل نیول او کورنۍ جګړه

" د تڼي کودتا [47]د ژورو اختلافونو زېږنده وه، شا نواز تڼي خپل استازې پېښور کې د حزب اسلامي او جمعیت اسلامي خلکو ته استولې وو، د دواړو ډلو مشرانو منلې وه چې د تڼي د کودتا ننګه به کوي، کله چې استاد رباني خبره له مسعود سره شریکه کړه، مسعود وویل چې موږ باید د تڼې له کودتا څخه ننګه ونه کړو، چې کودتا وشوه، حزب اسلامي يې ننګه وکړه او جمعیت اسلامي پټه خوله پاتې شو[48].

کله چې د ډاکټر نجیب او رشید دوستم تر منځ اختلافات زیات شول، د روسانو او ایران په مستقیم دخالت دوستم او مسعود سره یوځای شوو او د کابل حکومت ته يې د جبل السراج د تړون له مخې سقوط ورکړ." احمد وحید مژده

" د مارچ ۲۴مه ۱۹۹۲ ز کال کې د دوستم ملیشو د احمد شاه مسعود او عطاء محمد نور [49]له مجاهدینو سره مرسته وکړه او د مزار شریف ښار د مجاهدینو لاسته ولوید او د اپریل ۱۵مه د باګرام هوایې اډه هم مجاهدینو ونیوله.

---

[47] د خلقیانو او پرچمیانو ترمنځ اختلافاتو له امله، خلقي دفاع وزیر شاه نواز تڼي د دولت مشر پرچمي ډاکټر نجیب په ضد ناکامه کودتاه (۱٦ کب ۱۳٦۸ / ٦ مارچ ۱۹۹۰) وکړه،. او له کورنۍ سره یوځای په چورلکه کې پاکستان ته وتښتید.

[48]د جولای ۱۹مه ۲۰۱۷، پغمان کې استاد سیاف موږ ته وویل:"د تڼي کودتاه کې یو لوري ته خلقیان (د حزب اسلامي سره) او بل لورته پرچمیان (د جمعیت اسلامي) سره ملګري شول."

مګرحفیظ منصور په خپل کتاب بهای ازادي ۲۰ مه پاڼه کې لیکي:"د ډاکټر نجیب، تڼي او حکمتیار ترمنځ د قومې اړیکو له کبله په دفاع وزارت کې له احمد شاه مسعود سره یو شمیر مهم کسان ملګري او د ډاکټر نجیب د حکومت د سقوط لامل وګرځیدل، د وزارت دفاع مرستیال نبي عظیمي، لوی درستیز اصف دلاور، د ۵۵مې لواء قومندان بابه جان، د حیرتان د ۷۰مې لواء قومندان جنرال مؤمن د شورای نظار سره په ٦مه ناسته (ثور ۱۳۷۰ ل کال) کې لاس یو کړ."

[49]عطامحمد نور د جمعیت اسلامي د بلخ ولایت مشهور پخوانی جهادي قومندان و. په شمال کې يې له طالبانو سره سختې جګړې وشوې. پر افغانستان د امریکا له حملې وروسته د بلخ والي (۲۰۰۴ – ۲۵ جنوري ۲۰۱۷) و، اوسمهال د جمعیت اسلامي ګوند اجراییه مشر دی.

۱٦ اپریل ۱۹۹۲، ډاکټر نجیب الله مجاهدینو ته د واک د سولئیز انتقال په خاطر له خپلې دندې استعفی ورکړه. امریکا، پاکستان او ایران له مجاهدینو وغوښتل چې د کابل رژیم نور د زور د لارې سقوط ورنه کړي او موقت حکومت تشکیل کړي، ځکه د جنگ له لاري دکابل نیول د ملګرو ملتونو (د واک سولئیز انتقال) پلان له منځه وړي. " حوادث تاریخي

د حزب اسلامي له لوري د ډاکټر نجیب الله د استعفی غبرګون کې د شهادت ورځپاڼې په ۴۵۵مه ګڼه سرمقاله کې لیکل شوی و:"په هیواد کې د ننه د ناوړه اقتصادي حالت او د کابل رژیم سره د ماسکو د نه مرستو له کبله ډاکټر نجیب الله اړ شو چې له خپلې دندې استعفی ورکړي. حکومت په ولس کې ځای نه درلود، په شمال کې یې د ملیشو همکاري له لاسه ورکړي، له دي امله حکومت پرته له سقوط څخه بله چاره نه لري[۵۰]. " ۵٦مه پاڼه، علل سقوط دولت اسلامي

مګر د جمعیت اسلامي مشر استاد رباني د کابل حکومت سقوط د مزار شریف له فتحې سره تړاو ورکاوو.

" ۱۸ اپریل ۱۹۹۲ز کال کې واک عملاً نبي اعظمي، اصف دلاور، جنرال مومن او جنرال بابه جان لاس کې واخیست، ولي لا هم ډاکټر نجیب الله په کابل کې و.

۲۲ اپریل ۱۹۹۲ د ملګرو ملتونو استازي بینن سیوان چاریکارو کې له مسعود سره ولیدل، د مسعود له خوا په کابل نه حمله یې وستایله، مسعود وویل که حکمتیار واک او زور درلود په کابل یې حمله کوله. او بیا دوه ورځې وروسته د اپریل په ۲۴مه د مسعود کسان پرته له وسلو کابل ته ننوتل او په کابل کې د پخوانیو پرچمیانو له خوا مسلح شول، په همدې ورځ د ماسکو څخه په دوو چورلکو کې نغدي افغانۍ کابل ته را ورسیدلي. " حوادث تاریخي

[۵۰] "علل سقوط دولت اسلامی افغانستان تحت قیادت استاد رباني درکابل" د استاد علام الدین اثیر کتاب. د کتاب په وروستنیو برخو کې دغه اخځ لیک یواځې "علل سقوط" لیکل کیږي.

" ډاکټر نجیب د ثور په ٥مه ١٣٧١ / د اپریل ٢٥مه ١٩٩٢ کوشش کاوی چې له کابل څخه د هوا دلاري ووځي، د ٥٣ فرقي د پوځیانو له خوا چې د هوایې ډګر خواجه رواش کې وه، د ډاکټر نجیب الله له هیواده د وتلو ممانعت وشو، احمدشاه مسعود ویلی وو چې جنرال بابه جان پرینښود چې نجیب له هیواده ووځي، بیا نجیب د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه یوړه." ٥٣مه پاڼه، علل سقوط

" ډاکټر نجیب الله په خپلو لیکونو کې یادونه کړې چې د شپې دوه بجې د بینن سیوان [٥١] دوه سیاسي او یو نظامي مرستیال په ارګ کې اول نمبر قصر ته راغلل، هغوی ویل چې بینن سیوان د کابل هوایې ډګر ته راغلی، الوتکه یې محاصره شوي او ده ته د کښته کیدو اجازه نه ورکول کیږي. ورته وایې چې بیرته پاکستان ته پرواز وکړي. ډاکټر نجیب لیکي چې د تلیفون لورته ورغلم، چې ګرده لاینونه قطع شوې. د ملګرو ملتونو په موټرو کې ورسره ووتلم، چې په څلور لاري کې د ټوپکوالو له ګواښ سره مخ شوو.ګارنیزون ته مې د ملګرو ملتونو له مخابري تماس ونیو، نبي عظیمي جواب راکړ، هغه ته مې وویل چې بینن سیوان ته ستونزه مه جوړوئ، سهار څلورنیمي بجې یې بینن سیوان هم د ملګرو ملتو دفتر اسګاپ ته راوست او له ما یې وغوښتل چې نور له دغه ځایه دباندي ونه وځم"

د نجیب په قلم نشر شوی لیک، وطن یا کفن جریدې، لومړی کال، دویمه ګڼه

"د جبل السراج د تړون [٥٢] له امله و چې د ملګرو ملتونو طرحه یې ګډه وډه کړه، نورو ګوندونو ته یې په حکومت کې د وړ ونډې څخه ډډه وکړه، چې بالاخره کورنی

---

[٥١] بینن سیوان Binan Siwan د افغانستان لپاره د ملګرو ملتونو ځانګړي استازي و چې په ١٩٩٢ کې یې د افغانستان سولې لپاره پنځه ماده ایزه طرحه باندي ډاکټر نجیب الله او مجاهدینو توافق وکړ، هغه هڅه کوله چې له ډاکټر نجیب الله څخه په سولیېزه توګه واک د مجاهدینو د لنډ مهاله حکومت مشر حضرت صبغت الله مجددي ته انتقال شي، مګر د احمدشاه مسعود او پرچم ډلې د ایتلاف له امله د ملګرو ملتونو د سولې طرحه عملي نه شوه.

[٥٢] په جبل السراج کې د شورای نظار د مشر احمدشاه مسعود او پرچم ډلې ترمنځ هوکړه وشوه، چې د ډاکټرنجیب الله حکومت به نسکوروي او واک به په لاس کې اخلي،

جګړه لومړی د مسعود + دوستم او حکمتیار بیا د سیاف او عبدالعلي مزاري (هزاره توکمه جهادي مشر)، له هغه وروسته دوستم کله له حزب اسلامي اوکله له مسعود سره، هزاره توکم له حزب سره او استاد سیاف له مسعود سره چې ډیرې جګړې یې له هزاره ګیانو سره درلودلي، کورنۍ جګړه ورځ تربلې زیاتیدله، روسانو، ایران، هند او پاکستان په دغه ناولي جګړه کې شکیلتیا درلودله.[۵۳]

مسعود د کابل له نیول کیدو وروسته د حزب سره لومړی جګړه او بیا په وروسته وخت کې د هزاره قوم [۵۴] سره هم سختې جګړې وکړي، غوښتل یې واک په خپل انحصار کي وساتي. " وحید مژده

" د کابل د جګړو اسباب د ډاکتر نجیب الله د حکومت له سقوط څخه مخکې ایتلافونه ګڼلای شو، د پرچم ډلې کسان له مسعود سره یوځای او دا کار بیا حکمتیار کودتاه وګڼله. " سید داوود

" د ډاکتر نجیب الله سره نبي عظیمي دګارنیزون قومندان، اصف دلاور لوی درستیز، سعیدي د ګارد قومندان، عبدالفتاح د مدافع هوایې لوی قومندان ډیر زیات خیانت وکړ.

دوستم له ډاکتر نجیب الله سره ډیرې نږدې اړیکې درلودلې، مګر پورته کسانو غوښتل چې ببرک کارمل واک کې بیا ځل راشي، کله چې دوستم په ارګ کې له ډاکتر نجیب الله سره لیدنه درلودله، هغه وخت کې د دوی د ډلې کسانو د دوستم موټر کې

---

همداسي يې وکړل.

[۵۳] د اګست ۳مه ۲۰۲۰، د هندي جاسوس یتیش یادو کتاب "را: د هندوستان د پټو عملیاتو تاریخ" چاپ، یوه ورځ وروسته "د نیوز The News" پري راپور چمتو کړ، کتاب کې لیکل شوي:"د هند استخباراتو (را) په افغانستان کې د احمد شاه مسعود به ګډون درې جنګسالاران ګومارلي و، چې دوه نور يې اوسمهال هم د افغانستان په سیاست کې فعاله ونډه لري."

[۵۴] د افشارو قتل عام د دلوې میاشت ۱۳۷۱ چې ۵۰۰۰ کسان پکې ووژل شول. جنګ های کابل، ۱۷ مه پاڼه.

بیکاره ماین ځای په ځای کړی و او بیا یې دوستم ته خبر ورکړ چې ډاکټر نجیب الله غوښتل تاسي له منځه یوسي، له همهغه وروسته د دوستم اړیکي له ډاکټر نجیب الله سره خرابې او د ببرک کارمل ډلې سره یې لاس یو کړ. " جنرال امرخیل

د جون ۲۹مه ۲۰۲۰، د ١٦مې زرهدار فرقي قوماندان علي محمد خان ځدراڼ ما (لیکوال) ته وویل:"د ډاکټر نجیب ګارد ۱۲۰زره وسلوال وو او د ګارد د قوماندان تر امر لاندي څلور "د قرغې ۸مه فرقه، د جلال اباد ۱۱مه فرقه، د کنړ ۹مه فرقه او د ریشخورو ۷مه فرقه" فرقې وي هم وي.

د ډاکټر نجیب د ګارد عمومي قوماندان جنرال افضل الدین احمدزی و، هغه پرچمی و، خو د ډاکټر نجیب د ډلې سړی نه و. وروسته د ګارد قوماندان سید اعظیم وټاکل شو. داچې د ډاکټر نجیب میرمن شمالېواله وه، ځکه په ګارد کې هم ټول واک له شمالېوالو سره وو.

زما (ځدراڼ) سره فرقه کې ۱۳زره پوځیان وو، ۵۰۰ ټانکونه "۳۰۰ محاربوي ټانکونه کابل کې، ۱۰۰ جلال اباد او ۱۰۰ په کونړ کې" وو.

کله چې ډاکټر نجیب الله د ملګرو ملتونو استازي بینن سیوان ته د استعفی ورکولو هوډ درلود، هغه ته مې وویل چې استعفی مه کوه، موږ ۳۰۰ ټانکونه، د توپچي غونډ، د د اوراګانو غونډ او ۱۳زره پوځیان لرو، زه جګړه کوم، مګر ډاکټر نجیب ویل چې تاسي جګړه مه کوئ او زه استعفی ورکوم.

ډاکتر نجیب الله وویل، دوه پلانه روان دي:
لومړی: داچې زه استعفی ورکړم او د بینن سیوان طرحه عملي، وروسته وخت کې واک په سولئیز ډول بې طرفه "د پاچا ظاهر د ډلې عبدالستار سیرت" ته وسپارل شي[55].

[55] د ملګرو ملتونو د استازي بینن سیوان پلان داوو چې واک بې طرفه د پاچا ظاهر د ډلې کس پروفیسور عبدالستار سیرت ته وسپاري، مګر د مجاهدینو رهبرانو یې مخالفت کاوه او بالاخره بینن سیوان له مجاهدینو سره ومنله چې له ډاکټر نجیب الله څخه د موقت حکومت ولسمشر حضرت صبغت الله مجددي ته ولیږدوي، مګر د انجنیر احمدشاه مسعود له خوا دغه پلان ناکام او د ببرک کارمل پلوو پرچمیانو په ملګرتیا کابل ته په زور ننوت.

دوېم: روسان غواړي چې واک استاد برهان الدين رباني او انجنير احمد شاه مسعود ته وسپاري، دوی غواړي چې د بينن سيوان طرحه ناکامه او کابل په زور ونيسي."

" محمد اسحق توخي د نجيب دستيار ليکي چې د ۱۹۹۲ جنوري مياشت په اوايلو کې د سويس د زيوريخ ښار کې د ۳ جهادي گوندونو او اروپا کې افغانانو سره د کيناستو زمينه برابره او يوه اونۍ هلته پاتي شوو.

په ناسته کې نجيب الله مجددي د صبغت الله مجددي استازي، سلجوقي د پير سيد احمد گيلاني استازي او شهناز احمدزی د مولوي محمد نبي محمدی استازي، دکتور جليل شمس په اروپاه کې د افغان روشنفکرانو په استازيتوب او د افغان حکومت په استازولي عبدالوکيل د بهرنيو چارو وزير، غلام فاروق يعقوبي د دولتي امنيت وزير، دکتور ضميرميهن پور د امنيت دولتي وزارت د سياسي کشف رئيس، زلمی شهباز په سويس کې د افغانسان شاژدافير گډون کړی وو.

د غونډې اجنډا، د جنگ توقف، د سولې تامين او د موقت حکومت تشکيل او د لويې جرگې تدوير وو. د ډاکټر نجيب استازو د پير گيلاني د استازي داخبره چې ظاهرشاه ته واک ورکول شي ومنله، د صبغت الله مجددې زوی مخالفت وکړ، ويې ويل چې حضرت صبغت الله ته بايد واک تسليم شي او ډاکټر نجيب منلي وه که ظاهرشاه راضي وي، واک ورته سپاري. "جنگ های کابل ۳۲۳ – ۳۲۴مې پاڼې.

"۱٦ اپريل ۱۹۹۲ راپورونه ورکول شول چې امريکا، پاکستان او ايران له مجاهدينو وغوښتل چې د کابل رژيم ته سقوط ور نه کړي او موقت حکومت تشکيل کړي، ځکه د جنگ له لاري کابل نيول د ملگرو ملتونو د موقت حکومت پلان له منځه وړي."

د پېښور په گورنر هاوس (د والي کوټۍ) کې د اپريل ۲۵مه ۱۹۹۲، د مجاهدينو د مشرانو له خوا پريکړه وشوه، چې د دوو مياشتو لپاره به حضرت صبغت الله مجددي ولسمشر وي، له هغه وروسته به واک استاد برهان الدين رباني ته انتقال کيږي او هغه به د ۴ مياشتو لپاره د ولسمشري په موده کې ازادو ټاکنو ته لاره

هواروي، دا ډول پریکړه وشوه چې انجنیر ګلبدین حکمتیار به د حکومت لومړی وزیر وي او د هغه لپاره درې مرستیالان هم وټاکل شوو، پیر سید احمد ګیلاني چې د بهرنیو چارو وزیر به هم وی، استاد سیاف چې د کورنیو چارو وزیر به هم وي ( استاد سیاف پر خپل ځای انجنیر احمدشاه احمدزی یادو دندو ته معرفي کړ) او مولوي محمد یونس خالص چې د پوهنې وزیر به هم وي.

مولوي محمد نبي محمدي د سترې محکمې رئیس وټاکل شو (په خپل ځای یې مولوي محمد شاه افضلي معرفي کړ[۵۶].



انځور: مولوي جلال الدین حقاني

[۵۶] د نومبر۱۵مه ۲۰۱۷، ما (لیکوال) ته استاد مزمل وویل چې د حزب اسلامي کاندید مولوي محمد نبي محمدي و، کله چې جمعیت اسلامي خبر شو، له سیاف څخه یې مرسته وغوښتله، سیاف مولانا فضل الرحمن راوست او هغه مولوي محمد نبي محمدي ته وویل چې له اخوانیانو سره دي ګوزاره نه کیږي، حضرت صاحب پریږده چې مشر شي، محمدي صاحب ته یې څه نقدي مرسته هم ورکړه، زموږ پروګرام یې راخراب کړ.

# حضرت صبغت الله مجددي

۲۸ اپریل ۱۹۹۲ – ۲۸ جون ۱۹۹۲

" د لومړي وزیر خالقیار له خوا د ثور ۸ مه ۱۳۷۱ ل کال کې د پرچم ډلې له خوا واک حضرت صبغت الله مجددي ته ولیږدول شو[۵۷]، چې ځینې د کابینې غړو او لوړ پوړو نظامي کسانو هم شتون درلود، خو د ولس مشر ډاکټرنجیب الله مرستیالانو عبدالرحیم هاتف او جنرال محمد رفیع ګډون نه وو کړی. ځکه هغوی ویل چې دا حکومت مشروعیت نه لري او د ملګرو ملتونو د سولې پروسې سره سم نه، بلکې د کورنۍ جګړې دوام به وي." جنگ های کابل ۲۴۱مه پاڼه

حزب اسلامي ته چې د مجاهدینو د لنډ مهال حکومت د لومړي وزیر چوکۍ ورکول شوی وه، د اپریل په ۲۸مه ۱۹۹۲ حکمتیار په خپل ځای استاد فرید لومړی وزیر اعلان کړ."

د اپریل ۲۹مه احمدشاه مسعود د پروان د لارې څخه کابل ته ننوتی، په پروان کې چې ډیری د حزب اسلامي قوتونه پراته وو، هغوی د مسعود کابل ته د ننوتلو مخنیوی ونه کړ، د پروان ولایت د حزب اسلامي مهمو قومندانانو ته د حزب اسلامي د اجرائیه شورا دوو پخوانیو غړو استاد محمد زمان مزمل او ډاکټر عبدالبصیر انور په پټه احوال لیږلی وو چې د احمد شاه مسعود مخه ونه نیسي، هغوی ویره درلودله، که کابل ته د مسعود مخه ونیول شي، واک به د حکمتیار او پښتنو سره انحصار شي او قومي جګړې به پیل شي، دا هر څه هغه وخت سرچپه شوه، چې کله مسعود کابل کې خپل وسلوال ځای په ځای او له پرچم ډلې سره یې ایتلاف قوي پاتې شو، هغه خپله د تاجک – هزاره او تاجک- پښتون جګړو ته زمینه برابره کړه[۵۸].

---

[۵۷] مګر د جنگ های کابل کتاب په ۲۴مه پاڼه کې لیکل شوي:"دکتور عبدالواحد سرابي د ډاکټرنجیب الله مرسیتال د ثور پر اتمه ۱۳۷۱ واک د مجاهدینو حکومت صبغت الله مجددي ته تسلیم کړ."

[۵۸] استاد محمد زمان مزمل ما (لیکوال) ته همدا خبرې څو ځله په تکراري بڼه کړي، اوس هغه وایي چې په ژوند که تر ټولو لویه او نه جبران کیدونکي تیروتنه مې همدا وه.

استاد محمد زمان مزمل وايې : "خالص بابا چې کابل ته راتلی، چې له پلچرخې راتیریده او ځنځیر خلاص شو، هلته یې د جمعیت اسلامي بیرغ ولید، ویې ویل چې موږ جمعیت ته نه یو راغلي، بلکې کابل ته راتلو، بیرته ولاړی او په حکومت کې یې برخه وانه خیستله. او مولوي محمدي بیا خپل د اجرائیه مجلس غړو ته ویلي وو چې حکومت کې ملګرتیا سمه نه ده، مولوي محمد شاه فضلي ته یې وویل، که دا ژېکی ( حکمتیار) نه وای، تاسي به ددي خرس (مسعود) کارونه لیدلي وای.

د حزب اسلامي د اجرائیه شورا ډیری غړو دا نظر وو چې حکمتیار له حرکت اسلامي او خالص بابا سره یو شي او دا دواړه حاضر وو چې له حکومت څخه ووځي، مګر انجنیر وحیدالله سباوون وویل چې زه بیا ځل له دي پوستینو (مولوي محمد نبي محمدي او مولوي خالص بابا) سره نه شم جنګیدلای، ښه ده چې له ټولو سره په یوه وار خبره یوطرفه کړو. "

"د اپریل پر ۳۰مه ۱۹۹۲، د مجددي حکومت د سعودي عربستان، روسیې او چین له خوا په رسمیت وپېژندل شو او د مئ پر ۵مه مجددي وویل د حکومت له پاره دوه میاشتي کافي نه دي، خلکو ورڅخه غوښتي چې دوه نور کلونه حکومت ته ادامه ورکړي، جهادي ګوندونو یې سخت مخالفت وکړ. " حوادث تاریخي

" کابل کې ګوندي جنګونه نه، بلکې یواځې د قدرت جنګونه وو، استاد رباني هیڅکله نه دي ویلي چې قومي جنګونه دي وشي، تر رباني په دي کې حکمتیار ښه و. " انجنیر احمدزی

" د کابل په جنګ کې شورا نظار (احمدشاه مسعود)، جمعیت اسلامي (استاد رباني)، حزب اسلامي (حکمتیار)، اتحاد اسلامي (استاد سیاف) او وحدت اسلامي (استاد عبدالعلي مزاري) د عبدالرشید دوستم په ګډون ټول شکیل وو، کابل د همدغو یادو ګوندونو د جنګیالیو له خوا په ګډه وران شوی دی، د کابل د وراني او جنګونو پړه په ګډه په غاړه لري، سخته ده چې سړی د کابل په جنګونو کې یو لوری او ګوند پړ وبولي، بلکې په ګډه یې دوی مسوولیت په غاړه لري." وحید مژده

حضرت صبغت الله مجددي د دوو میاشتو لپاره ولسمشر و، غوښتل یې خپله د واک موده ۲ کلنه کړي، ونه توانیدی، استاد رباني د ۴ میاشتو لپاره واک په لاس کې واخیست او بیا یې د اهل حل او عقد شورا د لاري د خپل واک موده دوه کلونه نوره اوږده کړه، له هغه وروسته یې هم دوه نور کلونه واک پرینښود او ۴کاله واک د استاد رباني او انجنیر احمد شاه مسعود په انحصار کي و.

د حزب اسلامي او جمعیت تر منځ سختې جګړې وشوي، عبدالرشید دوستم به کله له احمدشاه مسعود او کله هم له حکمتیار سره ملګری و[۵۹].

" ۹ فبروري ۱۹۹۳، مولوي نصرالله منصور د ده په موټر کې د ځاي کړل شوي ماین د چاودنې له امله د پکتیا په ګردیز ښار کې په قتل ورسیدی. کابل یې مسوولیت په حزب اسلامي ور واچاو. " حوادث تاریخي

" مولوي منصور [۶۰] چې د استاد رباني په وخت کې د لویې پکتیا والي و، ځینې کسان د هغه وژل په حزب اسلامي پورې تړي، مګر د منصور صاحب د ګوند مهم

---

[۵۹] مسعود دفاع ازمردم کابل او حکمتیار کابل له ملیشو څخه پاکولو په نوم جګړه کوله. جنگ های کابل ۲۶ مه پاڼه

[۶۰] مولوی نصرالله منصور چې له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال د حرکت انقلاب اسلامي (محمدي) مرستیال و، بېل ګوند یې یې جوړ کړ، چې د حرکت انقلاب اسلامي – منصور ډله یې بلله، تر ډیره یې مرستي له ایران څخه تر لاسه کولې.

د استاد رباني د حکومت پر مهال د پکتیا والي و، ۹ فبروري ۱۹۹۳ له کابل څخه ګردیز ته په لاره، په چهار اسیاب کې د حکمتیار د وسلوالو له خوا د لنډ وخت لپاره توقیف او سپکاوی یې وشو. له همدې پېښې وروسته، په ګردیز کې دده موټر کې چاودنه وشوه، هغه پکې مړ شو. د مرګ پړه یې حکمتیار پر مسعود او مسعود پر حکمتیار اچوله.

زوی یې سیف الله منصور له طالبانو سره ملګری شو، د قرغې فرقې قومندان و، کله چې پر افغانستان امریکا حمله وکړه، د شاهی کوټ تاریخي معرکې مشرې مولوي سیف الرحمن منصور کوله، چې ډیر امریکایان پکې ووژل او ژوبل شول او د امریکایانو یو شمیر

غړې بيا وايې چې د منصور صاحب په مرګ کې د مسعود لاس و، همدغه لامل به و چې بيا استاد رباني د طالبانو د سولې د استازي په نوم کس له خوا ووژل (۲۰ سپټمبر ۲۰۱۱ ز کال) شو، د هغه په مرګ کې مولوي ارسلان رحماني او واحديار داخل وګڼل شول[۶۱]، چې بيا مولوي ارسلان رحماني هم د کابل په ښار کې وويشتل (د مئ ۱۳مه ۲۰۱۲) او مړ شو، ويل کيږي چې د شمال ټلوالې وسلوالو ورته ويلي وو چې مور د خپل رهبر غچ اخلو او مولوی ارسلان يې په غچ کې وژنو."وحيد مژده

" د دولت (استاد رباني، احمد شاه مسعود، استاد سياف، پير سيد احمد ګيلاني، مولوي محمد نبي محمدي او عبدالرشيد دوستم) د نفوذ ساحه مرکزي سيمې بالاحصار، د پلچرخي له خط څخه تر هودخيل، د باغ بالا څخه تر مکرريان، خيرخانه او دا ډول تر پغمان پوري ساحه وه. د حزب وحدت چې د حکمتيار متحدين وو، له دوی سره تايمنې او څو نوري څلور لاري او سيمې په واک کې وي.

دهمزنګ، کوته سنګې، کارته چهار، مهتاب قلعه، دارلامان د اهل تشيع حزب وحدت او اصف محسني [۶۲] د حرکت ګوندونو سره وي.

---

چورلکي هم د جګړې پر مهال نسکورې شوې. د امريکا ضد دغې جګړې کې بهرنيو مجاهدينو هم د سيف الرحمن منصور تر قوماندې لاندي جګړه کوله.

[۶۱] له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال مولوي ارسلا رحماني د مولوي نصرالله منصور مرستيال و، د مجاهدينو د استاد رباني د حکومت پر مهال مرستيال لومړی وزير، د لنډ وخت لپاره لومړی وزير هم و، د طالبانو د واکمنۍ پر مهال رحماني د لوړو زده کړو مرستيال وزير و. پر افغانستان د امريکا تر حملې وروسته، د حامد کرزي د حکومت پر مهال په مشرانو جرګه کې سناتور او د سولې عالي شورا غړی و.

واحد يار د مولوي نصرالله د ګوند د رهبري شورا غړی او د حامد کرزي د واکمنۍ پر مهال د سولې عالي شورا غړی و.

[۶۲] استاد اصف محسني د حرکت اسلامي افغانستان د شيعه تاجک او هزاره ډلې مشر و، له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال په لومړيو وختو کې په ايران کې و، وروسته

کارته سه، جمال مېنه او کابل پوهنتون د مسعود د راکټونو تر برید لاندي سیمې وي.

د حکومت له جوړېدو وروسته هم په کابل ښار کې برق نه و، قومندانانو او مامورینو ته معاشونه نه دي رسیدلي، دبرق تارونه قطع کوي او خرڅوي یې د حکومت اوه میاشتي وتلي دي، د جنبش او مسعود جنګ، جنبش تر صدارت ځلور لاري هم رارسیدلي وو.

د پښتون نیول هزاره سره او هزاره پښتون سره، دا ډول ځیني تاجک له هزاره او پښتون سره او هزاره او پښتون له تاجک سره نیول او په سخته سزا رسیدل.

حزب اسلامي چې یو وخت یې په شمال کې زیاتي جبهې درلودلي، هغه له مسعود سره یوځای شوې، مګر بیا هم د حزب څخه مسعود خطر احساس کاوه. او د حزب په قومندانانو یې ډېر باور نه درلود.

بغلان کې دوشي، پلخمري ښار د مزار تر دوراهي پوري د اسماعیلي مذهب سید کیان منصور نادري له خوا اداره کیدي[٦٣]، چې د دوستم طرفداره وو، سید جعفر د سید منصور

---

پاکستان ته ولاړ. اصف محسني د مجاهدینو په خپلمنځي او کورنۍ جګړه کې په لومړي وخت کې لږه برخه درلودله، وروسته له هیواده بهر میشت شو.

پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته یې د حامد کرزي د حکومت ملاتړ وکړ، په کابل کې یې د ایران په مرسته د خاتم النبین لویه مدرسه او پوهنتون جوړ کړ، د مرګ تر ورځې محصلینو ته په درس ورکولو بوخت و.

[٦٣]سید منصور نادري په افغانستان کې د اسماعیله فرقي مشر، د بغلان د کیان درې اوسیدونکی دی.

پر افغانستان د شوروي اتحاد یرغل پر مهال له کمونسټ پلوه افغان حکومتونو سره ملګری و. د استاد رباني د حکومت پر مهال لوړ پوړی چارواکی پاتې شوی او د مجاهدنیو د کورنۍ جګړې پرمهال له عبدالرشید دوستم سره ملګری و، دارنګه یې له طالبانو سره هم جګړې وکړي.

د کمونستانو د نظام پر مهال یې زوی جعفر نادري د قومي ملیشو مشر او وروسته د بغلان والي و.

نادري ځوی ددي ولایت والي وو، مرکز له بغلان څخه پلخمري ته انتقال شوی وو. بغلان صنعتي له مامور غیور او انجنیر بشیر د حزب اسلامي قومندانانو سره وو، مامور غیور والي و، نهرین ولسوالي د جمعیت قومندان حقجو اداره کوله." ۸۲مه پاڼه، علل سقوط

۲ جون ۱۹۹۲، د استاد سیاف او حزب وحدت عبدالعلي مزاري [٦٤] ترمنځ جګړه پیل شوه، مولوي جلال الدین حقاني غوښتل منځګړیتوب وکړي، د حزب وحدت وسلوالو ترحملې لاندې راغی، دوه نفره یې زخمیان شول.

"د جګړې انګیزه په ښکاره د جوزا لسمه ۱۳۷۱، د حزب وحدت د مرکزي شورا ۴ غړو او تکړه قومندانانو (سید اسماعیل حسیني، کریمي، چمن علي، ابوذر او وثیق) وژل کېدل ویل کیږي. چې د کابل سیلو سیمه کې وژل شوې وو، ولي ممکن د شیعه او وهابي خبره وي او یا داچې د سیمو د کنټرول په سر شخړه شوي وي.

---

منصور نادري د حامد کرزي د حکومت پر مهال د ولسي جرګې غړی (۷ ډسمبر ۲۰۰۵ تر ٦ ډسمبر ۲۰۱۰) و.

لور یې فرخنده زهرا نادري د ولسي جرګې (۲۷ فبروري ۲۰۱۱ تر جون ۲۰۱۵) غړې وه او د ډاکټر غني د حکومت پر مهال یې زوی سعادت منصور نادرې د کور او ښار جوړولو وزیر (۲۲ اپریل ۲۰۱۵ تر ۱۳ جون ۲۰۱۸) او لور یې زهرا نادري د ډاکټر غني سلاکاره وه.

[٦٤] استاد عبدالعلي مزاري: له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال د اهل تشیع د اته ګوني اتحاد (حزب وحدت) مشر و. د مجاهدینو ترمنځ جګړو پر مهال د حزب اسلامي حکمتیار سره یو ملګری شو، د احمد شاه مسعود او استاد سیاف ضد یې په کابل ښار کې ډیرې جګړې وکړي.

له طالبانو سره یې د ملګرتیا ژمنه وکړه، مګر تر منځ یې سوء تفاهم راغی، د طالبانو له خوا د کابل ریشخورو فرقې سره نږدې ونیول او د مارچ ۱۳مه ۱۹۹۵، کندهار ته د چورلکې پواسطه لیږدول کیدی، په چورلکه کې د استاد مزاري د قومندان شفیع دیوانه له خوا پر طالبانو برید وشو، دوه طالبان یې ووژل، پیلوټان اړ کړل شول چې چورلکه د غزني په مقر سیمه کې کینوی، پر ځمکه د بلې ډلې طالبانو له خوا استاد مزاري له سیمې څخه د تیښتې پر مهال ووژل شو.

حزب وحدت يې په غچ کې د استاد سياف په مشهور قومندان حاجي شيرعلم باندی د پل سرخ سېمه کې حمله وکړه، خپله ژوندی ووت او ساتونکی يې ووژل شو، د سياف او مزاري جګړو شدت پيداکړ." جنګ های کابل ۲۹۶مه پاڼه

"ويل کيږي چې د حزب وحدت څلور قومندانان د احمدشاه مسعود وسلوالو مړه کړل تر څو د استاد سياف او مزاري ترمنځ جګړه پېل شي. او سياف د مسعود ملګرتيا ته تر ډېره وخته وتړل شی " جنګ های کابل ۳۰۰مه پاڼه

استاد عبدالعليم د کندهار د سياف قومندان ما (ليکوال) ته و ويل:"سياف وارخطاء وو، موږ ورته له کندهار څخه راغلو، هغه د جګړې لپاره د مزاري کسانو د زخمي او مړي پر سر نقدي پيسي ټاکلي وي، ورته مې وويل چې د زخميانو پر سر پيسې درڅخه نه غواړم، مګر د مړو پر سر چې کومه وعده کوي بيا به هغه پيسې راکوي، ډير زيات هزاره ګان مو په کابل کې ووژل، استاد سياف په پيسو راکولو پسې نه شو رسيدای او موږ ته يې د مړو په سر هم وعده شوې پيسي رانکولای شوای"

سره له دي چې په کابل کې جګړې په قوت سره روانې وي، بيا هم ۱۴ جون ۱۹۹۲ کې پيټر ټامسن کابل ته راغی، چې په ۱۹۸۹ کال کې د امريکا تړل شوی سفارت بيرته خلاص کړي.

د جون ۲۶مه ۱۹۹۲، د جمعيت اسلامي / شورای نظار او حزب وحدت ډلو ترمنځ په کابل کې جګړه پېل شوه، د دوی ترمنځ جګړې تر هغه وخت پوري دوام درلود، تر څو طالبان د کابل څنډو ته را نږدې او پر کابل يې بريدونه وکړل.



## استاد برهان الدين رباني

### ۲۸ جون ۱۹۹۲ – ۲٦ سپټمبر ۱۹۹٦

د جون په ۲۸مه ۱۹۹۲ واک په رسمې ډول د مسعود د نظامي ځواک او فشار په نتيجه کې له صبغت الله مجددي څخه واخيستل شو او استاد رباني د افغانستان د اسلامي حکومت ولسمشر شو[٦٥].

عبدالرشيد دوستم چې له احمدشاه مسعود څخه د واک د ويش پر سر خفه و، د جولای پر ۱۱مه يې سيد جعفر نادري د بغلان والي مقررکړ، دوستم وويل چې جنبش اسلامي د فدرالي حکومت غوښتونکی دی.

۲۱ جولای ۱۹۹۲، د کابل امنيه قومندان عبدالحق [٦٦] له دندې استعفی ورکړه. ويې ويل حکومت د ناامني مسوول دی.

د سپټمبر پر ۷مه ۱۹۹۲، ۲۰ کاله وروسته په کابل ښار کې درې تنه د غلا او قتل په جرم په عام محضر کې اعدام شول.

" د مجاهدينو د خپلمنځي اختلافاتو نتيجه کې د فبروري ۱۳مه، ۱۹۹۳ کال کې ۱۵۰ تنه امريکايې کمانډو د افغانستان خاوري ته ننوتل، فکر کيدی چې د

[٦٥] کابل کې استاد رباني قيادي شورا جوړه کړه، د جمعې خطبو کې يې د مجاهدينو له کاميابي، د روسانو له ماتې، شرعي احکام او د حجاب اړوند به يې خبري کولي. جنگ های کابل ۲٦٦مه پاڼه

[٦٦] قومندان عبدالحق د حاجي قدير او حاجي دين محمد ورور، له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال د مولوي خالص بابا پېژندل شوی قومندان و، د مجاهدينو تر کاميابۍ وروسته د کابل امنيه قومندان و، له طالبانو سره د شمال ټلوالې د جګړو پر مهال پر کور ناست و. پر افغانستان د امريکا د حملې پر مهال، د امريکايانو په مرسته او هڅونه د ننګرهار ولايت حصارک غلجي ولسوالي ته؛ د طالبانو پر ضد ولسي پاڅون لپاره ولاړ، د طالبانو له خوا ونيول شو او د لوګر ولايت سنګ نويشته سېمه کې له خپل وراره سره يوځای ووژل شو.

مجاهدينو د مشرانو د وژلو لپاره او يا هم د عربو مجاهدينو د مشرانو د وژلو لپاره امريکايې کماندهو افغانستان ته داخل شوې." حوادث تاريخي افغانستان

هغه روسان چې په افغانستان کې يې ماتې خوړلې وه، هغوی بيا هم د مجاهدينو د خپلمنځي اختلافونو له کبله په افغانستان کې لاسوهنې کولي او د جولای ۱۸مه ۱۳۹۳، روسانو د تخار ولايت مختلفې سېمي په توپونو وويشتلي.

د نظام مرکزيت عملاً له منځه تللی وو، ختيځ کې واک د حاجي عبدالقدير [٦٧] په مشرې د مشرقي شورا سره وو، په شمال کې د ځينو ولايتونو واک عملاً له دوستم [٦٨] سره و.

[٦٧] حاجي عبدالقدير د مولوي خالص بابا قومندان، د مجاهدينو تر کاميابې وروسته د ننگرهار والي او د مشرقي شورا مشر و. له طالبانو سره د جگړو پر مهال له شمال ټلوالې سره يو ځای شو. پر افغانستان د امريکا له بريد وروسته، د حامد کرزي د لنډ مهاله حکومت پر مهال د ولسمشر مرستيال او د ټولگټو چارو وزير (۱۹ جون - ٦ جولای ۲۰۰۲) و. د جولای ٦مه ۲۰۰۲ کې د وزارت دروازې ته نږدې د ناپېژاندو وسلوالو له خوا ووژل شو.

[٦٨] ازبک عبدالرشيد دوستم له پخواني شوروي اتحاد سره د افغان ولس د جهاد پر مهال له شوروي پوځيانو سره يو ځای د افغان ولس پر ضد جگړه کوله، قومي مليشې يې درلودلې، د ډاکټر نجيب الله د حکومت پر مهال يې ډير رشد وکړ، د ډاکټر نجيب الله پر ضد يې له شورای نظار / جمعيت اسلامي سره لاس يو کړ، ډاکټر نجيب يې پرينښود چې له هيواده بهر ووځي. له احمدشاه مسعود سره تر اختلافاتو وروسته له حکمتيار سره يو ځای شو، وروسته يې په شمال کې خپله واکمنی اعلان کړه، ځينې ولايتونه يې تر واک لاندي وو، د افغانيو خپل بانک نوټونه يې چاپ کړل، چې د جنبشي افغانيو په نوم يادېدي.

له طالبانو سره يې سختې جگړې وکړې، ازبکستان او ترکيې ته وتښتيد، پر افغانستان د امريکا د حملې پر مهال له امريکايانو سره ملگری شو، د حامد کرزي د لنډ مهاله حکومت پر مهال د ولسمشر مرستيال (۲۹ سپتمبر ۲۰۱۴ تر ۱۹ فبروري ۲۰۲۰) و. وروسته د ملي دفاع وزارت لوی درستيز، د سر اعلی قومندان مرستيال او د ډاکټر غني د حکومت لومړۍ دوره کې د ولسمشر لومړی مرستيال و.

په لویدیځ کې واک جمعیت اسلامي ته وفادار قومندان اسماعیل خان [٦٩] سره او په کندهار کې واک له ګل اغا شیرزي [٧٠] او د جمعیت قومندان ملانقیب اخوند [٧١]

---

د جولای پر ۱۵مه ۲۰۲۰، په شبرغان کې د مراسمو په ترځ کې د ډاکټر غني د فرمان (د فرمان شمیره ۲۹، ۲۱ غبرګولي ۱۳۹۹ / ۱۰ جون ۲۰۲۰) له مخې، د ملي مصالحې د مشر او په حکومت کې د ۵۰ سلنې شریک لخوا، تر ټولو لوړه نظامي رتبه مارشالي په رسمي ډول ورکول شوه.

[٦٩] تورن اسماعیل خان د پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال په لویدیځ حوزه کې د جمعیت اسلامي قوي قومندان و. د مجاهدینو تر بریالیتوب وروسته د هرات والي و، له طالبانو سره یې سختې جګړې وکړې، په جګړو کې یې ماتې وخوړه، ایران ته وتښتیدی. د جنرال ملِک له خوا په چل او فریب کې ونیول شو، طالبانو ته وسپارل شو او د طالبانو له خوا په کندهار کې بندي و، د یو طالب پیره دار په مرسته له زندان څخه وتښتید، ایران ته ولاړ.

پر افغانستان د امریکا د برید پر مهال یې له امریکایانو سره مرسته کوله او د حامد کرزي حکومت په لومړیو وختو کې د هرات والي (۲۰۰۱ تر ۱۲ سپټمبر ۲۰۰۴) و. وروسته د اوبو او بریښنا وزیر (۲۰۰۴ تر اکتوبر ۲۰۱۳) و، د حراست او ثبات شورا غړی و.

[٧٠] ګل اغا شیرزی د کندهار د مشهور مجاهد قومندان شهید حاجي عبداللطیف زوی، د مجاهدینو د حکومت پر مهال د کندهار والي و، له طالبانو سره یې جګړې وکړې. پر افغانستان د امریکا د حملې پر مهال له امریکایانو سره ملګری، په کندهار کې یې ډیر عرب مجاهدین شهیدان کړل.

وروسته د ټولګټو چارو وزیر او بیا د ننګرهار والي و، په ۲۰۱۴ کې د ولسمشرۍ ټاکنو نوماند و او د ډاکټر غني د حکومت پر مهال د قبایلو او سرحدونو چارو وزیر و.

[٧١] ملا نقیب الله اخوند په کندهار کې د جمعیت اسلامي مشهور قومندان، له سرو لښکرو سره مخامخ جګړې یې کړي، د استاد رباني د حکومت پر مهال د کندهار فرقې مشر و. طالبانو ته یې فرقه تسلیم او په کور کیناست. پر افغانستان د امریکا د برید پر مهال طالبانو غوښتل چې کندهار ولایت ملا نقیب الله اخوند ته ور تسلیم کړي، ګل اغا شیرزي یې مخالف وکړ او ګل اغا شیرزي په زور د ولایت مقام ونیو. ملا نقیب الله اخوند د تلې ۱۹مه ۱۳۸٦ / د اکتوبر ۱۱مه ۲۰۰۷، د کوچني اختر په شپه له دې دنیا سترګې پټې کړې.

او د حزب اسلامي اړوند عطامحمد سرکاتب او د اتحاد اسلامي اړوند استاد عبدالعليم او امير لالي په لاس کي وو[٧٢].

په خوست کې واک له مولوي جلال الدين حقاني او په پکتيا کې د رباني له حکومت سره شريک مولوي نصرالله منصور سره و.

په شمال کې د ملي جنبش ګوند د مشر دوستم له خوا په ناقانونه ډول د افغانيو نوي بانک نوټونه چاپ او عملاً په بازاکې پرې راکړه ورکړه کېدله او د مرکزي حکومت د قانوني بانک نوټونو څخه يې ارزښت ۵۰ سلنه کم و.

ويل کيږي چې حزب اسلامي هم هڅه کوله چې ناقانونه د افغانيو بانک نوټونه چاپ کړي.

د استاد رباني حکومت ته له ماسکو څخه په کانتېنرونو کې نوي د افغانيو بانک نوټونه راتلل او د پيسو مقابل کې يې هڅه کوله چې د نورو ډلو ځينې نظامي او جنګې مشران د خپل ځان په ګټه وکاروي[٧٣].

د استاد برهان الدين رباني د حکومت پر مهال د هيواد ملي بنسټونه ولړزيدل او د اسيا په کچه منل شوې مجهزه او قوي افغان اردو له بيخه له منځه يوړل شوه، چې کيداى شي ډير لاس پکې د پاکستان هم و، ځکه هغه وخت د استاد رباني او پاکستانې چارواکو تر منځ اړيکې ډيرې ګرمې او استاد رباني د پاکستان د

---

[٧٢] درې واړه قومندانان د طالبانو ضد جګړه کې له شمال ټلوالې سره ملګري وو. پر افغانستان د امريکا له حملې وروسته، يوازي سرکاتب و چې له امريکايانو سره نه شو ملګرى او په حکومت کې يې دنده وانه خيستله.

[٧٣] د ډاکټر نجيب الله د حکومت له سقوط وروسته څلور سوه ميليون ډالر بوديجه بانکونو کې احمد شاه مسعود او استاد رباني ته پاتې وه.

حضرت صبغت الله ۲ ميليونه ډالر او مسعود ۲ ميليونه او ۵۰ زره ډالر دخپلې ډلې د لګښتونو لپاره له مرکزي بانک څخه وايستل. جنګ هاى کابل ۲۶۷مه پاڼه

استخباراتو (آی ایس آی ) مشر جنرال حمید ګل [٧٤] ته وړاندیز کړی و چې له ولسمشر رباني سره د سلاکار دنده ومني[٧٥].

جنرال عتیق الله امرخیل په دي نظر دی چې د تني له کودتاه وروسته د افغان اردو بنسټونه د ببرک کارمل او ډاکټرنجیب د پرچم ډلو ترمنځ د اختلاف له امله کمزوري او بیا له منځه ولاړه[٧٦].

---

[٧٤] د پاکستان د آی ایس آی (٢٩ مارچ ١٩٨٧ تر ۴ اکتوبر ١٩٨٩) مشر و، د مجاهدینو له ټولو رهبرانو، په ځانګړې ډول له حکمتیار، استاد سیاف او استاد برهان الدین رباني سره یې ډیرې نږدې اړیکې درلودلې.

تر یادې دندې مخکې (١٩٨٣ تر ١٩٨٧) هم د پاکستان د پوځي استخباراتو عمومي مشر و. جنرال حمید ګل د ٧٨ کالو په عمر د اګست ١۵مه ٢٠١۵ کې مړ شو.

[٧٥] دا سمه ده چې د مجاهدینو لومړي ولسمشر د دوو میاشتو لپاره حضرت صبغت الله مجددي و، ولي دفاع وزیر احمدشاه مسعود او واک په بشپړ ډول له مسعود سره و، د دوی د واکمنۍ او دفاع وزارت پر مهال د افغانستان اردو له منځه ولاړه، چې یو تاریخي تیروتنه یې ګڼلای شو. دا چې ولي د جمعیت ګوند او په ځانګړې ډول احمدشاه مسعود د اردو د منحل کیدو مخه ونه نیوله او د کومو موخو لپاره اردو له منځه ولاړه، په دي اړه د جمعیت اسلامي ګوند له خوا سپیناوي ته اړتیا لیدل کیږي.

[٧٦] ببرک کارمل د روسانو په مرسته د حفیظ الله امین پر ضد کودتاه وکړه (٦ جدې ١٣۵٨ / ٢٧ ډسمبر ١٩٧٩)، نږدې اوه کلونه په واک کې پاتې شو، د شورویانو له خوا مجبور شو چې له دولت مشرۍ استفعی (۴ مئ ١٩٨٦) ورکړي، ماسکو کې مړ شو، په مزار شریف کې یې مړی خاورو ته وسپارل شو، کله چې طالبانو مزار ښار ونیو، د ببرک کارمل قبر په بمونو والوزول شو.

ډاکټر نجیب الله د کمونسټ پلوه افغان رژیم وروستی ولسمشر (٣٠ سپټمبر ١٩٨٧ تر ١٦ اپریل ١٩٩٢ )، مخکې له ولسمشر کیدو د مرکزي کمیټې (۴ مئ ١٩٨٦ تر ١٦ اپریل ١٩٩٢) مشر او له دي مخکې ١١ جنوري ١٩٨٠ تر ٢١ نومبر ١٩٨۵ د هغه وخت د استخباراتو (خاد) رئیس و. د اپریل ١٦مه ١٩٩٢ یې له دولت مشرۍ استعفی وکړه، د ملګرو ملتونو

" د تنې د کودتاه تاثیرات په افغان اردو باندې زیات و، کله چې تنې او ملګري یې له ناکامې کودتا وروسته پاکستان ته وتښتیدل، د ده ملګري او پلویان په اردو کې زیات وو او په ځانګړې ډول قواي زرهدار کې، هغوی هم پاکستان ته ولاړل او افغان اردو یوه غټه برخه له لاسه ورکړه. او د اردو ضعف و چې د پرچم ډلې او شورای نظار ترمنځ د اړیکو زمینه یې مساعده کړه.

اردو کې د پرچم ډلې مشران ځینې یې د ببرک کارمل او ځینې د ډاکتر نجیب الله ملګري شول او له همدې ځایه ستونزه زیاته چې بیا وروسته دوستم او د جمعیت اسلامې مجاهدینو ایتلاف وکړ او د ډاکتر نجیب الله حکومت ته یې سقوط ورکړ. "




حکمتیار، رباني، مزاري، ګیلاني، مجددي او سیاف

---

دفتر ته یې پناه یوړه، د سپټبر ۲۷مه ۱۹۹۶، د طالبانو له خوا په کابل کې له خپل ورور شاپور احمدزي سره یو ځای اعدام شو.

## خلقیان له حکمتیار او پرچمیان له مسعود سره ملګري شول

"د ډاکټر نجیب الله د حکومت له سقوط مخکې احمدشاه مسعود د حزب اسلامي له ځینو قومندانانو سره په غوربند، پروان، بغلان، تخار، کندز او ځینو نورو شمالي ولایتونو کې جوړه وکړه، مسعود له هغوی سره روابط سم کړل. دا ډول یې د ډاکټر نجیب الله په نظام کې د اصف دلاور، نبي اعظمي، جنرال بابه جان، جنرال مومن او دوستم سره د جبل السراج اتحاد جوړ او د ډاکټر نجیب الله حکومت ته یې له داخل څخه سقوط ورکړ[۷۷].

د احمدشاه مسعود او پرچمیانو ترمنځ تړون مخکې له جبل السراج څخه لومړی ځل د بغلان ولایت په دوشي ولسوالي کې وشو، چې بیا یې په تسلسل کې د جبل السراج تړون هم وشو او د ډاکټرنجیب الله د حکومت د نسکوریدو پلان جوړ شو.

کله چې د ډاکټر نجیب او ګورباچوف روابط سره خراب شول، مسعود د پرچمیانو سره رابطه ونیوله، هغوی له روسانو سره رابطه وکړه، روسانو په خاد / استخباراتو، پولیسو او اردو کې د پرچم ډلې کسانو ته د مسعود سره د یوځای کیدو خبره وکړه، ځکه مسعود نظر استاد سیاف، حکمتیار او خالص بابا ته د روسانو په نظر کې معتدل سړی و. دا ډول احمدشاه مسعود له ۱۳۶۱ ل. کال څخه له روسانو سره ځینې تړونونه درلودل." سید داوود اغا

---

[۷۷] په مزار شریف کې د مجلس ګډونوال جنرال محمد جمعه نظیمي د بلخ د ۱۸مې فرقي قومندان، جنرال ګل احمد نبي د ۷۱۷مې قطعي د ښاري انظباط او کابل ګارنیزون قومندان ته ویلي و. څو ځله د شپې مجلسونو ته خصوصي دعوت شوم، چې هلته دوستم، جنرال مؤمن، سید حسام الدین، خان اقا، هلال الدین د چورلکو د کنډک قومندان، ازادبیګ، د جمعیت اسلامي او حزب وحدت استازي او ځینو نورو ګډون درلود، مهم ټکي په دولت باندي د ملي او ژبني مسایلو اړوند نیوکې وي. چې وروسته دا خبري قومي او ژبني تعصب ته واوښتي، کوشش کیدی چې د شمال خلک د قوم په نوم د جنوب د خلکو په وړاندي تحریک کړي. جنګ های کابل ۱۱۵مه پاڼه

." کله چې ډاکټر نجیب الله د ملي سولې داعیه د وطن گوند تر نوم لاندي اعلان کړه، ببرک کارمل او ملگرو یې له ډاکټرنجیب الله سره مخالفت درلود او هغوی د وطن گوند په ځای د حزب ډیموکراټیک افغانستان نوم کاراوو.

د ډاکټر نجیب الله په وخت کې سیاسي گوندونو (د سازا، سبزا، سپنجا، ستمیان، شعلیان او ځینې نورو ډلو) ته د فعالیت اجازه ورکول شوه، ځینو گوندونو خپل فعالیتونه پیل کړل، د هغوی ځینې مشران او غړي اوسمهال هم کابل کې شته، ځینې یې په ولسي جرگه، ځینې مشرانو جرگه او ځینې یې د حکومت لوړ پوړې کسان دي، مگر اوس دوی ځان د جمعیت اسلامي غړي معرفي کوي، ولي اصل کې دوی هم د ببرک کارمل او ډاکټر نجیب الله د واکمنۍ پر مهال په کابل کې وو او پرچمیان وو، مجاهدین نه وو. ." جنرال امرخیل

"د شمال د بغاوت پلان په حیرتان کې د روسیې د قونسل میخاییل او د کې جي بي غړي حارث شاه تاجیک له خوا مخکې وړل کیدی. د حیرتان د ۷۰مې لواء نظامي قومندان وایې چې قونسل به شمال ته ډیر زیات سفرونه په ښکاره کول او هلته به یې پټې لیدني کولي.د ۱۳۷۰ ل کال په جریان کې یې له احمدشاه مسعود سره په خنجان کې، له سید منصور نادري سره په کیان دره کې، له دوستم سره په جوزجان کې، د امو دریاب په غاړو کې د کلدار، قلعه زال او شورتپه ولسوالیو د جمعیت له قومندانانو سره وکتل.

وسلې او مهات او محاربوي ثقیل وسایط د روسیې د ترکستان له نظامي حوزي څخه راتلل او حیرتان کې جنرال مومن او خان اقا بیا وروسته خپلو متحدینو ته ویشل.

جنرال مؤمن له حیرتان څخه کابل ته د حکومت پریکړه؛ دده تبدیلي ځنډوله، وروسته سید حسام الدین د سید کیان زوم مجهزه قطعه حیرتان ته ولاړه، د مسعود ۲۵۰ کسان له وسلو او ۳ شتهنگر سره حیرتان ته ورسیدل. له حیرتان څخه د مالونو انتقال کابل ته قطع شو، چې دولت کمزوری شي.

په حیرتان کې د شمال د مشرانو ائتلاف ته ډیره اندازه نظامي تجهیزات لاس ته ورغلل: ۱۷۰ زره ټن پټرول او ډیزل، ۳۰ زره ټن مایع ګاز، ۷۵ فیره سکاډ راکټ، ۱٦ فیره لونا راکټ، ۷٦۰ زره کلاشینکوفونه، ۱۰۰۰ میله توپ، هاوان او مختلف راکټونه، ۳۵۰ نوي او جدید محاربوي ماشین او زره پوش ټانکونه، ۱۰۰۰ موټر او ټراکټور، په سلګونو زره خفیفه او ثقیله مهمات . " جنگ های کابل ۱۱٦ - ۱۲۰ مې پاڼې.

جنرال مؤمن لیکي:" د حوت ۲۸مه ۱۳۷۰ د مزار شریف ښار د نجیب د حکومت مخالفو پرچمیانو او جمعیت اسلامي مجاهدینو له خوا تر برید لاندې راغی، جنرال دوستم، زه ( جنرال مومن ) او د جمعیت اسلامي قومندانان علم خان، استاد عطاء محمد نور او مولوي علم، د کیان ۸۰ مې فرقې سره په ګډه، موږ مزار شریف ته سقوط ورکړ." (سفرها وخاطره ها - حامد علمي)، جنگ های کابل، ۱۲۴مه پاڼه.

"جنرال رفیع د ولسمشر مرستیال او د اعلی سرقومندان رئیس ارکان راته وویل چې مزار شریف ته ځو، ځکه حیرتان کې جنرال مؤمن بغاوت کړی دی، کله چې موږ مزار شریف ته ولاړو، جنرال رفیع له عبدالرشید دوستم سره اړیکې ونیولې او جوزجان ته ورغی، د دوستم په ګډون د هغه د قومندانانو په غونډه کې یې ګډون وکړو، دوستم ژمنه وکړه چې سبا مزار شریف ښار ته درځم او هلته به خبرې او پریکړې کوو.

جنرال رفیع ما (امرخیل) ته وویل چې جنګې الوتکې سبا هوا کې پورته نه شي، ځکه چې دوستم ته بیا کوم شک پیدا نه شي، مګر د ببرک ډلې پرچمیان مخکې له مخکې له دوستم سره اړیکه کې وو او خپل پلان یې عملي کاوه.

سبا ورځ چې سهار ۱۰ بجې د دوستم د راتګ وعده وه، هغه وځنډیدی، یولس بجې هم ونه لیدل شو، ایل ۳۹ الوتکې ته مې هدایت وکړ چې د جوزجان څخه تر مزار دښت وګورې چې ولې ناوخته شو، هغوی راپور راکړ چې د حیرتان په لور د زرهپوش ټانکونو او روسي جیپ موټرانو لوی کاروان روان دی، همدا راپور مې جنرال رفیع ته ورکړ او دوستم مزار شریف ته رانغی.

جنرال دوستم، جنرال مؤمن، سید منصور نادري او د احمد شاه مسعود استازو تر منځ حیرتان کې غونډه شوې وه او له مسعود سره یو ځای به د تړون له مخې مخکې ځي.

له موږ سره د کورنیو چارو وزارت مرستیال وزیر اغا سید هم تللی و، هغه جنرال رفیع ته راپور ورکړ چې د ببرک کارمل ډلې او مسعود ترمنځ اړیکو کې، مزار شریف کې د روسانو کونسل لاس لري، جنرال رفیع همدا خبره مخامخ په مزار شریف ښار کې د پخواني شوروي اتحاد له کونسل سره شریکه کړه، ولي روسی کونسل منکر شو. جنرال رفیع کونسل ته دا هم وویل چې میمنې ته تللي واست او هلته مو له دوستم او د هغه له قومندانانو سره ناسته کړي وه.

کله چې جنرال رفیع له مزار څخه را وګرځیدی، بیا ځل ماڼوکی منګل [۷۸] مزار شریف ته ولاړ او زه (امرخیل) هم ورسره وم، هلته موږ ته څرګنده شوه چې دوستم مخامخ په کابل کې د سیاسي بیرو له ځینو غړو سره اړیکې لري. په مزار کې د استخباراتو مشر راپور ورکړ چې د دوستم ځواکونه د شپې مهال د بلخ اړوند دولت اباد ولسوالي باندي حمله کوي، داسي وخت و چې جمعه اخک په مزار شریف کې نه و، ما (امرخیل) د استخباراتو ولایتي مشر ته وویل چې تاسي د هوایې ضربې غوښتنه وکړئ، موږ به د دوستم قوتونه بمبارد کړو، مګر هغه وویل چې له مرکز (کابل) څخه هدایت غواړو. ولي په همدې ورځ ناوخته له کابل څخه نبي عظیمي هم مزار شریف ته را ورسیدی.

د نبي اعظمي سره مې ټوکه هم وشوه، نبې عظیمي وویل چې ای (امرخیل) والله که به اسرایل جان بته.

ما (امرخیل ) ورته وویل: برو اګر مزار را تسلیم نه کدي باز د کابل که امدی، باز یک خوب نان (مهماني) میدهم" جنرال امرخیل

[۷۸] ماڼوکی منګل د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر مهال د سیاسي بیرو دایمي غړی و.

"د جمعیت اسلامي هدف داوو چې واک په لاس کې ونیسي، نور جهادي او غیر جهادي گوندونه یو لور ته کړي، مزار شریف د چپې گوند پرچم له پاره چې واک یې دلاسه ورکړی وو ښه قوي قومي مرکزیت وو، هغوی له مسعود سره یوځای شوو. ۹مه پاڼه

قاري عبدالستار سیرت [۷۹] د ډاکټر نجیب د وخت سناتور د وطن گوند رئیس وویل کله چې مې کابل د اسلام اباد په لور پریښودی، زما سره نږدې د ۳۰۰۰ مجاهدینو قومندانانو لسټ وو، کوچني او غټ قومندانان او سرگروپان وو؛ له ډاکټر نجیب او خاد سره یې رابطه درلودله، دغه لسټ مې استاد رباني ته په پېښور کې تسلیم کړ.

د احمدشاه مسعود، جنرال دوستم، مومن او نورو جنرالانو چې د کارمل پلویان وو ترمنځ چې مذاکرات او تړون له شوری نظار سره شوی و، چې د ډاکټر نجیب حکومت ته به سقوط ورکوي او حزب اسلامي به کابل ته نه پرېږدي، کله چې دغه کار وشو، مسعود په خپله وعده وفا ونه کړه، بیا حیرتان کې ببرک او جنرالانو مجلس وکړ چې مسعود وعده خلافي وکړه، باید جزا یې ووینې، دوی پوهیدل چې د دوی له همکارې پرته مسعود واک نه شي ساتلای." ۲۵مه او ۲۶مه پاڼه علل سقوط دولت

"دبینن سیوان پروگرام روان و، تر څو واک له ډاکټر نجیب الله څخه په سولئیز ډول مجاهدینو ته ولیږدول شي، مگر احمد شاه مسعود د خپلو پرچمې اتحادیانو سره یوځای او دوستم وتوانیدی چې ډاکټر نجیب الله له واکه لرې کړي او کابل ته د مسعود ننوتلو ته لاره هواره شي. د حزب اسلامي ځینې غړي وایې که د مسعود لاره په پروان کې د حزب مجاهدینو بنده کړي وای، مسعود کابل ته نشو ننوتلای،

---

۷۹ قاري سیرت د داوود خان د حکومت له وخته د ډاکټر نجیب الله د حکومت تر پایه کابل کې اوسیدلی، د ډاکټر نجیب د حکومت پر مهال سناتور و، د هغه د حکومت له سقوط لږ مخکې پاکستان ته ولاړ، اوس مهال امریکا ویرجینیا کې اوسیږي. قاري سیرت هغه مشهور پروفیسور عبدالستار سیرت نه دی چې د پاچا ظاهر په وخت کې د عدلیې وزیر، وروسته د پاچا ظاهر د دفتر مشر، اوس مهال د امریکا په کالیفورنیا کې اوسیږي.

ولي د حزب اسلامي قوماندانانو ته د حکمتیار له خوښي پرته د حزب ځینو غړو ویلي وو چې مسعود ته کابل ته د ننوتلو لاره پریږدي[۸۰].

احمدشاه مسعود د ملګرو ملتونو دواک د سولئیز لیږد اړوند ویل چې ژنیو[۸۱](۱۹۸۸، ز. کال) کې د خبرو اړخونه، پاکستان، روسان او د کابل حکومت وو، هلته مجاهدین نه وو او نه هم د مجاهدینو استازو د هوکړې د عملي کیدو ژمنه کړې، له دې کبله یې د ډاکټر نجیب الله حکومت ته د حکومت له دننه سقوط ورکړ.

---

[۸۰] محمد زمان مزمل ما لیکوال ته وویل چې: " په ژوند کې مې لویه تیروتنه داوه چې پروان کې مې د حزب اسلامي ځینو قوماندانانو (ممکن هدف یې حاجي الماس هم و) ته وویل چې د احمدشاه مسعود وسلوالو ته اجازه ورکړئ چې کابل ته ننوځي، ما فکر کاوه، که دا کار ونه شي او مسعود له کابل څخه د باندي پاتې شي، حکمتیار کابل ته ننوځي نو قومي جګړې به پیل شي او د هیواد د تجزیې ویره را سره وه. "

د فبروري ۲٦مه ۲۰۱۸، جنرال عتیق الله امرخیل ما (لیکوال) ته وویل : " جنرال رفیع چې د حکمتیار ملاتړی و، د خپل دفتر یو تن جنرال چې د باګرام اوسیدونکی و، هغه یې د حزب اسلامي اړوند قوماندان حاجې الماس ته، چاریکار ته نږدې سېمې ته ور ولیږی، له هغه یې غوښتنه کړې وه چې د مسعود لاره کابل ته د ننوتلو لپاره بنده کړي، مسعود او ځواکونه یې کابل ته پرې نه ږدي."

[۸۱] د اپریل ۱۴مه ۱۹۸۸ د ژنیو معاهده چې روسان به وځي او ګاونډي هیوادونه به مداخلي نه کوي، لاسلیک او د فیبروري په ۱۴مه ۱۹۸۹ وروستی روسي پوځی د امو دریاب د دوستي په پل واوښت او افغانستان یې په بشپړ ډول سره پریښود. جنگ های کابل ۹۴ مه پاڼه

"سرې لښکرې له افغانستان څخه په دوو لارو ووتل، د سالنګ د لارې تیر، د حیرتان پُل د لاري په امو دریاب واوښتل چې د روسې پوځیانو عمومې قوماندان جنرال بوریس ګروموف هم ورسره و او بله ډله سرې لښکرې د تورغونډی د لارې له افغانستان څخه ووتل. " جنرال امرخیل

مسعود غوښتل چې کابل ته په ننوتلو سره ملګرو ملتونو ته وښئي چې مجاهدین له نظره غورځول په کار نه وو، پرته له مجاهدینو تاسي نه شئ کولای چې پریکړې وکړئ او نه هم ستاسي دا ډول پریکړې منل کیږي[۸۲].

د ملګرو ملتونو استازي بینن سیوان غوښتل چې موقت اداره جوړه شي، د مجاهدینو هر ګوند خلک معرفي کړي وو، پخوانیو کمونسټانو ته هم په واک کې ځای ورکول کیدی، د ملګرو ملتونو پلان ناکام، د دوستم له خوا د ډاکټر نجیب الله د نیولو او بهر ته وتلو مخه ونیول شوه، ډاکټر نجیب الله، کابل کې د ملګرو ملتونو دفتر ته پناه یوړه او واک د احمدشاه مسعود ائتلاف کوونکي دوستم ته په لاس کې ورغی.

کله چې احمدشاه مسعود او د پرچم ډلې له ائتلاف وروسته دوی کابل ته ننوتل، د حزب اسلامي له ډلې سره د خلق ډلې اړوند جنرالان یوځای شول، یا که لږ په واضح ډول ووایو، له احمدشاه مسعود سره په حکومت کې دننه تاجک، ازبک او د ببرک ډلې پښتانه پرچمیان په بشپړ ډول ملګري شول، دا ډول په دولت کې د ننه هغه پښتانه چې خلقیان وو هغوی له حزب اسلامي سره ملګري شول[۸۳].

د حزب کسان چې پرته له وسلو کابل ته ننوتي وو او خلقیانو ورته د مرستې ټټر وهلی وو، هغوی په ارګ، کورنیو چارو وزارت او مرجان غونډۍ کې له ماتې سره مخ شول، پخواني خلقیان یې پړه چور او چپاول ګڼي، ولي داچې د کابل واک له

---

[۸۲] د جون ۱۷مه ۲۰۱۹، حاجي سید داوود اغا ما (لیکوال) ته وویل: په ۱۹۹۴ ز کال کې جبل السراج کې د احمدشاه مسعود سره ناست وم، له هغه مې پوښتنه وکړه چې خلک وایې تاسي (مسعود) د بینن سیوان د سولې بهیر ناکام کړ، هغه وویل:"هو ژنیو کې چې د روسانو د وتلو اړوند پریکړه کېده، هلته مجاهدین له نظره غورځول شوې او شتون یې نه درلود، له همدې کبله ما (مسعود) همدا کار وکړ، د بین سیوان د سولې بهیر مې ناکام کړ، چې ورته وښیم چې پرته د مجاهدینو له شتون څخه د ژنیو پریکړه نه شي عملي کیدای."

[۸۳] د فبروي ۲۸مه ۲۰۱۸، د حزب اسلامي پېژندل شوې قوموندان مظفرالدین امین خان، چې وروسته د میدان وردګ والي شو، ما (لیکوال) ته وویل:"خلقیان په مجموع کې له حزب اسلامي او پرچمیان له جمعیت اسلامي سره یو ځای شول."

پرچم ډلې سره وو او هغوی له مسعود سره یوځای شوي وو، ممکن اصلي لامل د حزب د ماتې همدا وي. د حزب اسلامي وسلوال چهاراسیاب ته ولاړل، هلته یې خپل مرکزونه جوړ کړل.

ډاکټر نجیب الله هم د خپل واک په وروستیو کې هغه وخت خپله اندیښنه له خپلو پلویانو سره شریکه کړي وه چې کله د ۱۳۷۱ ل. کال د سخې صاحب جنډه [۸۴] د وري میاشتې په لومړۍ نیټه په مزار کې د جمعیت او دوستم ډلو په ګډه پورته کړه، ویل کیږي چې ډاکټر نجیب الله خپل پلویان راوغوښتل په ارګ کې یې ورته وویل چې نور خبره بل لور ته روانه ده، په مزار کې د یادو ډلو د یوځای کیدو له امله له تاسي څخه کمیس وکښل شو او که غفلت وکړئ او حکمتیار ته کابل ته د راتګ زمینه برابره نه کړئ، نو پرتوګ به هم درڅخه وکښل شي [۸۵]، همغسي وشول، کمیس او پرتوګ دواړه د ځینو ډلو د واک د انحصار له کبله له ځینو نورو څخه وکښل شول، چې همدا د جګړې د پیل او دوام سبب شو.

له ډاکټر نجیب الله سره په ۱۹۹۱ ز کال کې د عبدالرشید دوستم اړیکې خرابې شوې، له همدې څخه احمدشاه مسعود او پرچم (ببرک) ډلې ګټه پورته کړه، په ۱۹۹۲ مارچ میاشت کې سره یوځای شوو، دوستم د پرچمې ډلې له اړخه له مسعود سره روابط جوړ کړل، د پاکستان او حکمتیار ضد دریځ یې ونیوی، ایران، منځنۍ

---

[۸۴] په مزار شریف ښار کې د سخي صاحب زیارت چې ځیني د شمال اوسیدونکي دا زیارت حضرت علي رض ته منسوبوي، د نوي لمریز کال په لومړۍ ورځ د لوړ پوړو چارواکو له خوا جنډه پورته کیږي او له نورو ولایتونو یې هم ننداریې ته ګڼ شمیر خلک ورځي.

[۸۵] ما (لیکوال) ته استاد محمد زمان مزمل وویل:"ډاکټر نجیب د ۱۳۷۱ وري میاشتې په لومړۍ نیټه په مزار کې د جنډې پورته کولو مراسمو کې د شمال د مشرانو تر ائتلاف وروسته قومي مشران ارګ ته غوښتي وو، هغوی ته یې ویلي وو چې همدا (د جنډې پورته کول) ستاسي کمیس و او درڅخه وایستل شو، حزب اسلامي سره که جوړه ونه شي او کابل ته رانه شي، نو پرتوګ مو هغه دی، که هغه هم درڅخه واخیستل شو، لوڅ لغړ پاتي کیږئ، کوشش وکړئ چې سوله وشي او حزب اسلامي کابل ته راوستل شي."

اسیا، هند او روس د دې ائتلاف په جوړولو کې لاس درلود او له دوی څخه یې ننګه کوله." سید داوود اغا

"یو ځل د کابل په نظامي هوایي ډګر کې چاودنې وشوې او ۱۳۰۰۰ د الوتکو بمونه یکې له منځه یوړل شول، دا د مجاهدینو له خوا راکټونه نه وو، بلکې د حکومت له دننه دغه پلان جوړ شوی وو چې چاودنه په نظامي هوایي ډګر کې وشي.

دا رنګه یو ځل د کابل بالاحصار کې اور ولګیدی، هغه هم د حکومت د ننه د مجاهدینو سره اړیکه لرونکو کسانو پلان و، د مجاهدینو کوم راکټ نه وو لګیدلی، بلکې همهلته اور له داخل څخه اچول شوی و." جنرال امرخیل

"جنرال عبدالرشید دوستم ته ډیر نږدې د اردو جنرال عبدالروف بیګي په خپل کتاب (افغانستان بعد از پیروزي انقلاب اسلامي) کې لیکي : ۲۶ حمل ۱۳۷۱ زه بیګي او عالم رزم له لس فروند الوتکو ان-۳۲ سره مزار ته ولاړو، دوستم سره مو مجلس وکړ، چې د احمدشاه مسعود سره په مشوره د جهادي تنظیمو او دوستم ۱۰۰۰ کسان کابل ته را ولیږي، د جنرال مجید روزي [۸۶] تر قوماندي لاندي ۷۰۰ نفر کابل ته راغلل، د کابل په مهمو نقاطو او هوایي ډګر کې ځای پر ځای شول. د دوستم د قواوو په راتګ حکمتیار ډیر عصباني شو، ځکه هغه مخکې هم ویلي و چې جنبش ملي اسلامي چې مزار کې جوړ شو، د نجیب د حکومت ځای ناستي او د سولې پروسې د تخریب لپاره د ځینې جهادي تنظیمونو او دوستم تر منځ ائتلاف دی.

د سیاسي بیرو د اجرائیه غړو په امر او غوښتنه الوتکې مزار شریف ته د دوستم د کسانو کابل ته د راوړلو لپاره تللي وي، ډاکټر نجیب الله کوشش کړی و چې ددې کار

---

[۸۶] مجید روزي د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر مهال د عبدالرشید دوستم مرستیال قومندان، د ډاکټر غني د حکومت پر مهال د هرات امنیه قومندان او له حزب اسلامي سره د حکومت د سولې تړون مخالفت یې هغه مهال اعلان کړ.

مخه ونسي، ولي هغه وخت الوتکې بیرته له مزار څخه راګرځیدلي وي او د دوستم کسان په کابل کې د کودتاه لپاره را رسول شوې وو." جنگ های کابل، ۱۳۱مه پاڼه.

"د ۱۳۷۱ د ورې میاشت په دوېمه اونۍ کې د مدافع عمومي قومندان جنرال فتاح راته ټیلیفون وکړ چې نبي عظیمي ته الوتکه ولیږه کابل ته راځي اوس په جوزجان کې دی، قومندان ته مې وویل چې عظیمي خو په مزار شریف کې و، هغه وویل چې نه! جوزجان ته تللی دی. الوتکه مې ورته واستوله، عظیمې له ځینو نورو جنرالانو سره کابل ته راغی.

کله چې عظیمي له الوتکې څخه کښته شو، زما سره د روغبړ پر مهال یې وژړل او ما (امرخیل) ته یې وویل: "دوستم مرا به لغت زد."

مګر دروغ یې ویل او دا خبره رښتیا نه وه. همداسي عظیمي صاحب د سیاسي بیرو غونډه کې هم ژړلې و او ویلي یې و چې دوستم مرا به لغت زد. تر څو له دوستم سره د هغه په اړیکو د سیاسي بیرو کسان شکمن نه شي.

یوه اونۍ وروسته د هوایې مدافع عمومي قومندان عبدالفتاح راته ټیلیفون وکړ ویې ویل چې څو دانې الوتکې مزار شریف ته ولیږئ، د دوستم ملیشه دي راوړې چې هغه چهار اسیاب ته د حکمتیار د وسلوالو د مخنیوي لپاره لیږل کیږي.

د سیاسي بیرو له غړي او سیاسي رئیس مانوکې منګل سره مې اړیکه ونیوله، ځکه زما سره اندیښنه او شک وه، هغه راته وویل چې تاسي (امرخیل) دوستم باندي باور نه درلود، دادي اوس خپلې ملیشې د حکمتیار د وسلوالو د مخنیوي لپاره رالیږي چې چهار اسیاب ته یې ولیږو. مانوکې منګل ته مې وویل چې دوستم خاین دی، مګر هغه ویل چې د ډاکټر نجیب الله نږدې دوست دی. له مانوکې منګل څخه مې وغوښتل چې د دوستم کسان د کابل خواجه رواش هوایې ډګر کې راته پرې نه ږدي، کله چې کابل ته را ورسیږی، باید له میدان څخه بل ځای ته نقل شي، دا خبره یې را سره ومنله، ویې ویل د کابل ګارنیزون قومندان عظیمي ته امر کوم چې د دوستم کسان به له هوایې ډګر څخه وباسي.

ما (امرخیل) درې یا څلور الوتکو ته مزار شریف ته د لیږلو امر ورکړ، مګر زما له مشورې پرته د هوایې مدافع قومندان امر کړی و چې ِان ۱۲ او ِان ۳۲ الوتکې ټولې مزار شریف ته د دوستم د کسانو کابل ته راوړلو لپاره ور ولیږئ.

زما سره څکه شک و، کله چې به ښاغلی وکیل د بهرنیو چارو وزیر احمدشاه مسعود ته د خبرو لپاره تلی، هر ځل به دوستم له مسعود سره لیدل کیدی، همدا مې اندیښنه وه؛ چې کوم دلیل دی چې دوستم به د مجاهدینو سره جګړه وکړي؟

د دوستم ملیشې هوایې ډګر ته را ورسیدي، د شپې تر ۱۰ بجو هلته هوایې ډګر کې وم، بیا مې د هوایې مدافع قواوو نوکریوال جنرال نورالله ته ټلیفون وکړ، هغه ویل چې قومندان عبدالفتاح راته امر کړي چې همدلته هوایې ډګر کې و اوسم، هغه هم له دوی سره په جریان کې و. جنرال نورالله ته مې وویل چې تاسي دلته موجود یاست، ماته اړتیا نشته. او زه د شپې لس نیمې بجې له هوایې ډګر څخه د کور په لور راووتلم، سهار مې له بي بي سي راډیو واوریدل چې ډاکټر نجیب الله نامعلوم لور ته وتلي دی.

سهار هوایې ډګر ته ورغلم، هلته د دوستم د قواوو رئیس ارکان مجید روزي د هوایې مدافع قومنداني کې له ټانک سره نږدې ناست او د پرچم ډلې له نورو کسانو سره په خبرو بوخت و.

خپل دفتر ته ولاړم، د هوایې قواوو رئیس ارکان مې را وغوښت، هغه ته مې وویل چې نور هرڅه تاسي ته تسلیم دي او زه کور ته درڅخه ځم. کله چې د هوایې ډګر دروازې ته ورسیدم، یوه نوکریوال جګړن چې د لوګر و، زما موټر ته لاس ورکړ، موټر ورته ودرید، هغه ویل چې ماته امر شوی چې قومندان امرخیل ته د وتلو اجازه مه ورکوئ او که مقاومت یې وکړ ویې وژنئ، جګړن ویل چې تاسي زما قومندان واست او احترام درته لرم، ځکه نو ستونزه نه درته جوړوم. زما موټر ته یې له هوایې ډګر څخه د وتلو اجازه ورکړه." جنرال امرخیل

"د بابه جان د ملیشو په نوم د مسعود پنځه سوه کسان د باګرام څخه د چورلکو او الوتکو په واسطه کابل هوایې ډګر ته راوړل شول، په وزیراکبرخان، مکریان دریم او څلورم، خواجه رواش او بي بي مهرو کې ځای په ځای شول.

قومي رنګ ډیر غالب وو، د جبل السراج دویمه فرقه، د باګرام د هوايي قواوو ځلوېښتمه فرقه، خواجه رواش، د جمهوري ګارد قطعات، حربي پوهنتون، د قرغي لومړۍ فرقه او د جنوب لویدیځ لسمه فرقه شورای نظار او جمعیت ته تسلیم شوې.

د کابل ګارنیزون ډیر مهم رول درلود، نبي عظیمي خپلو هملارو ته ویلي وو چې له شورای نظار او جمعیت سره یوځای شي". جنګ های کابل ۱۴۳مه پاڼه

" له حزب اسلامي سره د ثور په دویمه ۱۳۷۱ ل کال کې د کورنیو چارو وزارت اړوند پنځمه فرقه او د پولیسو اتمه لواء په لته بند کې ورسره یوځای شوې.

حزب اسلامي د لوګر له خوا تر چهار اسیاب،، ریشخور، چهلستون، جنګدلګ او ګذرګاه. د ختیځ له خوا د ثور میاشت په دریمه د شینه سیمې، خوردکابل، هودخیل، مکرریان اول او د غرب له له خوا د ثور په لومړۍ نیټه تورن امان الله د میدان ښار له لوري تحرکات درلودل. له دریو لورو حزب اسلامي کابل ته نږدې شوی وو، مګر جمعیت اسلامي له شمال لوري او داخل د کابل څخه د پخوانیو پرچمیانو د ملګرتیا له امله قوي شوی وو. " جنګ های کابل ۱۴۷مه پاڼه

د مئ ۸مه ۲۰۱۷، انجنیر حکمتیار په کابل کې د وینا پر مهال وویل:"د حزب اسلامي او ډاکټر نجیب الله د استازو تر منځ لیدنې په کابل،ننګرهار او هرات کې شوې وي، ډاکټر نجیب الله په ایتلافي حکومت جوړیدو باندي ټینګار درلود، خو په وروستي وخت کې یې ومنله چې د ملګرو ملتونو د طرحې مطابق واک په سولییز ډول سره مجاهدینو ته تسلیم کړي، مګر د کي جي بي او سي آی اې د مشترک پلان له مخې د ډاکټر نجیب الله له خوا مجاهدینو ته په سولییز ډول د واک د انتقال مخه ونیول شوه[۸۷]. "

---

[۸۷] د فبروري په ۲۶مه ۲۰۱۸ جنرال امرخیل وویل:"جنرال رفیع ما (امرخیل) ته وویل چورلکه چمتو کړه، چهاراسیاب ته ځم او له حکمتیار سره وینم، دوو چورلکو کې هغه او ځینې نور جنرالان چهار اسیاب ته ولاړل، له حکمتیار سره تر لیدنې وروسته یې د کابل کانټیننټل هوټل کې خبرې ناسته درلودله او ویې ویل چې حکمتیار له ټولو اوسني سیاسي حالاتو خبر او چمتووالی لري."

کله چې مسعود کابل ته ننوتی، له دوستم سره پر کړو ژمنو ونه دریدی، د وستم له حکمتیار سره په ائتلاف کې شامل شو.

"د حیرتان بندر کې د ببرک په مشرۍ جنرالانو قوت درلود، مجلسونه یې کول، مسعود دا فکر نه وو کړی چې که حزب اسلامي ماتې خوري نو دوستم او ملیشه به یې لازیات قوت پیداکوي، همهغه دوستم چې د حزب او نجیب په پرځولو کې یې له مسعود سره مرسته وکړه، اوس دده له پاره لوی سرخوږی وو.

دوستم له موقع څخه په استفاده تر مسعود هم زیاته فایده وکړه، په شمال او کابل کې ډیر نظامي مهمات لاسته ورغلل، ډیر قوي شو، په شمال کې دده اړوند ډیر مثبت تبلیغات وشول. دوستم چې ډیر امکانات درلودل، د مسعود او نورو ګوندونو د مجاهدینو په منځ کې یې د نفوذ کولو هڅې پیل کړي، مسعود هم ویره لرله داسي نه چې استاد رباني د مسعود پرځای په دوستم باندي پانګونه وکړي تر څو د مسعود له پاره بدیل او بلانس ولري.

دوستم وتوانیدی چې د حزب اسلامي پیاوړي او نفوذ لرونکی ازبک توکمه قومندان نسیم مهدي خپل لورته ودروي.

په کندز او تخار کې ازبک قومندانان او په بدخشان او تخار کې ځینې تاجک قومندانان هم له دوستم سره د مسعود سره د مخالفت له امله یوځای شول.

مسعود دخطر زنګ احساس کړ، دغو قومندانانو ته یې پیغام واستاوی چې څه ډول د جهادي سابقې سره سره د کمونسټ ملیشو له مشر دوستم څخه اطاعت او فرمانبرداري کوئ.

دوستم وپوهیدی چې هیڅکله به یې مسعود د مجاهدینو په لیکو کې ونه مني، هغه په شمال کې د خپلو شتو امکاناتو له مخې هڅه وکړه چې خپل ځان د جهادي رهبرانو په څیر او ګوند یې د جهادي ګوندونو په څیر اهمیت پیداکړي، له دي امله

د مجاهدینو د بریالیتوب ورځې (۸ غويي ۱۳۹۸ / ۲۸ اپریل ۲۰۱۹) په مناسبت، حکمتیار په ارګ کې د غونډې ګډونوالو ته وویل:"د ثور اتمه ۱۳۷۱ کودتاه وه، د مجاهدینو د بریا ورځ نه وه."

يې د جهادي ګوندونو په نسبتاً کوچنيو قومندانانو کار وکړ او ډيرې يې د پيسو او امتيازاتو په مقابل کې د ځان کړل. پرچميان چې په مجموع کې د مسعود له چلند څخه ناخوښ ول ځانونه يې دوستم ته ورسول او ځينې خلقيان چې حزب اسلامي بې وسلې کړل[۸۸]، ځای يې ور نه کړ، هغوی هم له دوستم سره يوځای شول. دوستم ډير زيات قوي شو." ۶۹ او ۷۰ مه پاڼه، علل سقوط

" انجنير حکمتيار له احمدشاه مسعود څخه وغوښتل چې پخوانۍ پرچم مليشي دي له کابل څخه وباسي، مګر د مئ د ۷مه ۱۹۹۲، احمدشاه مسعود د حکمتيار غوښتنه رد، ويې ويل چې په کابل کې مليشې شتون نه لري، پخوانيو افغان کمونسټ جنرالانو له مجاهدينو سره په حساس وخت کې مرسته کړي[۸۹] او د دوی په مرسته

---

[۸۸] په دې ډله کې د پرچم ډلې قهرمان جبارخان هم و چې د پښتو په حساب له حزب اسلامي سره يو ځای شو، هغه په کندهار کې د قومي مليشو مشرې کوله، جنګيالي يې په کندهار، هلمند، زابل، خوست او نورو پښتون ميشت ولايتونو کې د مجاهدينو پر ضد جنګېدل.

حکمتيار چې کله له هغه څخه نظامي تجهيزات تر لاسه کړل، هغه يې تش لاس پريښود، وروسته له دوستم سره يوځای شو.

پر افغانستان د امريکا له بريد وروسته د ولسي جرګې غړی شو، د ډاکټر غني د حکومت پر مهال د هلمند ولايت د جګړې پر مخ بيولو لپاره د وزارت دفاع له خوا د نظامي اوپراتيفي مشر په دنده وګمارل شو، په دنده کې ناکامه او بيرته ولسي جرګې ته ولاړ، د اکتوبر ۱۷مه ۲۰۱۸ په لښکرګاه ښار کې، د ولسي جرګې لپاره دده په ټاکنيز دفتر کې د ماين چاودنې له امله ووژل شو.

[۸۹] د جولای ۱۵مه ۲۰۲۰، د جوزجان مرکز شبرغان کې دوستم ته د مارشالي رتبې د رسمي مراسمو پر مهال هغه ووېل:"ماته څکه بايد مارشالي راکول شي، که جنرال دوستم نه وای، اسلامي انقلاب نه بريالی کيدی، حضرت صبغت الله راته د ستر جنرال رتبه راکړه، د خالد بن وليد لقب يې راکړ، هغه پوهيدی.

که د نجيب پر حکومت مې دروازې بندې کړې نه وای، مجاهدينو کابل نه شو نيولای."

يې کابل ته سقوط ورکړی، احمدشاه مسعود داهم وويل چې له حکمتيار سره د خلق ګوند اسلم وطنجار[۹۰]، جنرال پکتين، جنرال ماڼوکی منګل او نور يوځای دي.

د مئ پر ۸مه ۱۹۹۲، استاد سياف وويل: د حکومت جوړښت له کمونستانو سره د يوځای کيدو په معنی نه دی، اوسنی حکومت بايد د پيښور تړون ته ژمن وي، پرته له مسلمان ځخه حکومت کې بل چا ته دنده بايد ورنه کول شي، که داسي وشي اتحاد اسلامي له حکومت ځخه وځي." حواث تاريخي

د استاد رباني د حکومت پر مهال ډيري پخواني پرچميان په ملکي او نظامي مهمو او لوړو دندو پاتې او د احمدشاه مسعود سره ملګري او د حزب اسلامي په ضد يې جګړه کوله.

" د استاد رباني په وخت کې په مهمو چوکيو د پخواني رژيم خلک پاتي شول، امنيت، مفتشين، څارنوالان او د معينانو په چوکيو کې دغه کسان بيا هم پاتي وو." ۵۸مه پاڼه، علل سقوط دولت.

---

[۹۰] اسلم وطنجارد پکتيا د زرملي اوسيدونکی، پر سردار داوود خان د ثور اومي ۱۳۵۷ کودتاه پر مهال يې لومړي په ارګ د ټانګ مرمۍ وويشتلي او له کابل راډيو يې اعلان وکړ چې نادري کورنۍ د تل لپاره له واکه ګوښه شوه.

د نورمحمد ترکي د حکومت پر مهال د مخابراتو وزير (۳۰ اپريل تر جولای ۱۹۷۸) و، دارنګه د کورنيو چارو وزير(۲۸ جولای تر ۱۳ سپتمبر ۱۹۷۹) و، کله چې حفيظ الله امين پر ترکي کودتاه وکړه، اسلم وطنجار له خپلو دوو نورو ملګرو (ګلابزوی او اسدالله سروري) سره تري تم شول.

د ډاکټر نجيب الله د حکومت پر مهال، چې کله د خلق ډلې مهم د کورنيو چارو وزير ګلابزوی د روسانو له خوا له دندې لرې کړل شو، پر ځای يې اسلم وطنجار (۱۵ نومبر ۱۹۸۸ تر ٦ مارچ ۱۹۹۰) وټاکل شو.

اسلم وطنجار وروسته د پرچم ډلې او د حکومت مشر ډاکټر نجيب الله نږدې ملګری شو او د خلق ډلې اړوند دفاع وزير شاه نواز تني د کودتاه په ناکامي کې يې مهم رول ولوباوه، د ډاکټر نجيب الله له خوا ځلور ستوری مډال ورکړل شو او دارنګه د دفاع وزير وټاکل (٦ مارچ ۱۹۹۰ تر اپريل ۱۹۹۲) شو.

اسلم وطنجار د ۵۴ کلو په عمر د نومبر ۲۴مه ۲۰۰۰ کال، په اوکراين کې مړ شو.

## د مسعود د واک انحصار

د حزب اسلامي ځینې مهم غړي او قومندانان وایې چې استاد رباني سوله غوښته مگر احمد شاه مسعود په جنگ ټینگار کاوه تر څو واک د ځان له پاره وساتي، مگر سیاسي شنونکې وایې چې استاد ربانی د مسعود له مشورې پرته هیڅ کار هم نه کاوه کله چې خبره د مسعود سره د مشورې کیږي بیا نو استاد رباني هم پدې ملامت بلل کیږي چې د خپل حکومت په وخت کې یې د سولې پر ځای جنگ ته ترجیح ورکړي وه.

"مسعود هیڅکله د کورنۍ جگړې پر مهال چمتو نه و چې واک کوم بل جهادي مشر ته وسپارل شي، هغه غوښتل چې واک له دوی سره وي او نور مجاهد رهبران په حکومت کې ورسره شریک کړي. جهادي رهبران او په ځانگړې ډول حکمتیار ټینگار درلود چې د جمعیت گوند باید له ولسمشرۍ او یا دفاع وزارت چوکۍ څخه تیر شي، مگر احمد شاه مسعود هیڅکله په سم ډول د حزب دغه غوښتنه ونه منله." وحید مژده

"د جمعیت د اجرائیه شورا غړو کوشش کاوه چې په کابل کې هم د جمعیت اسلامي د گوند د پېښور تشکیلات مراعت شي، تر څو د جمعیت مهم غړي په دولت کې هم مهم رول ولوبوي، مگر احمدشاه مسعود د دي کار مخالف و، ویل یې چې په گوند کې ډیر داسي کسان وو چې کار نه شي کولای او د پېښور د تشکیلاتو مخالفت یې وکړ. داچې نظامي واک له مسعود سره و نو د جمعیت د مهمو کسانو خواهش یې له خاورو سره خاوري کړ.

په دي کار سره مسعود وتوانیدی چې واک خپل او ډیری جمعیتیانو وروسته فکر کاوه چې مسعود د جمعیت دویم نفر دی، له رباني ورسته همدی دی، مگر د وخت په تیریدو بیا د جمعیت اسلامي مهم خلک پوهیدل چې اصل کې لومړی سړی مسعود دی[۹۱]، دویم استاد رباني دی، ځکه استاد رباني د مسعود له مشورې او

---

[۹۱] په دي معنی چې نظامي زور او واک له مسعود سره و، استاد رباني یوازي د حکومت د مشر په نوم کار کاوه او د احمدشاه مسعود له اجازې پرته یې په لویو او مهمو مسایلو کې

اجازې پرته هيڅ کار او عمل نه کاوه او نه يې وس درلود، جنګې ماشين د مسعود په لاس کې وو او په هغه وخت کې خبره د جنګ وه، که مسعود نه واى نو رباني هم پوهيدى چې بيا به دى هم نه وي.

مسعود په ګردو مهمو ادارو کې خپل ځانګړې کسان درلودل، دبهرنيو چارو وزارت، کورنيو چارو وزارت، دفاع وزارت، بانکونه، ښاروالي او نورو دولتي ادارو کې، هر يوه يې، هره ورځ د خپلو ادارو راپور مسعود ته ورکاوو. کله چې له دفاع وزارت څخه لرې شو هم په دغه حالت کې تغير رانغى او مسعود بر لاس درلود."
۴۷ او ۴۸مه پاڼه، علل سقوط دولت

د جولاى ۷مه ۲۰۱٦، د انجنير احمدشاه احمدزې کور کې مجلس و، استاد محمد زمان مزمل وويل:"د ۱۳۷۱ ل کال د ميزان مياشت کې، ابراهيم د سعودي عربستان د پاچا ملک فهد پيغام د تورخم سره نږدې شمشاد سيمه کې د استاد رباني د حکومت د اطلاعاتو او کلتور وزير محمد صديق چکري ته ورکړي و چې:

۱ – استاد برهان الدين رباني دي استعفى له حکومت څخه ورکړي.
۲ – يو له دوو شيخينو (مولوي خالص بابا او مولوي محمد نبي محمدي) څخه دي د دوو کلونو لپاره ولسمشر اعلان شي.
۳ – د مجاهدينو د مشرانو قوي او واک لرونکي شورا دي جوړه شي.
۴ – دوستم دي هم په حکومت او شورا کې شريک وي.
۵ – دوه کاله وروسته دي ټول يو ځاى سعودي عربستان ته راشي او په اتفاق دي خپل راتلونکى مشر وټاکي.

کله چې ياد پيغام استاد رباني، استاد سياف او احمد شاه مسعود ته ورسيدى، استاد سياف وويل چې زه خو دښمن هيواد (سعودي عربستان) ته بيا نه ورځم. او له دوستم سره په هيڅ صورت يو ځاى نه کښينم.

---

تصميم نه شو نيولاى، نو ځکه د جمعيت مهمو غړو ويل چې احمد شاه مسعود د جمعيت اړوند پريکړو او کړنو، دا ډول د دولت په کچه پريکړو کې لومړى واکمن سړى دى.

مسعود وویل چې اوس موږ ډېرې دښمنۍ کړي، حکومت نه شو پرېښودلای.

استاد رباني د سعودي وړاندیز مانه، خو مسعود او سیاف نه پرېښودی."

استاد مزمل وویل:" یو ځل جبل السراج کې ناسته وه، استاد رباني غوښتل چې له ولسمشري څخه استعفی ورکړي، خو احمدشاه مسعود سترګې ورباندې را برګې کړي چې استعفی به نه ورکوي."

انجنیر احمدشاه احمدزي وايي:" د دوستم سره مسعود د دې له پاره یوځای شو چې حزب اسلامي مات کړي، مسعود په جنګ کې تکړه سړی و، ښه جنګي تاکتیک یې درلود، د هغه په وړاندې حزب اسلامي، حزب وحدت، دوستم او مزاري، ټول ونه توانیدل. حزب او جمعیت د یو بل ټکولو لپاره هغه دوستم ته لاسونه اوږده کړه چې په هیواد کې یې ډېر مسلمانان په شهادت رسولي وو، دوستم پغمان کې هم ډېرې خرابۍ وکړې، ونې یې هم نه پرېښودلې او قطع یې کړې.

استاد رباني د خپل حکومت په لومړیو وختو کې؛ چې دوستم له احمدشاه مسعود څخه خفه شو، ډېر کوشش وکړ، چېنې او تحفې یې دوستم ته ولیږلې چې موږ سره شه، د شمال علما یې ورته واستول، مګر دوستم ونه منله، ځکه چې له دوستم سره کومې وعدې مسعود کړې وې، هغه یې پر ځای کړې نه وې.

د تاجک مجاهدینو مشر عبدالله نوري ډېر ښه سړي او ډېر ښه مجاهدین ورسره وو، مسعود او رباني معامله وکړه، په تاجک کمونستانو یې خرڅ کړل، روسانو ورته وویل تاسې دوی مه تقویه کوئ، موږ به ستاسې سره کومک وکړو، پټه معامله یې وکړه، د تاجکستان مجاهدین یې خرڅ کړل، هغوی له دواړو (مسعود او رباني) اوس هم بد وړي، ایران کې مې څو کسان ولیدل، ډېر خفه دي[۹۲].

[۹۲] د اکتوبر ۱۲مه ۲۰۱۸، د روسيې اسپوتنیک اژانس راپور ورکړ: "د ګډ حکومت اجرائیه مشر ډاکټر عبدالله عبدالله تاجک خبریالانو ته نن ورځ وویل چې په افغانستان کې د تاجکستان د سولې موډل کار نه ورکوي، ځکه د طالبانو ملاتړ له بهرڅخه کیږي.

احمدشاه مسعود په ښکاره ډېر مؤدب او باادبه شخص و، مخامخ یې د هر چا ډېر زیات احترام کاوه، چالاکه او ماهر و، په وعده یې وفا نه کوله، په استاد رباني یې تنقیدونه درلودل، مخامخ یې نه ویل، ولي سړی پوهیدی.

استاد رباني له طالبانو سره مرسته کوله، تر څو هغوی قانع کړي چې د ده حکومت ومني، مسعود او رباني له قدرت څخه نه تیریدل، تګلاره یې نرمه وه، دوی عقیده نه درلوده چې طالبان به د حکومت کولو خلک وي، غوښتل یې چې په حکومت کې یې شریک کړي، وزیران شي، پیسي یې ورکړي هلې ځلي یې ډیري وکړي.

میدان ښارکي مسعود له طالبانو سره ولیدل[۹۳]، د حکومت کابینه کې یې دا خبره نه ده کړي، ویل کیږي چې له طالبانو سره یې مالي مرسته هم کړي وه، دا ډول استاد

---

د تاجکستان سوله کې استاد برهان الدین رباني او احمدشاه مسعود مهم رول درلود، دوی نه غوښتل چې حتی یوه ورځ نور یې په ګاونډې دوست هیواد کې جګړه دوام وکړي، له دي امله افغانستان واسطه شو چې په تاجکستان کې سوله راشي، که په تاجکستان کې جګړې دوام کاوه، پر موږ یې هم تاثیر کاوه. "ډاکټر عبدالله عبدالله د تاجکستان پایتخت دوشنبې کې د شانګهای د همکاری غونډې ته په همدې ورځ خپله وینا هم وکړه.

[۹۳] د طالبانو او مسعود د لیدني اړوند د ملا عبدالسلام ضعیف کتاب "طالبان له کندهاره تر مزاره – ۱۰۸مه پاڼه" کې لیکل شوي:"احمدشاه مسعود د کابل د قابضینو په مشوره د تحریك د مشرانو سره د خبرو او ملاقات غوښتنه وکړه. د رهبري مقام په هدایت سره ملا محمد (رباني) او شهید ملا بورجان اخوند د مسعود سره د خبرو کولو لپاره وټاکل سوه.

احمدشاه مسعود ۲۲ دلو ۱۳۷۳ ل.کال کې د لږ وخت لپاره د میدان ښار مرکز ته چې پخوا د حکمتیار تر کنټرول لاندي و ورغلی، هلته یې د مرحوم ملا محمد (رباني) او شهید ملا بورجان اخوند سره خبري وسوي. ملا محمد عمر مجاهد لا د وړاندي خپلو مجاهدینو ته هدایت کړی و، چي د مسعود ښه امنیت وساتي او د میلمه پالني احترام یي ورته په ځای کړي. نږدي څلور ساعته د دواړو غاړو ترمنځ خبري وسوي او تر خبرو وروسته مسعود بیرته په مصؤن ډول د میدان ښار څخه کابل ته ستون سو.

سیاف هم طالبانو ته کالي، کوټونه او بوټان ور ولیږل[۹۴]. چې راضي یې کړي تر څو له دوی سره جنګ ونه کړي.

مسعود او رباني فکر کاوه چې موږ خو دومره ناروا نه ده کړي لکه حزب اسلامي، نو تاسي طالبان ولي له موږ سره جنګ کوئ، طالبانو ویل چې تر څو ټول پخواني مجاهدین له صحنې لرې نه شي سوله نه راځي.

روس، هند او ایران له مسعود او رباني سره مرستې کولي، دوی غوښتل چې د تاجکو دغه نظامي او سیاسي ځواک دوامداره وساتي.

زه (احمدشاه احمدزی) په حکومت کې دویم سړی وم، صدراعظم وم، مګر مسعود د خورد ظابط په سترګه راته نه کتل، یو ځل مې ورته وویل چې ښه دي پېژنم، ماته په خوله صدراعظم وایې، مګر په زړه کې والله که ټکی احترام هم راته لري.

موږ او استاد رباني د مسعود لپاره په ګډه طاهر بدخشي د سیاسي سلاکار په توګه معرفي کړ، هغه ډېر ښه سړی و، ولي په بامیان کې د هغه چورلکه ولویده او هغه پکې مړ شو[۹۵]."

---

د مسعود سره داسي فکر و چي طالبان به د استاد رباني اداره په رسمیت وپیژني او همکاري به ورسره وکړي. د نوموړي دا توقع برعکس ثابته سوه."

[۹۴] د جولای ۱۹مه ۲۰۱۷، استاد سیاف موږ (انجنیر احمدشاه احمدزي، استاد مزمل، حاجي فرید) ته وویل:"امیرمحمد اغا کورته راغی، شپه یې را سره وکړه، کالي یې خیرن و، ویل یې چې خپل کور (کندهار) ته ځم، ۲۰ لکه افغانۍ مې جیب خرڅ ورکړي، د طالبانو لپاره جامې، کوټونه او بوټونه مې هم ورته ورکړل، د خدای پاماني وخت کې یې لاسونه را مچ کړل، زه په سهار جلال اباد ته په لاره روان وم، احوال راغی چې جګړه پېل شوې او قومندان یې امیرمحمد اغا دی."

[۹۵] ما (لیکوال) ته د جمعیت یو مهم غړي وویل چې په چورلکه کې ماینونو چاودنه وکړه او طاهر بدخشي پکې ووژل شو، ځکه مسعود ویره درلودله چې طاهر بدخشي استاد رباني ته نږدې کس دی.

انجنير احمدزی وايي:"ماته طاهر بدخشي وويل چې له مسعود سره کينه، په سبا يې موږ سره کيناستلو، مسعود له چاريکارو څخه راغی، ورته مې وويل چې په حکومت کولو نه پوهيږئ، زه د حکومت صدراعظم يم، مګر تاسي راته د خورد ظابط حيثيت باندی هم نه ياست قايل، مسعود وويل چې استغفرالله، تاته زه ډير زيات احترام لرم، ورته مې وويل چې والله که يوه زره احترام هم لري، کوم ډول چې ته دا نظام چلوي، دا حکومت داري نه ده، خلکو ته ازار ورکوئ.

مسعود ويل چې د دولت رئيس کمزوری شخص دی، ورته مې وويل چې کاشکي هغه رئيس دولت وای، ته خپله رئيس دولت او هر څه يې، کله څوک په حکومت کې پريږدئ چې صلاحيت او واک ولري.

احمدزی وايي؛ مسعود ته مې وويل چې ماته خلک راځي چې مسعود څنګه ووينو، مشرانو قومندانانو ته د ليدو وخت نه ورکوئ، چې د ټولي دنيا وزير دفاع شي بيا هم والله که پروان ته ستا د ليدو لپاره درشم، خلک ماته راځي او ستا په باره کې ستونزې بيانوي، هغوی ښکنځل کوي، ځينو قومندانانو ته د ورځي ۹ بجي وعده ورکوي او مازديګر ۵ بجو پوري درته انتظار وي، بيا چې کله بيرته راشي، هغوی بدې خبرې کوي، اخلاق دی سم کړه او په وعده وفاه کوه.

مسعود ته مې وويل چې د امنيت رئيس قسيم فهميم هم څوک نه شي ليدلای، تا هم څوک نه شي ليدلای، خلک [96] ماته راشي او شکايتونه کوي، کاشکي يو باډيګارډ / سکرټر دي وای چې زموږ خبره يې درته رسولای، که ته داسي فکر کوي چې زه به ستا دفتر ته درځم، په عمر کې هم دا کار نه کوم، ځکه ته تر ما کشر يې. مسعود به خلک د ليدو لپاره پروان ته غوښتل.

[96] د اتحاد اسلامي او غير جمعيتي قومندانان او مشران هدف دي، ځکه د شورای نظار کسانو د مسعود ليدلو کې ستونزه نه درلودله.

یوځل د ډیورنډ پولې د هغې غاړې کسان کابل ته راغلي وو، هغوی یې بندیان کړي وو، ورته مې وویل چې د کوم سند له مخې دي بندیان کړي، هیڅ یې ونه ویل، نظام یې شخصي وو، حکومت ته ورته نظام نه وو.

احمدزی وایي کله چې د کورنیو چارو وزیر وم، خپل کار مې کاو، د مسعود لارښوونو ته نه منتظر کیدم، دفاع وزارت کې پرچیمان وو، هغه مسعود سره یوځای شوي وو او کورنیو چارو وزرات کې خلقیان وو، ټول مې راوغوښتل، ورته مې وویل چې د اسلامي ارزښتونو اړوند بده خبره وانه ورم، بیا تحمل نه لرم، د وزارت مرستیال چې پرچمی و، هغه مې راوغوښت، ورته مې وویل چې نور رخصت یې، ولاړ شه، نور مې هیڅ ډول بد چلند ورسره ونه کړ، هغه تاجکستان ته ولاړ، کله چې استاد سیاف خبر شوی و، هغه ویل چې ډیر لوی مجرم و.

د پاسپورټ اخیستو لپاره د انګیټ په نامه د ۱۶ حوزو تصدیق ته اړتیا وه، د وزارت شاته دوکانو کې یو ساعت کې دا تصدیق جعلي جوړیدی، کله چې خبر شوم، ما دا کار بند کړ، د بندیدو صلاحیت یې د ولسمشر و، مګر ما خپله داکار وکړ او تر اوسه هم هغه تصدیق بند دی.

د پاسپورټ اخیستلو لپاره ډولي ښځې راتلي، خلکو به ویل چې کابل کې غربت دی، مګر ما به ویل چې دا میرمنې ښکلې موډرنې جامې په تن کوي، پخواني کمونستان ویریدل، د پاسپورټ اخیستلو لپاره راتلل او ما هم ورته ویلي وو چې که هرڅوک له هیواده بهر ځي، پاسپورټ ورته ورکوم او که پاتې کیږي له موږ سره دې کار کوي.

یونس قانوني[۹۷] یو ډیر مفسد پرچمی چې ظاهر اکبر نومیدی، د کابل امنیه قومنداني د امنیت رئیس مقرر کړی و او له استاد رباني یې د هغه د مقررۍ احکام

[۹۷] یونس قانوني د نظار شورا غړی، د استاد رباني د حکومت پر مهال د کورنیو چارو وزیر، له طالبانو سره یې جګړې کړي، پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته، د لنډ مهاله حکومت پر مهال د کورنیو چارو وزیر، د انتقالي حکومت پر مهال د پوهنې وزیر او په امنیتي چارو

اخیستي وو، قانوني ته مې وویل ولې دې دا سړی مقرر کړی؟، هغه ویل ولې؟ په ده کې څه مشکل دی؟ ومې ویل چې دا خو مرده ګاو، بداخلاقه او فاحش انسان دی، موږ او تاسې مجاهدینو ته شرم دی. قانوني وویل چې ته به شخصي مشکل ور سره لرې.

د جمعیت ګوند غړی، د حج او اوقافو وزیر سخیداد فایض راغي ویې ویل خوله دې راکړه چې مچ یې کړم، دغه ډول خبري خو موږ نه شو کولای.

زما (انجنیر احمد شاه احمدزي) او قانوني ترمنځ خبره خرابه شوه، استاد رباني ته ولاړم، هغه د ناامنۍ له امله، د ارګ پر ځای د خیرخانې بلنداژه سېمه کې کیناستی. ورته مې وویل چې استاد! ظاهر اکبر دې د کابل د امنیت د رئیس په چوکۍ ګمارلی، له دې خپلې سپینې ژیرې دې حیا نه درتله، هغه ویل چې والله رښتیا وایې، ویې ویل قانوني بدبخت په ما د هغه احکام تیر کړي، استاد رباني کمزوری شخص و او ظاهر اکبر یې منفک نه کړ."

" اخلاقي فساد د رباني د حکومت لوړ پوړو چارواکو (وزیرانو) ته هم رسیدلی ؤ، ځینو وزیرانو اعتراف کاؤ چې کورونه یې دلته نشته، مجبوریت دی. داسې ویډیو ګانې د لوړ پوړو مجاهدینو پټې له کمونستانو سره وې چې کله یې فحشاء کوله شرم ؤ چې کوم بل مجاهد یې ووینې." علل سقوط ۲۶ مه او ۲۷مه پاڼه

محمد اسماعیل ورسجي د کورنیو چارو وزارت د جنایي جرمونو رئیس وایې:"د قالینو یو دوکان کې چې درې نفره ؤ، یوه میرمن ور ننوتله او هلته وځنډیله، کله چې دوکان ته داخل شوم، پرته له دې چې ښځه عذر وغواړي ویې ویل چې نفقه له کومه پیداکړم. له همدې لارې ورځنۍ خرڅ پیداکوم. هغه نفر چې له دې میرمن سره یې د بدکارۍ رابطه وه، ما خپلو کسانو ته وویل چې وزارت ته یې یوسئ، هغه نفر وویل تکلیف مه کوه، فایده نه کوي، کله چې یې وزارت ته یوړل، هغه نفر د

---

کې د ولسمشر سلاکار، د ولسي جرګې رئیس و. کله چې د ولسمشر کرزي لومړی مرستیال قسیم فهیم مړ شو، پر دنده یې قانوني وګمارل شو. د حراثت او ثبات ټولنې غړی و.

امنیت کس ؤ لږ وروسته د لوړ پوړو کسانو په سپارښتنه خلاص شو، بیا زه ډیر شرمنده وم." ٦۳مه پاڼه، علل سقوط

د جولای ۷مه ۲۰۱٦، د انجنیر احمدشاه احمدزي کور کې مجلس وو، استاد محمد زمان مزمل وویل:"د کابل کارته نو سیمه کې یوه هلک د کوڅې څخه پېغله نجلۍ وتښتوله، د سیمې خلکو د دوستم وسلوالو ته خبر ورکړ، د پوستې کسانو هغه نجلۍ وژغورله.

د سیمې خلکو ویل چې همدې ځوان به په اونۍ کې له کارته نو څخه دوې نجلۍ تښتولې او بیا به یې ورسره یوه یا دوې شپې تیرولې بیرته به یې خوشې کولې او دغه ځوان د استاد رباني وخت کې د کوم ریاست مرستیال و.

د کابل چهاردهي سیمې څخه د کورنۍ جګړې پر مهال تر ۳۰ زیاتې پېغلې نجونې په بېلابېلو وختونو کې تښتول شوې او بیا یې له شپو تیرولو وروسته پرې ایښې وې.

زه (مزمل) او ډاکټر انور (د ډاکتر غني د حکومت په لومړۍ دوره کې د عدلیې وزی) دواړه یو ځای استاد برهان الدین رباني (د مجاهدینو د حکومت مشر) ته ورغلو، هغه ته مو په کابل ښار کې د فحشا او بې ناموسي او د یادو پېښو څخه یادونه وکړه، استاد رباني په څرخي چوکۍ کې ایسته او دورې شو، ویې ویل (فکر میکدم که گف نو است)

زموږ خبرې ته یې هیڅ اعتنا ونه کړه او موږ دواړه ډیر خفه د هغه له دفتر څخه راووتلو."

مزمل صاحب وویل:"د ډاکټر نجیب الله د حکومت هغه ځای چې هلته به پکې شراب څښل کېدل، د مجاهدینو د مشرانو غونډه وه، په لومړیو ٦ میاشتو کې د مجاهدینو حکومت په ټلویزون کې په ښځینه ویندویانو بندیز لګولی و، دا وخت ښځینه ویندویانو ته اجازه ورکول شوې وه.

استاد سیاف د مجاهدینو د حکومت مشر استاد رباني ته وویل چې هغه ښځه (ویندویه) دي په ټلویزون کې بنده کړه، ما (مزمل) ورته وویل چې خیر، دا خو کوم شرعي ناوړه عمل نه دی، تاسي خپل وسلوال او کسان بند کړئ چې هغوی د خلکو په ناموسونو باندي تیری کوي، هره ورځ د کابل ښار څخه نجوني تښتوي او ناوړه

عمل ورسره کوي. له استاد سياف سره زما خبره ګډه وډه شوه. او سياف زما خبره په ځان ډيره بده ومنله."

مزمل صاحب زياته کړه:"د کابل خلک عقدو نيولي وو، کله چې د طالبانو وخت کې په شمال کې څه وشول؟ دا طالب نه دي کړي، همدا د کابل خلک چې له طالبانو سره ملګري شوې وو، کيداى شيي د مجاهدينو له خوا په کابل کې له ميرمنو سره د بد چلند غچ يې اخيستى وي."

" رحيم وردګ [۹۸] چې د محاذ ملي ګوند غړى و، لوى درستيز اعلان شو، لږ وروسته بيا کابل راډيو اعلان وکى چې رحيم وردګ سهوا لوى درستيز اعلان شوى، په عوض يې اصف دلاور (پرچمى) لوى درستيز دى ( ۵ مئ ۱۹۹۲).

د روسي جنرال پيټر شيريشوف په مشري هيئت له دوستم سره مزار شريف کې وليدل چې د مسعود سره يې يوځاى کړي، دوستم وويل کله چې طالبان کابل دروازو ته نږدې شول مسعود زما ګرده شرطونه ومنل کله چې طالبانو ماتې وخوړله، د مسعود سياست تغير وکړ (۲۸ جولاى ۱۹۹۵). " حوادث تاريخې افغانستان

د ډاکټر نجيب الله د حکومت تر نسکوريد وروسته ډير نظامي تجهيزات مجاهدينو ته پاتې شول، ډيره برخه يې احمد شاه مسعود ته په کابل او شمال کې، تورن اسماعيل خان ته په هرات، مولوى جلال الدين حقاني ته په خوست او پکتيا، ملا نقيب الله ته په کندهار او فضل الحق مجاهد ته په ننګرهار کې په لاس ورغلي، چې بيا وروسته د نظامي

---

[۹۸] رحيم وردګ د جهاد پر مهال د ملي اسلامي محاذ ګوند نظامي مسؤل و. د استاد برهان الدين رباني د حکومت پر مهال د کابل ښار د امنيت ساتلو د کميسون غړى، وروسته لوى درسيتز او د ملي دفاع وزارت مرستيال و.

پر افغانستان د امريکا تر بريد وروسته، د حامد کرزي د حکومت پر مهال دفاع وزير (۲۳ ډسمبر ۲۰۰۴ تر ۷ اګسټ ۲۰۱۲) و.

تجهیزاتو ډیره برخه کباړ او پاکستان کې په ټیټه برخه خرڅ شول. پاتې نظامي وسایل د مجاهدینو په خپل منځي جګړه کې تخریب او مصرف شول[۹۹].

د کندهار دهوایې رادار دستګاه، د ننګرها د ټلویزون دستګاه، د کابل او کندهار نساجي فابرکې د ماشینو انجنونه، د کابل د تاریخي موزیم اثار هم د مجاهدینو په نوم غلو په پاکستان او نړیوال تور بازار کې په ټیټه بیه وپلورل.

د افغانستان د مرکزي بانک د تقویې لپاره د سرو زرو پټې شوې خښتو او په ملي ارشیف کې د تاریخي او قیمتي سندونو د غلا کولو ناکامه هڅې هم د احمدشاه مسعود د وسلوالو له خوا وشوې.

---

[۹۹] پر افغانستان د امریکا له حملې وروسته، د حامد کرزي د حکومت پر مهال، بشپړه او جوړه روسۍ چورلکه د افغان امنیتي کسانو له خوا په تورخم کې ونیول شوه، چورلکه پاکستان ته قاچاق کېدله او پر پاکستاني پوځ خرڅه شوې وه. وروسته معلومه شوه چې یاده چورلکه له پنجشیر څخه قاچاق شوې وه.

ما (لیکوال) ته حاجي عبدالرزاق د ننګرهار ولایت د چپرهار ولسوالۍ اوسیدونکي وویل: "پنجشیر کې اوس هم دوې یا درې نورې جوړې روسۍ چورلکې شته، د پنجشیر له پخوانیو قومندانانو سره دي، غواړي چې پر پاکستان یې خرڅې کړي."

انجنیر ستانه ګل چې پنجشیر پوهنې ریاست کې (۲۰۱۲ تر ۲۰۱۴) کار کاوه، ما (لیکوال) ته یې وویل: "د پنجشیر په ځینو درو کې اوس هم د روسانو د وخت وسلې پخوانیو قومندانانو ذخیره کړي او لوی ډیپوګان شتون لري.

د جون ۲۹مه ۲۰۱۵، د پروان ولایت مرکز په چاریکار کې د امریکایې الوتکو له خوا د شمال ټلوالې د پېژندل شوې قومندان جان احمد خان د وسلو ډیپو بمبارد شو. قومندان په سلګونو وسلې او مهمات په خپل باغ کې تر ځمکې لاندي ذخیره کړي وې.

دوسلو په زیرمتون د بمبارد کولو په اړه د ناټو ویندوی ډګروال برین ټریبس وویل: "د مهماتو ډیپو د دې لپاره ویجاړه کړای شوه چې له دغو وسلو څخه په استفادې پر افغان او نړیوالو ځواکونو د حملې مخه ونیول شي."

د حامد کرزي د حکومت پر مهال، د مئ ۲مه ۲۰۰۳، د ارګ په يوه تهکوي کې ډير شمير د سرو زرو خښتې، چې ۹۰ ميليونه ډالر ارزښت يې درلود، پيدا شوې، ټولې د افغانستان بانک ته وسپارل شوې.

پاتې دي نه وي چې تر ټولو ډيره برخه د نظامي تجهيزاتو احمد شاه مسعود او دويم قدم کې عبدالرشيد دوستم ته په واک کې په لوی لاس د روسانو او پرچم ډلې له خوا ورکول شول.

۱۳۷۰ ل. کال کې د افغانستان د اردو تجهيزات چې مجاهدينو ته پاتې شول، په لاندي ډول وو:

" ۲۵۰۰ بېلا بېل ماډل، لوی ټانکونه، بيردوم ټانکونه او محاربوي ټانکونه، ۳۰۰۰ زرهپوش ټانکونه، ٦۰۰۰ توپونه او هاوانونه، يو ميليون ميل سپکه وسله، ۸ د سکاډ راکټ دستګاوي، ۵۰ فيره سکاډ، ۲۸۰۰۰ نقليه ترانسپورټي وسايل، ۱۰۰۰۰۰ فيره رياکټيف راکټونه، ۲۰۰ زره ټن مختلف مهمات، له ۳۰۰ څخه زياتې نظامي الوتکي او چورلکي، ۱۰۰ زره ميله سپکې وسلي (انګليسی، ايتالياپی، فرانسوي، چيکې او امريکايې) په ډيپوګانو کې ذ خيره شوې وي.

۳ د اسلحو د ترميم فابريکې، ۲۲۰ فيره رهبري شوي راکټونه چې پيچوراو دووينه و له دستګاوو سره، د ۵ ميليارد ډالرو په قيمت د وسلو پرزې هم موجودي وي[۱۰۰].

د حضرت صبغت الله مجددي په دوه مياشتني حکومت کې، د احمدشاه مسعود په مشرې او لارښوونه د افغانستان مجهزه اردو منحل او ځای يې د مجاهدينو په نوم فاسدو ټوپکوالو ونيوی." جنګ های کابل ۳۳۰- ۳۳۲پاڼه

---

[۱۰۰] د سکاډ، لونا، چورلکو، ټانکونو او نورو مهمو نظامي وسايلو په ګډون همداسي جوړ يې بيا وروسته د استاد رباني د حکومت پر مهال د پاکستان لاسته ولويدل. او هغه ستنګر توغندي چې د امريکا له خوا مجاهدينو ته د روسي ميګ جيټ الوتکو د ويشتلو لپاره ورکول شوې وو، هغه هم په کمه بيه د پاکستان او ايران لاسته ورغلل. هر څه د کباړ په بيه د مجاهدينو له خوا ډير د پاکستان او لږ د ايران تور بازار ته وړاندي شول.

د جولای ۲۲مه، ۲۰۱۹، موږ (استاد محمد زمان مزمل، استاد احمد وحید مژده، دکتور فیض محمد ځلاند او مطمئن) ته د ببرک کارمل او ډاکټر نجیب الله د حکومتو پر مهال د کورنیو چارو وزیر سید محمد ګلابزوی [۱۰۱] وویل:"کله چې زه د کورنیو چارو وزیر وم، موږ د دوه لکه پنځه زره پولیسو لپاره د ۵ کلونو لپاره د ټولو اړتیاوو (وسلې، مرمۍ، ټانکونه، تېل، غذا او هرڅه) لپاره ذخیره درلودله، ګدامونه مو د اړتیا وړ شیانو څخه ډک وو او په بل حساب چې د جګړو پر مهال به ځینې پولس وژل کیږي او دا شمیر به ۲۰۵زره څخه را کښته کیږي، نو بیا موږ د نورو ۷ کلونو لپاره په ګدامونو کې هر څه چمتو درلودل."

د اپریل ۷مه ۲۰۲۰، ګلابزوی ما (لیکوال) ته وویل:"کله چې روسان له افغانستان څخه وتل، مخکې له وتلو یې موږ ته وویل چې د ۵ کلونو پلانونه جوړ کړئ چې کومو نظامي وسایلو او تجهیزاتو ته اړتیا لرئ چې موږ یې اوس درکړو، ځکه چې

---

[۱۰۱] سید محمد ګلابزوی د خوست ولایت د ځدرانو اوسیدونکی، په کابل کې د نورمحمد ترکي او حفیظ الله امین سره ډېر نږدې پاتې شوی، د خلق ډیموکراټیک ګوند غړی، کله چې د ثور کودتاه وشوه، ګلابزوی پکې زخمي، له روغتون څخه تر وتلو وروسته د نورمحمد تره کي یاور، وروسته د مخابراتو وزیر (۸ جولای ۱۹۷۸ تر ۱۵ سپټمبر ۱۹۷۹) و. کله چې حفیظ الله امین پر ترکي کودتاه وکړه، ګلابزوی، اسلم وطنجار او اسدالله سروري تري تم شول او پر حفیظ الله امین باندي کودتاه کې ګلابزوی مهم رول درلود، تر کودتاه یوه ورځ وروسته، د ببرک کارمل له خوا ګلابزوی د کورنیو چارو وزیر او ۹ کاله (۲۸ ډسمبر ۱۹۷۹ تر ۱۵ نومبر ۱۹۸۸ / ۷ مرغومی ۱۳۵۸ تر ۲۴ لړم ۱۳٦۷) پر یاده چوکۍ پاتې شو، ګلابزوی د سیاسي بیرو دایمې غړی و، کله چې یې له ډاکټر نجیب الله سره ستونزې پیدا شوې، هغه ماسکو ته د سفیر په توګه ولیږل شو، د شاه نواز تنې تر ناکامه کودتاه وروسته، له سفارت څخه لرې او د ډاکټر نجیب الله د حکومت له خوا په اعدام محکوم، مګر روسانو ورته ونه سپاری.

پر افغانستان د امریکا تر برید وروسته د ولسي جرګې غړی (۷ ډسمبر ۲۰۰۵ تر ٦ ډسمبر ۲۰۱۰) و.

کله موږ له افغانستان څخه ووځو، بیا د ژنیو معاهدې پر اساس له تاسي (حکومت) سره مرستې نه شو کولای.

زه (ګلابزوی) د کورنیو چارو وزیر، شاه نواز تڼي د دفاع وزیر، غلام فاروق یعقوبي د امنیت وزیر[۱۰۲]، درې واړه ماسکو ته ورغلو، هلته هر یوه د کورنیو چارو وزارت، دفاع وزارت او کې جي بي ادارې کې لېدنې درلودلې، بیا یې موږ ټولو ته د پخواني شوروي اتحاد له ولسمشر ګورباچوف سره ناسته چمتو کړې وه، هغه ته هم موږ خپل د ۵ کلونو پلانونه وړاندې کړل.

زما (ګلابزوی) پلان د ۵ کلونو و، خو په اصل کې دا د ۷ کلونو لپاره و، ځکه موږ ۲لکه پولیس درلودل او په څو کلونو کې موږ ۵۰ زره د پولیسو ضایعات (وژل کېدل، زخمې کېدل او له دندې تېښته) په نظر کې نیولې وو، داچې روسانو د ۵ کلونو لپاره موږ ته د ۲لکه پولیسو لپاره نظامي تجهیزات او امکانات په یو ځای راکول، نو د ۵ کلونو موده کې د ۵۰ زره تلف شوې پولیسو برخه هم د پاتې ۱۵۰زره پولیسو د دوه نورو کلونو لپاره کفایت کاوه.

ما (ګلابزوی) ۳۹ محاربوي ټانکونه غوښتې وو، هغه یې راته ۵۰ کړل او د الوتکو دوه کنډکونه یې راته ومنل، د تیلو لپاره یې لویې لویې ذخیرې راته جوړې کړې، چې په راتلونکو ۵ او زما په حساب ۷ کلونو کې د کورنیو چارو وزارت اړوند وسایط د تیلو له کموالي سره مخ نه شي.

که چیرته له ډاکټر نجیب سره زموږ خلقیانو (دفاع او کورنیو چارو وزیرانو) اختلاف نه وای راغلی، موږ کولای شوای چې د روسانو تر وتلو وروسته، تر ۵ او یا ۷ نورو کلونو پورې حکومت وساتو."

---

[۱۰۲] شاه نواز تڼي د ثور له کودتا وروسته د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر مهال لوی درستیز، دارنګه دفاع وزیر (مئ ۱۹۸۸ تر مارچ ۱۹۹۰) و.

غلام فاروق یعقوف د ډاکټر نجیب الله د حکومت پر مهال د دولتي امنیت / خاد وزیر (٦ ډسمبر ۱۹۸۵ تر ١٦ اپریل ۱۹۹۲) و.

" کله چې د ډاکټر نجیب الله حکومت سقوط وکړ، هغه وخت ۵۸۰ الوتکې موږ درلودلې، ۸۰ تر ترمیم لاندې او ۵۰۰ فعالې الوتکې وې.

تر ۲۰۰ زیاتې جیټ الوتکې (میگ ۲۱ او سو ۲۲ ) او پاتې یې (مي ۸ او مي ۳۵ محاربوي) چورلکې وې،

د چورلکو یو غونډ مزار شریف، یو غونډ په شنډنډ، یو مستقل کنډک په کندهار او دوه غونډه (یو مي ۸ او بل مي ۳۵ محاربوي) د کابل، په نړیوالو هوایې ډگرونو کې وو.

یو غونډ ان ۳۲، یو مستقل کنډک ان ۳۶ او یو مستقل کنډ ک د ان ۱۲ چورلکو هم وو. او له دې سربیره مو د کشف لپاره ان ۳۰ چورلکې هم درلودلې. دا رنگه مو ۴۰ دانې ان ۳۹ چورلکې د تعلیمي غونډ لپاره درلودلې.

۱۲ دانې سو ۲۲ غتې الوتکې تازه او نوې له روسیې څخه مزار شریف ته راغلې او هلته دوستم ته ور پاتې شوې، چې بیا دوستم څه کړې؟" جنرال امرخیل



احمدشا مسعود




عام مجاهدین چې جګړې ته روان دي




استاد رباني او حکمتیار د پاکستان د ولسمشر فاروق احمد خان لغاري له خوا له یو بل سره پخلا کول کیږي

# د سولې او جوړې هڅې

د روسانو سره د جهاد پر مهال د مجاهدينو د خپلمنځي ستونزو له منځه وړلو او اتحاد لپاره د نورو اسلامي هيوادونو د علماو او مشرانو سربيره سعودي عربستان هم هڅې کولې چې افغان مجاهدين متحد شي.

د فبروري ۲۱مه ۲۰۱۸، زموږ کور کابل کې، مزمل صاحب چې استاد صميم صاحب هم ناست وو، ويې ويل :"کله چې د مجاهدينو مشرانو په مکه مکرمه کې د اتحاد او يووالي لپاره تعهد او تړون وکړ، چې خپلمنځي ستونزې به شاته اچوي او په يووالي سره به مجاهدين کار کوي، د مجاهدينو د رهبرانو له ژمنې او هوکړې وروسته د سعودي عربستان چارواکو ټول رهبران او ځينې مشران مجاهدين د بيت الله شريفي د ننه بوتلل، زه (مزمل) هم په دي ډله کې وم، د کعبي د ننه موږ ګردو نفل لمونځونه وکړل او بيا استاد سياف دعا پيل کړه، هغه د کعبې په منځ کې په عربي ژبه د مجاهدينو ترمنځ د تړون ټول مواد وويل او بيا يې وويل چې يا الله! زه ستا په کور کې درسره ژمنه کوم چې همدا تړون به عملي کوم او که کوم څوک دا تړون ماتوي، يا الله! ته خپله معامله ورسره وکړه، موږ يې تاته سپارو.

نورو رهبرانو او مجاهدينو د استاد سياف دعا کولو پر مهال آمين ويل، ولي بدبختانه د مجاهدينو رهبرانو چې په بيت الله شريفه کې له رب العالمين سره کومه ژمنه وکړه، پر هغه ژمنه يې له خالق سره وفا ونه کړه او الله ج ذليل کړل. "

" مولوي نصرالله منصور چې پکتيا ته روان و، يا داچې حکمتيار صاحب ته د مذاکراتو لپاره چهار اسياب ته تللی و، ۹ فبروري ۱۹۹۳ د هغه موټر باندي بمې چاودنه وشوه، جمعيت اسلامي يې د مرګ پړه په حزب اسلامي واچوله او حزب پر جمعيت اچوله، دا د دواړو ډلو خپلمنځي اختلافات وو.

استاد رباني سوله غوښته مګر مسعود يې مخنيوی کاوه؟ د مسعود او رباني موضعګيري کې فرق وو، مسعود سره ځوانه طبقه او پخواني کمونستان ملګري وو، استاد رباني سره پخوانی مجاهدين وو.

دواړو دا ډول سوله غوښته چې د بل چا برتري يې پکې نه غوښته، داسي سوله چې دوی پکې واکمن وای، داسي سوله يې نه غوښته چې د بل چا مشرتوب پکې ومني، د بينن سيوان پروګرام يې هم له همدې امله ونه مانه چې دوی برتري غوښته، واقعيت کې دوی مشروط سوله غوښته لکه حامد کرزي چې غوښتله[۱۰۳].

همايون جرير د حکمتيار زوم چې د پنجشير او د مسعود تربور دی، هغه له مسعود سره رابطه درلودله، د کابل د جګړو پر مهال يې د حکمتيار او مسعود تر منځ د پيغامونو تبادله کوله او کله چې شورای هماهنګي (حکمتيار، مزاري، دوستم او نجات ملي) جوړه شوه، جرير بيا هم له مسعود سره رابطه ساتله." سيد داوود اغا

" ۲۱ مئ ۱۹۹۲ز کال کې د جمعيت اسلامي او حزب اسلامي ترمنځ د سولې تړون لاسليک شو، چې د کابل امنيت به بې طرفه مجاهدين نيسي، دغه تړون په چهلستون کې د جنرال رحمت الله صافي له خوا وويل شو.

۲۵ مئ ۹۲ز کال کې حکمتيار او مسعود د کابل ختيځ بګرامي کې سره وليدل، اوه ساعته مجلس يې درلود، توافق يې وکړ چې د دوستم مليشې به له کابل څخه وځي، په ٦ مياشتو کې به ټاکنې کيږي، د مجددي حکومت به ۲ مياشتې دوام کوي." حوادث تاريخي

"د جوزا ۴مه ۱۳۷۱، د جنرال ضياء الحق [۱۰٤] زوی اعجازالحق او جنرال حميد ګل په منځګړيتوب د شينه سيمه کې د احمدشاه مسعود او حکمتيار ترمنځ دويم

---

[۱۰۳] حامد کرزي، د خپل حکومت پر مهال، دارنګه د سولې عالي شورا او امريکايانو ويل چې طالبان دې له حکومت سره يوځای / تسليم او يا هم په حکومت کې مدغم شي.

[۱۰٤] جنرال ضياء الحق د پاکستان پوځ لوی درستيز (۱ مارچ ۱۹۷٦ تر ۱۷ اګسټ ۱۹۸۸) و، هغه د ذوالفقارعلي بهټو د حکومت ضد پوځي کودتاه وکړه او لس کلونه د پاکستان ولسمشر او ټولواک (۱٦ سپټمبر ۱۹۷۸ تر ۱۷ اګسټ ۱۹۸۸) پاتې شو. د جنرال ضياء الحق د حکومت پر مهال پاکستان اټوم بم جوړ کړ.

ځل اوربند وشو او د سولې تړون وشوه. د سولې تړون مهم ټکي د جنګ قطع کول، له کابل څخه د دوستم مليشې ايستل، د پخواني رژيم قطعات منحل اعلانول، او له مهمو پوستو څخه لرې کول، په ٦ مياشتو کې انتخابات کول وو.

د جوزا ٦مه دوه ورځې وروسته د شينه معاهده ماته او بيا جګړې پېل شوی. د تړون د ماتولو پړه هرې ډلې پر بلې ډلې اچوله.

داچې مليشې به له کابل څخه وځي، مجيد روزي او دوستم د جواز په ٦مه وويل چې دې معاهدې ته ژمن نه دي. او د جواز په ۹مه مجددي هم وويل چې د حزب او جمعيت منځ کې تړون شوی، موږ يې نه منو. " جنگ های کابل ۲۹۰-۲۹۴مې پاڼې

" پغمان کې د استاد رباني او حکمتيار ناسته، د کابل له جګړې و روسته ددوی دا اولنۍ ناسته وه، محمدي او سياف هم حاضر وو، رباني ونشو کولای چې د ميرويس ميدان له لارې پغمان ته ولاړ شي، د حزب وحدت کسانو يې ممانعت وکړ.

۱۹ سپټمبر ۱۹۹۲، د حکمتيار او ربانی ترمنځ توافق وشو چې له کابل څخه به مليشې وځي، د دوستم مليشو بمبارد دي د حزب اسلامي په ځايونو ودرول شي، د ننګرهار د سولې خبرو ته ژمن پاتې شي، د کابل امنيت دې جهادي مختلفو ګوندونو ته وسپارل شي، د حزب بنديان خلاص شي، د اهل حل او عقد شورا له پاره دوه دوه نفره له هرې سېمې څخه وټاکل شي.

۲۵ اکټوبر ۱۹۹۲، استاد رباني وويل چې حکومت او ټول اختيارات به د اکتوبر په ۲۸مه قيادی شورا ته سپاري.

---

جنرال ضياء الحق د هغه د سورلۍ په چورلکه کې د ځای پر ځای کړل شوې ماين د چاودنې له کبله د ٦۴ کلونو په عمر، د اګسټ پر ۱۷مه ۱۹۸۸ کې د پنجاب آيالت د بهاولپور په سېمه کې له ۳۱ نورو لوړ پوړو پاکستاني چارواکو سره يوځای ووژل شو، په چاودنه کې د پوځ لوی درسيز جنرال اختر عبدالرحمن او په اسلام اباد کې د امريکا سفير ارنولډ رافيل هم ووژل شول. ډيری راپورونه داسي و چې ماين په چورلکه کې د سي آی اې له خوا ځای په ځای شوی و.

۳۱ اکتوبر، کابل راډيو اعلان وکی چې قيادي شورا د ستوري په قصر کي استاد رباني د يوې نيمې مياشتي له پاره نور وخت هم د دولت مشر وټاکی، رباني به په دي موده کې د حل او عقد شورا را غواړي.

په ياده غونډه کې استاد رباني، استاد سياف، صبغت الله مجددی، سيد احمد گيلاني، د حزب اسلامي په استازولۍ عبدالهادي ارغنديوال[۱۰۵]، د حرکت انقلاب اسلامي په استازولۍ مولوي محمدشاه فضلي او د اهل تشيع استازو گډون درلود، مولوي محمد يونس خالص بابا په غونډه کې اشتراک نه و کړی.

بيا هم د سولې جوړې په اړه د حزب اسلامي او احمدشاه مسعود+ استاد رباني ترمنځ اخلافات مخې ته راغلل او بالاخره د جدې ۹مه، ۱۳۷۱ ( ۳۰ ډسمبر ۱۹۹۲) د استاد رباني له خوا را غوښتل شوي اهل حل او عقد شورا رباني د دوه کلونو له پاره ولسمشر اعلان کړ[۱۰۶].

د استاد رباني دوه کاله نور په واک کې پاتې کيدو سره د مجاهدينو ۵ گوندونو ( حزب اسلامي، حرکت اسلامي، اسلامي حزب (مولوي خالص بابا)، محاذ ملي او نجات ملي) مخالفت وکړ او حکمتيار دغه انتخاب د جنگ اعلان وباله.

---

[۱۰۵] عبدالهادي ارغنديوال د جهاد پر مهال د حزب اسلامي د مالي کميټې مشر، پر افغانستان د امريکا له بريد وروسته يې په کابل کې د حزب اسلامي جلا څانگه جوړه او ارغنديوال يې مشر و. د حامد کرزي د حکومت په دويمه دوره کې د اقتصاد وزير او د ډاکټر غني په دويمه دوره کې د ماليې وزير و.

[۱۰۶] د ډسمبر ٦مه، ۲۰۱۸، استاد سياف پغمان کې مورږ ته وويل:"د استاد برهان الدين رباني وخت کې مورږ د اهل عقد و حل شورا د دې لپاره را وغوښتله چې دا فکر احياء شي، نيمگړتياوي به وي، خو د فکر د احياء په موخه مو دا کار وکړ، ولايتونو او ولسواليو ته مو کسان وليږل، ډير داسي کسان بيا کابل ته راغلل چې همدا د اهل حل و عقد صفات يې درلودل، مگر ځينې به داسي هم وو چې د اهل حل و عقد شورا د غړو صفات به يې نه درلودل.

د پيناوۍ تړون کې ليکل شوې و چې ۲ مياشتې به حضرت صبغت الله مجددي د حکومت مشر وي، بيا به ۴ مياشتي استاد برهان الدين رباني د حکومت مشر وي او له هغه وروسته به اهل حل و عقد شورا جوړيږي او هغوی به د حکومت مشر ټاکي.

۲۷ فبروري ۱۹۹۳، مولوي خالص بابا طرحه وړاندي کړه چې نوی حکومت داسي تشکیل شي چې شکیل جهتونه پکې نه وي، دفاع، داخله، خارجه او امنیت وزارتونه بېطرفه خلکو ته ورکړي، حکمتیار طرحه ومنله خو اضافه یې کړه چې استاد رباني باید له ولسمشري څخه استعفی ورکړي، مګر د خالص بابا طرحه داوه چې استاد رباني دوه کاله حکومت پوره کړي.

قاضي حسین احمد [۱۰۷]، مولوي فضل الرحمن، جنرال حمید ګل او نور پاکستاني چارواکو د اطرافو ترمنځ د سولې له پاره څو ځله کابل ته سفرونه وکړل نتیجه یې ورنه کړه.

مولوي عبدالله ذاکري او مولوي جلال الدین حقاني هم خپلې هڅې وکړي هغوی هم نتیجه ورنه کړه، د مشرقي شورا د حاجي قدیر په مشرتوب هم ورته هڅه وکړه مګر کامیاب نه شول.

۴ مارچ ۱۹۹۳، د مجاهدینو مشران په اسلام اباد کې د نواز شریف [۱۰۸] په کور کې سره کیناستل، نواز شریف هڅه کوله د استاد رباني د پاتي ۱۸ میاشتې وخت له پاره د نورو ګوندونو د رهبرانو موافقه ترلاسه کړي.

---

[۱۰۷] قاضي حسین احمد له میا طفیل محمد وروسته د جماعت اسلامي (۷ اکتوبر ۱۹۸۷ تر ۲۹ مارچ ۲۰۰۹) مشر و، د ۷۴ کالو په عمر په اسلام اباد کې د جنوري ٦مه ۲۰۱۳ کې وفات شو.

[۱۰۸] نواز شریف چې د جنرال ضیاء الحق د حکومت پر مهال د پوځ له حکومت سره یوځای شوی و، د جنرال ضیاء الحق تر وژنې وروسته د ټاکنو نتیجه کې د پاکستان لومړی وزیر (٦ نومبر ۱۹۹۰ تر ۱۸ جولای ۱۹۹۳) شو.

نواز شریف دویم ځل لومړی وزیر (۱۷ فبروري ۱۹۹۷ تر ۱۲ اکتوبر ۱۹۹۹) و،

نواز شریف د پوځ د لوی درستیز جنرال مشرف د ګوښه کېدو اعلان وکړ، مشرف له ... پاکستان ته پر لاره و، د کراچۍ په هوایې ډګر کې یې د جنرال محمود په مرسته الوتکې ناسته وکړه او د نواز شریف پر ضد یې سمدستي بریالۍ کودتاه وکړه. نواز شریف له واکه لرې او ونیول شو، وروسته د سعودي عربستان د پاچا په غوښتنه هغه هیواد ته واستول شو.

یوه ورځ وروسته ښاغلي حکمتیار د پېښور په نصرت مېنه پنډغالي کې وویل چې توافق ته نه دي رسیدلي. رباني غواړي مسعود وزیر دفاع وي، حکمتیار وویل دوه چوکۍ (ولسمشري او دفاع وزارت) نه شو ورکولای.

د حکمتیار له څرګندونو یوه ورځ وروسته د حزب وحدت مرستیال مشر محمد کریم خلیلي هم اعلان وکړ چې دوه کلیدي چوکۍ یوه ګوند ته نه شو ورکولای.

بل خوا (۷ مارچ ۱۹۹۳) مسعود په کابل کې وویل چې د دفاع وزارت په اړه تصمیم نه دی نیول شوی، دا ډول له ناندریو ډک د حزب اسلامي او جمعیت اسلامي ترمنځ د سولې تړون اړوند څرګندونې کیدلي.

له ٦ ورځو خبرو وروسته د حکمتیار او رباني په ګډون د مجاهدینو د ګوندونو مشرانو د سولې تړون په اسلام اباد کې د پاکستان د لومړي وزیر نواز شریف په کور کې لاسلیک کړ.

هوکړه وشوه چې استاد رباني به ۱۸ میاشتي نور هم ولسمشر وي، حکمتیار به لومړی وزیر وي، دفاع وزارت به مشترک کمیسون ته ورکول کیږي (ځیني وایې په دي اړه واضح ماده نه وه).

---

نواز شریف درېم ځل لومړی وزیر (۵ جون ۲۰۱۳ تر ۲۸ جولای ۲۰۱۷) و

نواز شریف غوښتل چې څلورم ځل د عمران خان سره د لومړي وزیر چوکې ته نوماند شي، کله چې له لندن څخه پاکستان ته راغی، ونیول او د لنډې مودې لپاره بندي شو. د عمران خان د حکومت پر مهال نواز شریف ته د مالي فساد په تور لس کاله قید ورکول شو، وروسته په ضمانت خوشی او لندن ته ولاړ.

د یاد سولې ترون هوکړه د پاکستان د لومړي وزیر او چارواکو، د سعودي عربستان د استخباراتو مشر ترکي الفیصل او د ایران د بهرنیو چارو وزیر بروجردي په شتون کې د مجاهدینو د رهبرانو تر منځ وشوه[109]." حوادث تاریخي

مز مل صاحب وایې:"زه او ډاکټر انور او د جمعیت اسلامي کسان چهار اسیاب کې حکمتیار صاحب ته ورغلو، هلته د استاد رباني استازو ډیرې خبرې وکړې چې استاد رباني تاسي (حکمتیار) ته احترام لري، ډیر ورته ګران او مهم شخصیت یاست او داسي نورې توصیفي خبرې یې وکړې.

حکمتیار ورته وویل چې په دي غوړو خبرو به یو بل نه غلطوو، خبره د واک د مساوي ویش او تعاد ل ده، تر څو چې د ریاست جمهوري او دفاع وزارت چوکۍ له جمعیت سره وي، سوله نه کیږي، دا خبرې هڅې بیځایه دي، راځئ په دي خبره وکړو چې واک څه ډول له انحصاره ووځي او مساوات په نظر کې ونیول شي."

د جون ۲۹مه ۲۰۱۵، انجنیر وحیدالله سباوون ما (لیکوال) ته وویل:" د چهار اسیاب جګړه له احمدشاه مسعود سره د ننګ او شرم خبرو له امله وه، مجبوریت و چې جګړه مو کړې وای، کومه عقیدوي جګړه نه وه. یوازي د شرم او ننګ له امله مجبوره وو چې جګړه ورسره وکړو[110]. "

[109] ترکي بن فیصل بن عبد العزیز آل سعود د سعودي عربستان د استخباراتو عمومي رئیس (۱۹۷۹ تر ۲۰۰۱) و، وروسته د امریکا لپاره د سعودي عربستان سفیر (۲۰۰۵ تر ۲۰۰۷) و.

علاوالدین بروجردي د اسیا او فارس خلیج چارو لپاره د ایران د بهرنیو چارو مرستیال وزیر (۱۳۶۸تر۱۳۷۶) و. او هغه مهال د ایران د بهرنیو چارو وزیر (۱۵ ډسمبر ۱۹۸۱ تر ۲۰ اګست ۱۹۹۷) علي اکبر ولایتي و.

[110] هدف یې له احمدشاه مسعود سره د عبدالرشید دوستم یوځای کېدل او له هغوی سره د حزب اسلامي جګړې وي.

د ننګرهار جهادي شورا چې مشرې يې د ننګرهار والي حاجي عبدالقدير کوله، وتوانېدل چې د مجاهدينو ټول رهبران جلال اباد ښار ته وبلي او هلته يې مخامخ خبرو ته سره کينوي.

د انجنير حکمتيار او استاد رباني په ګډون استاد سياف، مولوي خالص، مولوي محمد نبي محمدي، مجددي او ګيلاني هم موجود وو، ويل کيږي چې د ختيځ د مجاهدينو شورا له خوا پريکړه شوې وه تر څو چې د مجاهدينو رهبران په خپلو منځو کې توافق ته ونه رسيږي، تر هغه وخت پورې به د جلال اباد ښار په قصر کې ساتل کيږي او کوم رهبر ته به له قصر څخه د وتلو اجازه نه ورکول کيږي[111].

۲۰ مئ ۱۹۹۳، جلال اباد کې د حاجي دين محمد له خوا نوي کابينه اعلان شوه، د دې لپاره چې په راتلونکې کې د احمدشاه مسعود له خوا ستونزه جوړه نه شي، د ننګرهار جهادي شورا پريکړه وکړه چې احمد شاه مسعود هم جلال اباد غونډې ته له کابل څخه بوځي.

۵ اپريل ۲۰۱۷، دکتور صفت الله قانت ما (ليکوال) ته وويل :" ټول اوه سره د مجاهدينو رهبران په جلال اباد کې حاضر وو او د ننګرهار د جهادي شورا له خوا تر هغه نه پريښودل کيدل تر څو جوړه وکړي.

خبره نږدې وه چې حل شي، احمدشاه مسعود په کابل کې و، قومندان شمالي خان او انجنير محمود کابل ته په مسعود پسې ولاړل چې هغه راولي.

استاد سياف چې پوه شو که مسعود جلال اباد ته راشي، ستونزه په بشپړ ډول سره ختميږي، له مکارتوب څخه يې کار واخيست، د حزب اسلامي قومندان فضل الحق مجاهد چې د ننګرهار د قول اردو قومندان و او قومندان استاد سازنور چې خپله د

---

[111] زه (ليکوال) هغه وخت (۱۹۹۳ ز کال) د ننګرهار پوهنتون کې محصل وم، د يادې غونډې په ملاتړ موږ د ننګرهار پوهنتون محصلينو هم لاريون وکړ، د مجاهدينو له رهبرانو مو وغوښتل چې له خپلمنځي جګړو څخه لاس واخلي او په حکومت کولو باندي توافق ته سره ورسيږي.

استاد سياف قومندان  او د ننګرهار مرستيال والي و، دوی دواړو ته استاد سياف وويل چې زه احمد شاه مسعود پيژنم، هغه نه راځي، تاسي له ماسره شيخ (حکمتيار) ته ولاړ شئ، که هغه ومنله چې زه په مسعود پسې ورشم او هغه جلال اباد ته راولم، دواړو ( مجاهد او سازنور استاد) ساده ګې کړي وه، سياف سرتور سر ولاړ شو، سازنور ورته وويل چې استاده! سر دي سرتور دی، سياف ورته وويل چې همداسي سرتور شيخ (حکمتيار) ته ورځو چې ويې مني.

حکمتيار هم تيروتنه وکړه، سياف سره يې ومنله چې د جلال اباد له قصر څخه ووځي او کابل ته  ولاړ شي، سياف له خدايه همدا غوښتل، په بيړه يې موټر تيار کړ او د کابل په لور يې حرکت وکړ.

قومندان شمالي خان او انجنير محمود وروسته نورو مجاهد مشرانو ته ويلي وو، چې احمدشاه مسعود يې راضي کړی و، هغه تياری نيوی چې د جلال اباد په لور حرکت وکړي، دموټرو کاروان يې چمتو کړی وو، چې په دي وخت کې استاد سياف هم کابل ته راورسيدی او په بيړه يې د مسعود د ليدو لپاره تلوسه کوله، مسعود هم ورسره وليدل، کله چې استاد سياف او مسعود سره وليدل، لږ وروسته موږ (شمالي خان او انجنير محمود) ته مسعود وويل چې تاسي درځئ، زه او استاد سياف هم په تاسي پسې وروسته در روانيږو، همهغه وو چې بيا مسعود هم کابل کې پاتې شو او استاد سياف هم، د جلال اباد تړوله د سولې او امن پروسه ناکامه کړه.

قومندان شمالي او انجنير محمود ويلي وو که چيرته موږ او مسعود حرکت کړی وای او په نيمه لاره کې سياف را رسيدلی وای، هم ممکن بيرته مسعود نه وای ګرځيدلای، خو داچې حرکت مو له کابل څخه نه وو کړی، سياف د مسعود مانع شو او دجلال اباد خبرې ناکامه پای ته ورسيدلي[۱۱۲]. "

۱۱۲ د مئ ۲۰مه ۱۹۹۳، په جلال اباد کې د حاجي دين محمد له خوا نوي کابينه اعلان شوه رباني او حکمتيا ر او نور رهبران هم ؤ. مګر بې نتيجې پاتې شوه

دکتور صفت الله قانت په همدې ورځ ما (ليکوال) ته وويل: " مولوي امين الله حليم چې د استاد سياف نږدې ملګری و، له سياف څخه يې پوښتنه کړي وه چې ولې د احمد شاه مسعود او ګلبدين حکمتيار تر منځ جوړه نه کوي؟

استاد سياف ورته ويلي و، پريږده چې يو بل سره ووهی، يو يې منافق مسلمان (احمدشاه مسعود) او بل يې کله شخ مسلمان (ګلبدين حکمتيار ) دی.

ځينې داسي وايې چې ممکن استاد سياف به فکر کاوه؛ که مسعود او حکمتيار سره جوړ شي، حکومت به د دوی شي او که دوی دواړه سره جوړ نه شي، نو د دوی د اختلاف له کبله به يوه ورځ د کابل حکومت د ده (سياف) په برخه ورسيږی او صدارت عظمی خو هسي هم د حکمتيار په نه شتون کې د سياف برخه و. [113] "

" ۲ ډسمبر ۱۹۹۳، احمد شاه مسعود د الوطن عربې مجلې ته وويل، په حقيقت کې زه له پاکستان او ايران سره جنګيږم، نه له حزب اسلامي او حزب وحدت سره، هغه وويل که دوستم راسره ملګری وي حکمتيار به په قوت کې پاتې نه شي.

۲۵ جون ۱۹۹۴، مولوي خالص خپل ځان د موقت حکومت مشر اعلان کړ، هغه ويل هم عالم او هم مجاهد دی، غواړي دغه کشتی له غرقيدو بچ کړي، د خپل حکومت پروګرام يې هم اعلان کړ.

۲۶ جولای، د هرات شورا استاد رباني د دريو نورو مياشتو له پاره ولسمشر اعلان کړ.

---

[113] په پېښور کې هم د حزب اسلامي او جمعيت اسلامي د اختلاف له کبله وو چې استاد سياف کله د پلچرخي زندان (کابل) څخه خوشی شو، پېښور ته ولاړی، هلته د مجاهدينو د هغه وخت د ٦ ګوندونو مشر وټاکل شو او ټولو استاد سياف د يوه مشترک رهبر په توګه ومانه، چې دغه ډول جوړښت د اتحاد اسلامي افغانستان په نوم ياد شو، چې کله بيا اتحاد مات شو، ياد جوړښت استاد سياف همداسي وساتی او له عرب هيوادو څخه يې ډير زيات مالي امکانات تر لاسه کړل.

۲۴ سپټمبر، نصيرالله بابر د پاکستان د کورنيو چارو وزير د يوه مهم پاکستاني هئيت په رائس کې افغانستان ته او بيا مرکزي اسياته ولاړی.

۲۴ اکټوبر ۹۴، نصير الله بابر د امريکا، انګلستان، چين، ايتاليا او جنوبي کوريا له سفيرانو سره د ليدنې له پاره هرات ته ولاړ، هلته يې تورن اسماعيل خان، بيا کندهار کې ګل اغا او ملانقيب وليدل، هغه وويل چې د تورغونډۍ او بولدک لارې د رغونې له پاره اته سوه ميليون ډالرو ته اړتيا ده.

طالبان د اکټوبر مياشتي په لومړۍ اونۍ کې راپيدا شول، د نومبر پر ۲مه يې د کندهار هوايې ډګر او د نومبر پر ۳مه ۱۹۹۴ کې يې کندهار ښار ونيو[۱۱۴].

طالبانو ډېر تيز پرمختګ وکړ[۱۱۵]، د کابل په لور يې پرمختګ وکړ، ميدان ښار او چهار اسياب سيمې يې له حزب اسلامي څخه ونيولې.

۲۲ دلو ۱۳۷۳، احمد شاه مسعود چې له طالبانو سره په ميدان ښار کې وکتل او دواړه لوري د ليدنې ژمنو ته وفاداره پاتې نه شول، د مارچ ۸مه، ۱۹۹۵، د استاد رباني له خوا وړانديز وشو، چې موقت حکومت جوړ او د طالبانو استازي هم پکې وي، مګر طالبانو د استاد رباني وړانديز رد، د دولت او طالبانو تر منځ جګړه پيل شوه. " حوادث تاريخي

طالبانو د مارچ په ۹مه ۱۹۹۵، د لنندر او چهار اسياب له لوري د کابل د نيولو په موخه بريد وکړ، د جګړې پر مهال د مسعود ځواکونو له خوا د طالبانو د مشر ملا يارمحمد له نيولو وروسته د مارچ ۱۹مه، طالبانو ماتې وخوړله، د مسعود ځواکونو ريشخور، خيراباد او چهار اسياب سيمې تر خپل کنټرول لاندې راوستلې[۱۱۶].

---

[۱۱۴] طالبان له کندهاره تر مزاره، د ملا عبدالسلام ضعيف کتاب، ۳۴مه او ۴۸مه پاڼه.

[۱۱۵] د طالبانو له خوا د ولايتونو نيول او تيز پرمختګ د ملا عبدالسلام ضعيف کتاب ( طالبان – له کندهاره تر مزاره) کې مفصل معلومات شته. د چاپ کال يې نومبر ۲۰۱۷ دی.

[۱۱۶] د طالبانو د وخت د معدن او صنايعو او بيا وروسته د برېښنا وزير مولوي احمد جان په قطر کې د فبروري پر ۲۳مه، ۲۰۱۷ د کابل د نيولو په اړه راته وويل.

کله چې احمدشاه مسعود له طالبانو سره جګړه پېل کړه، د حرکت انقلاب اسلامي مشر مولوي محمد نبي محمدي يوه ورځ وروسته (۱۰ مارچ ۱۹۹۵) له دولت سره مقاطعه اعلان او د طالبانو ملاتړ يې وکړ.

روسيې[۱۱۷] او په ځانګړې ډول د تاجکستان د ولسمشر امام علي رحمانوف له خوا د استاد رباني او مسعود د حکومت سره د مرستې په مقابل کې غوښتنه وشوه،

[۱۱۷] ۲۷ جون ۲۰۱۷، د بي بی سي فارسي راپور چې د تاجکستاني شنونکي نورعلي دولت له خوا ترتيب شوی، ليکل شوي:" په ۱۹۹۳ز کال کې چې په روسيې پوځيانو د اسلامي نهضت د جنګياليو له خوا حمله وشوه، کوم چې د تاجکستان او افغانستان ترمنځ پر پوله ځای په ځای شوې وو. همدا حمله د روسيې او تاجکستان حکومت له خوا د تاجکستان لپاره د کورنۍ جګړې د ويرې او انديښنې سبب شوه، له حملې دوه اونۍ وروسته د منځنۍ ختيځ پېژندونکی او د روسيې د بهرنيو استخباراتو مشر يوګني پريماکوف افغانستان ته ولاړ، تر څو له افغان حکومت سره د تاجکستان د کورنۍ جګړې او سولې ته رسيدو مسايلو باندي بحث وکړي.

پريماکوف د افغان حکومت له مشر برهان الدين رباني او دفاع وزير احمدشاه مسعود سره وليدل، د دوی ترمنځ توافق وشو، هرڅومره ژر چې کيدای شي بايد په تاجکستان کې سوله راشي، ځکه د جګړې ادامه نه د ماسکو او نه هم د کابل په ګټه ده.

د استاد رباني او احمدشاه مسعود په واسطه د پريماکوف او عبدالله نوري ترمنځ د ليدو زمينه برابره شوه او عبدالله نوري هم د مذاکرتو لپاره د چمتووالي اعلان وکړ. له دي وروسته پريماکوف تهران ته ولاړ او د ايران د ولسمشر هاشم رفسنجاني او بهرنيو چارو وزير علي اکبر ولايتي سره يې وليدل، د هغوی باور او د تاجکستان سوله کې مرسته يې هم تر لاسه کړه.

د تاجکستان د حکومت او تاجکستان د اسلامي نهضت لومړي د سولې مذاکرات د ۱۹۹۴ کال اپريل مياشت کې پېل او د جنوري ۱۹مه ۱۹۹۷ په تهران کې د ښکېلو اړخونو د مذاکراتو نتيجه کې د تاجکستاني تښتيدلو (فراريانو) وسلوالو اړوند دوه مهم سندونه د تاجکستان او اسلامي نهضت ترمنځ لاسليک شول. همدارنګه د فبروري ۲۰مه ۱۹۹۷، د تاجکستان د پوځ مشر دولت عثمان تهران ته ولاړ او له عبدالله نوري سره يې د سولې اړوند درې نور سندونه هم لاسليک کړل."

چې د تاجکستان د اسلامي نهضت مشر عبدالله نوري د تاجکستان حکومت له مشرانو سره خبرو ته کينوي او اړ يې کړي چې تاجک جنګيالي تاجکستان ته د تړون له مخې ورشي، همهغه و چې د مئ ۱۹مه، ۱۹۹۵ کې د امام علي رحمانوف او د تاجکستان د اسلامي نهضت د مشر عبدالله نوري ليدنه په کابل کې وشوه، پريکړه وشوه چې بيا ځل مذاکرات به د قزاقستان مرکز الماتا کې کيږي او بيا وروسته عبدالله نوري د افغان حکومت د فشار په نتيجه کې اړ شو چې د تاجکستان غوښتنې ومني او د يو له مجبوريته ډک تړون په نتيجه کې يې ومنله چې له خپلو تاجک جنګياليو سره يو ځای تاجکستان ته ولاړ شي.

يو ځل بيا د ننګرهار جهادي شورا له خوا هڅه وشوه، که کورنۍ جګړه ختمه شي، د جون ٦مه ۱۹۹۵، د جګړې ټول اړخونه جلال اباد ته وغوښتل شول، د مجاهدينو د ځينو رهبرانو استازو او د طالبانو استازو په مذاکراتو کې ګډون وکړ، مګر استاد رباني او استاد سياف ګډون ونه کړ، د ننګرهار جهادي شورا پرله پسې هڅې وکړي چې استاد رباني او استاد سياف د سولې مذاکراتو ته ورولي، ونه توانېدل، د جون ۱۵مه، د ننګرهار جهادي شورا د جهادي رهبرانو جلسه فسخ اعلان او مذاکرات بيا هم پرته له نتيجې ناکام پای ته ورسيدل.

د جون ۹مه، ۱۹۹۵، د پاکستاني مشهور عالم، مولانا شيراني په وساطت چې په کندهار کې يې له طالب مشرانو او په کابل کې يې له استاد رباني، مسعود او سياف سره ليدلي و، لس ورځې اوربند، د بنديانو تبادله او کابل ته ننوتې لارې خلاصې شوې.

"عبدالرشيد دوستم په پټه د طالبانو سره د ملګرتيا غوښتنه وکړه او طالبانو ته د ښه نيت ښودلو په موخه يې د جون ١٦مه ۱۹۹۵ په کابل او کندز کې د مسعود او رباني دولت پلوه وسلوالو باندي بمبارد وکړ.

۲۸ جولای ۱۹۹۵، د روسي جنرال پيټر شيريشوف په مشري هيئت په مزار ښار کې له دوستم سره وليدل چې د مسعود سره يې يوځای کړي، دوستم روسانو ته وويل؛ کله چې طالبان کابل دروازو ته نږدې شول، مسعود زما ګرده شرطونه ومنل،

کله چې طالبانو ماتې وخوړله، د مسعود سیاست تغیر وکړ، په همدې ورځ د ملګرو ملتونو استازي محمود مستیري هم له دوستم سره ولیدل.

روسانو له احمدشاه مسعود سره خپلو پوځي مرستو ته دوام ورکړ، تر څو طالبان وځپي، د اګست په ٦مه، ۱۹۹۵، په کندهار کې طالبانو دوه الوتکې د سلاح او مهماتو په شک کښته کړي، یوه الوتکه یې ژر بیرته پریښودله چې سلاح پکې نه وه، دویمه الوتکه چې د روسانو وه او حکومت ته یې وسله وړله، هغه یې په کندهار کې وګرځوله، چې بیا وروسته هغه الوتکه هم له کندهار هوایي ډګر څخه د روسي پیلوټانو په مرسته وتښتول شوه[118].

د مجاهدینو د خپل منځي شخړو له کبله د سپټمبر ۵مه ۱۹۹۵ په کابل کې د پاکستان سفارت ته اور واچول شو، د سفیر په ګډون، د سفارت ټول کارکوونکي یې زخمیان او پاکستان له افغانستان سره د ډیورنډ پر کرښه د خلکو د تګ او راتګ بهیر بند کړ.

۵ ورځې وروسته، د ډسمبر ۱۰مه، چې اسلام اباد وغوښتل؛ د مرکز کابل په ځای په جلال اباد ښار کې خپل سفارت پرانیزي، کابل ورسره سخت مخالفت وکړ." حوادث تاریخي

---

۱۱۸ د اګسټ پر ۳مه ۱۹۹۵، د طالبانو د جیټ الوتکو له خوا په کندهار کې د روسي ټرانسپورټي الوتکې پیلوټان مجبوره کړل شول چې الوتکه کښینوي، تر یو کال پوري الوتکه او ۷ تنه عمله یې د کندهار په هوایي ډګر کې بندیان وو.

مګر یو ناڅاپه د اګسټ ۱٦مه ۱۹۹٦ کې، روسي پیلوټان د الوتکې په تیښته بریالي شول، لومړي عرب اماراتو ته الوتکه ولاړه او له هغه ځایه روسیې ته ستانه شول.

ځینې راپورونه وایي چې ممکن روسانو به طالبانو ته د خپلو روسي پیلوټانو او الوتکې د خوشي کېدو لپاره پیسې ورکړي وي.

د ډسمبر ۲مه ۲۰۱٦، په قطر د کې د طالبانو د سیاسي دفتر مخکیني مشر سید طیب اغا همدې موضوع ته اشاره وکړه چې طالبانو د روسي پیلوټانو او الوتکې د خوشې کیدو په بدل کې پیسې واخیستي.

طالبان د کابل په دروازو کې ودريدل، احمدشاه مسعود د کابل له ساتنې څخه سخته دفاع کوله، له مسعود سره روسيې، ايران او هند نظامي او مالي مرستې کولې، داچې د مسعود په وړاندې انجنير حکمتيار، دوستم، حضرت مجددي او عبدالعلي مزاري هم مخکې له مخکې ايتلاف کړی وو، دوی ټول د مسعود او استاد رباني د حکومت مخالف وو، پاکستان وتوانېدی چې په اسلام اباد کې د يادو ډلو (حزب اسلامي، حزب وحدت، نجات ملي او جنبش) او طالبانو ترمنځ د مسعود په وړاندې د يوې قوي جبهې په موخه د دوی ترمنځ ناسته برابره او يو له بله سره مخامخ خبرې وکړی، تر څو په ګډه د مسعود په وړاندې وجنګيږي او کابل ته سقوط ورکړي.

" عبدالرشيد دوستم مخکې وختونو کې هم پاکستان ته تللی و، دا ځل يې له طالبان سره د مذاکراتو لپاره جنرال مالک د جنبش ګوند په استازولي وليږی، او د حزب وحدت په استازولي استاد محمد ناطقي د جنوري ۸مه ۱۹۹٦، اسلام اباد ته ورسيدل.

د جنوري په ۱۳مه د طالبانو او شورای هماهنګي د سولې خبرې وشوي، پرته له کومې مهمې پريکړې پای ته ورسيدې.

۱۱ فبروری ۱۹۹٦، پېښور کې بيا ځل د طالبانو او شورای هماهنګي ترمنځ مذاکرات وشول، په مذاکراتو کې د حضرت مجددی، عبدالرشيد دوستم، استاد محقق، حکمتيار او طالبانو استازو ګډون درلود." حوادث تاريخي

د مجاهدينو د خپلمنځې جګړې او سولې ته نه رسيدو اړوند ښاغلي محمد زمان مزمل ليکي:"زه د خپل پروردګار او خپل ملت څخه د دې معذرت غواړم چې زما د جهاد ملګري د مسلمان ملت پر وژنه او د خپل هيواد په وراني را وګرځيدل، ځان يې تباه، اسلام يې بدنام او موږ يې د زماني ذلت ته وسپارلو." افغانستان چا وران کړ؟ ۲٦۸مه پاڼه.

## د حکمتيار کابل ته راتګ

"استاد فريد [۱۱۹] چې د حکمتيار له خوا د اپريل پر ۲۸مه ۱۹۹۲ کې صدراعظم اعلان شوی و، په کابل کې و، د هغه له خبرتيا پرته حکمتيار له رشيد دوستم سره ائتلاف وکی، په کابل يې حمله وکړه، چې د شمال د حزب اسلامي ډيری قومندانان د حکمتيار په دغه عمل خفه او بيا وروسته د طالبانو سره د جګړې پر مهال له مسعود سره ودريدل، هغوی چې مخکې يې په پروان کې د مسعود خلک نه پريښودل.

حکمتيار فکر کاوه چې د دوستم په مرسته به کابل ورځ دوه کې له مسعود څخه ونيسي او بيا به دوستم ته ډير واک ورنه کړي، د دوستم سره ائتلاف به يې د کابل نيول تر سيوري لاندی راولي، مګر کله چې دوی ونه توانيدل کابل له مسعود څخه ونيسي، د حکمتيار له دوستم سره يوځای کيدل په عامه کچه د حزب اسلامي او نورو افغانانو له خوا وغندل شول. ځکه چې حکمتيار د دوستم په ضد د جهاد فتوا ورکړي وه او د جنګ اصلي لامل يې د دوستم د مليشو شتون په کابل کې ګاڼه.

کله چې دوستم له مسعود او استاد رباني سره وو، دوی ورته د مجاهد نوم ورکړی وو، استاد رباني بهر ته د سفر پر مهال خپل ځای ناستي ټاکلی و، کله چې دوستم له حکمتيار سره يوځای شو، بيا استاد ربانی د دوستم پر ضد د جهاد فتوا ورکړه، چې دغه ډول فتواګانو افغان ولس په جهادي رهبرانو بې باوره کړ. استاد سياف د حکمتيار سره د جګړې له پاره هم د جهاد فتوا حتی هر هغه څوک چې د استاد رباني د حکومت مخالف و هغه يې ياغی باله او د جهاد فتوا يې ورکړي وه. دا ډول

---

[۱۱۹] استاد عبدالصبور فريد کوهستانی په شمال کې د حزب اسلامي قوي قومندان و، کله چې مجاهدين کابل ته ننوتل، حکمتيار ته د لومړي وزير چوکۍ په برخه کې ورسېده، حکمتيار پر خپل ځای استاد فريد لومړی وزير (٦ جولای تر ۱۵ اګسټ ۱۹۹۲) معرفي کړ، يوه مياشت او يوه اونۍ وروسته حکمتيار له دوستم سره ائتلاف وکړ او استاد فريد له کابل څخه ووت.

پر افغانستان د امريکا تر حملې وروسته، استاد فريد د مشرانو جرګې غړی (ډسمبر ۲۰۰۵) شو، د مئ ۲مه ۲۰۰۷، په کابل کې د خپل کور مخې ته د نامعلومو وسلوالو له خوا په ډزو ووژل شو.

د کابل علماوو هم د استاد رباني مقابل کې جنګېدونکي د حزب غړي یاغي او باغي ګڼلي وو." وحید مژده

" صدارت عظمی کې د ودانۍ دننه اطاق کې نه کیناستم، په چمن کې به ناست وم، د حکمتیار راکټونه کابل کې لګېدل، یو سړی راغی او عریضه یې کړې وه چې کور کې څه نه لرم، ما ورته وویل چې پیسي نه لرم، دولت ډېر غریب دی، هغه سړي وویل چې صدراعظم صاحب! داچي د صدارت په دروازه او بیا دلته چا راته ونه ویل چې پس شو او ته مې خپله ولیدي همدا بس ده، هیڅ هم نور له تا څخه نه غواړم.

حکمتیار د صدراعظم په توګه کابل ته راتلی، سیاف راته وویل چې تر پل چرخي پورې مخې ته ورشه، هغه صدراعظم دی، ومي ویل چې صدارت ته راننوځي هم والله که ورته جګ شم. دا مي له واکه نه ده چې پرون مې ورسره جنګ کاوه، اوس بیا مخې ته ورځم، یوه هفته په صدارت کې و ورنغلم، زه وزیر داخله هم وم، بیا وروسته ورغلم چې بس ده، سړي ماتې خوړلي، حکمتیار راته وویل چې خلک وایې ته ډېر ښه سړی یې، یوه هفته کیږي راغلی یم، مګر ته اوس راغلی، ومې ویل پخوانۍ کیسی به نه کوو. زما یو وراره د انجنیر افضل ورور وو هغه یې له ملګرو سره په ډېر ناځوانمردانه ډول د ماین په انفجار سره مړه کړل، دا خبره مې نور حکمتیار ته ونه کړه.

پنجشیریانو حکمتیار له دروازي د باندي ډېر ځله نه پریښودی. چې کله به له صدارت څه وتی دراوزه کې به یې ورته ویل برای شما اجازه نیست، د حکمتیار کسانو به ورته ویل چې صدراعظم است، دوی به ویل بري ما امر است که بیرون نه برایې، مسعود تر دي اندازي د حکمتیار سپکاوی کاوه.

نه مې هیریږي، زړه مې هم ورته بد شو، حکمتیار ویل اې ورونو! ماته مې مور وویل چې دا کابل ته مه ځه، ما د مور خبره ونه منله او راغلم، اوس مي دا خلک (پنجشیریان) د دراوزي د باندي هم نه پریږدي، ما د حکمتیار طرفداري کوله، جمعتیانو اوازه ګډه کړه چې انجنیر احمدشاه حزب ته ولاړی، دوه کسان به هر وخت سیاف ماته رالیږل، سیاف به ورته ویل چې انجنیر ته ووایه چې د حکمتیار ملاتړ ونه کي. یو انجنیر وحیدالله سباوون او بل هم قومندان مجاهد و، دوی دواړو سیاف او مسعود ته شیطانت کاوه. ما همدوی ته ویل چې تاسي ډېر بی غیرته خلک

یاست، دې سړي "حکمتیار" چې له ماسره کومه جفا کړې له تاسي سره یې نه ده کړي، اوس راغلي والله که یې پنجشیریانو ته یواځې پریږدم.

سیاف به ویل انجنیره! په دې خبرو پسې مه ګرځه، دا سړي د انډیوالۍ نه ده، ورته مې وویل: والله که ستا هم ومنم، دا دواړه (سباون او مجاهد) ډیر خاینان دي، ډیر بې غیرته دي، د پښتو متل مې ورته تیر کړ چې :

"پښتانه وایې رادي وستم په سړي او ودي خوړم په سپي"

حکمتیار ته مې ډیر زړه بد شو چې ویل یې مور مې ویل چې کابل ته مه ځه، بیا وروسته حکمتیار وویل چې زه صدارت نه کوم، بل کس معرفي کوم، استاد فرید یې صدراعظم معرفي کړ، دی چهار اسیاب ته ولاړ، راکټونه یې پیل کړل، استاد فرید ورته وویل چې زه دې راوستلم، اوس راکټونه راولي، بیا استاد فرید هم صدارت پریښود او ولاړی. صدارت بیرته ماته پاتې شو، معاونین مې جاوید هزاره او مولوي ارسلا وو.

د حکمتیار توهین د رباني، سیاف او مسعود له خوا قصداً کیدی، حکمتیار تېروتنه وکړه چې پرته له شرایطو کابل ته راغی، ویلي به یې وای چې تغیرات راولم بیا راځم، شرطونه به یې ایښي وای، بده دوره وه د شرم او ننګ خبرې دي، سړي یې نه شي کولای.

ما (احمدزي) به ورته ویل چې دا سړی (حکمتیار) مو راوست، اوس نو د صدراعظم په سترګه ورته وګورئ، دوی داکار نه کاوه، کابینه کې مې ورته وویل، چې د مسعود خلک ملامت دي، حکمتیار د باندي نه پریږدي.

د کابینې غونډه په چهار اسیاب کې کیدله، مګر وزیران نه ورتلل. په ځانګړي ډول د جمعیت او اتحاد اړوند وزیران د حکمتیار غونډو ته نه ورتلل، او د مسعود د کسانو له خوا نه پریښودل کیدل، حتی د نورو ګوندونو وزیران هم چې دارلامان ته ورښي، خبره د وزیرانو تر توهین پوري ورسیدله.

صدارت ما (احمدزي) په هغه غریبي کې تر اوه منزله جوړ کړ، تهکوي کې مې حکمتیار ته د کیناستلو او دفتر ځای جوړ او ورته مې پریښود. حکمتیار احوال رالیږلي و چې داسي ځای کې راته دفتر جوړ کړئ چې د باندي له خوا راکټ پري ونه شي لګیدلای، له ځان سره مې ویل چې موږ به دلته چمن کې ناست وو او ستاسي راکټونه راتلل." انجنیر احمد شاه احمدزی

## د حکمتيار دويم ځل کابل ته راتګ

" په ۱۹۹۶ ز. کال کې انجنير حکمتيار د استاد رباني د حکومت صدراعظم او دفاع وزارت هم دوی ته ورکول شو، استاد رباني حزب اسلامي ته د جګړې تاوان ومانه، حزب ته يې نغدي پيسې ورکړي، جلال اباد او نغلو کې خبرې وشوې، ولې بيا هم نظامي ټول واک احمدشاه مسعود په خپل لاس کې نيولی وو، د حزب اړوند دفاع وزير انجنير وحيدالله سباون واک او ځواک نه درلود او له احمدشاه مسعود څخه يې لارښوونې ترلاسه کولې[۱۲۰]." سيد داوود اغا

مخکې له دې چې ښاغلی حکمتيار کابل ته ننوځي، استاد رباني د مارچ ۱۸مه ۱۹۹۶، له امريکا وغوښتل چې د ده حکومت په رسميت وپېژني او کابل کې سفارت خلاص کړي، ولې امريکا غبرګون ونه ښودی.

طالبان ورځ تر بلې قوي کېدل او په کابل يې د بريد تابيا نيوله، د مئ ۳۰مه ۱۹۹۶، طالبانو له مولوي خالص، مولوي محمدي، پيرګيلاني او حضرت مجددي وغوښتل

---

[۱۲۰] د حزب اسلامي قومندان معلم ميرولي چې په هلمند کې له طالبانو سره په جګړه کې تر ماتې وروسته له شمال ټلوالې سره يو ځای شوی و، په ۲۰۰۸ ز کال کې يې ما (ليکوال) ته وويل:"کله چې طالبانو جلال اباد ښار ونيو، د لغمان او کابل په لور يې پرمختګ کاوه، موږ له وريښمين تنګې ور ها خوا، لغمان لورته له طالبانو سره د جګړې لپاره تللي وو، ما کتل چې د حکومت وسلوالو ټانکونه د کابل په لور تښتي، له موږ سره يو ټانک پاتې شو، ومې کتل چې د طالبانو ډاډسن موټر له سپينو بيرغو سره موږ ته ډېر را نږدې شول، ملګرو ته مې وويل چې له دې ځايه ځو، موږ په تېښته را ووتو، لغمان او وريښمين تنګی هم طالبانو ونيو، ماهيپر کې دفاع وزير سباوون ولاړ و، مسعود ته يې مخابره کې وويل:"په سرخرود کې له طالبانو سره سخت مقامت او جګړه روانه ده."

احمدشاه مسعود چې د جګړې له لومړيو کرښو معلومات درلود، سباوون ته يې وويل:"بسيار خوب و دقيق معلومات داريد؟ اينه امد، طالبا به کابل نزديک شده."

له مسعود سره په مخابره کې تر خبرو وروسته، انجنير سباوون هم د کابل په لور حرکت را وکړ."

چې کابل ته ولاړ او استاد رباني ته ووايې چې له واک څخه لرې شي، يواځې مولوي خالص کابل ته ورغی او استاد رباني ته يې د واک پريښودلو خبره وکړه.

د استاد رباني او حکمتيار تر منځ د ايران په وساطت چې د حکمتيار زوم همايون جرير پکې ډېر مهم کردار اداء کړ، د ماهيپر تړون وشو.

د سپټمبر ۱۸مه ۲۰۱۳، موږ (انجنير احمد شاه احمدزي، استاد محمد زمان مزمل او حاجي احمد فريد) ته د حزب اسلامي د شوراګانو رئيس انجنير قطب الدين هلال وويل:" تر ټولو مهمه داده چې له پاکستان آی اس آی سره خبره وشي، ماته معلوميږي چې هغوی څومره تاثير پر طالبانو لري او پاکستان بايد چې طالبان سره راټول کړي او خبرو ته يې کينوي.

که پاکستان وغواړي هر ځای او د هري کچې طالبان سره را ټولولای او کينولای شي، د طالبانو ميخ هلته ډېر ټينګ ټکوهل شوی دی.

کابل لا هم د استاد رباني او مسعود په لاس کې و، د طالبانو مشران ملامحمد غوث اخوند او ملا جليل اخوند د پاکستان د آی اس آی په وساطت د حزب اسلامي - حکمتيار، جنبش اسلامي – عبدالرشيد دوستم، حزب وحدت اسلامي – عبدالعلي مزاري او مشرقي شورا له استازو سره په پېښور کې خبرو ته کنياستل، موږ ټول پنځه واړه جهتونه دويمه ورځ موافقي "جمهوري رياست او واک – طالبان، صدارت عظمی – حزب اسلامي، دفاع وزارت – مشرقي شورا، يو مهم وزارت حزب وحدت او بل مهم وزارت دوستم، نور پاتې وزارتونه - طالبان " ته ورسيدو.

کله چې توافق وشو، همدغه وخت کې همايون جرير ماته ټيليفون وکړ، ويې ويل چې په ايران کې ناسته ده، حزب اسلامي ته يې د ګډون بلنه ورکړي، ډاکټر عبدالرحمن [۱۲۱] ايران کې دی، له حکومت سره خبري رواني دي.

[۱۲۱] ډاکټر عبدالرحمن د مجاهدينو تر بريالیتوب وروسته د استاد رباني په حکومت کې د کابينې وزير و، کله چې طالبانو کابل ونيو، په شمال کې د استاد رباني د حکومت غړی و.

ما (هلال) جرير ته وويل: اوس موږ څه وکړو، موږ خو دلته (پېښور) کې پرون خبري پيل او نن توافق ته ورسيدو.

جرير وويل: تاسي خبري جاري وساتئ او زه ايران ته ځم.

همايون جرير ايران ته ولاړ، هلته يې له ډاکټر عبدالرحمن سره وليدل، د حکمتيار ذهن يې منحرف کړ، د پنجشير په ګټه يې خبره وکړه او د حزب اسلامي مشر يې وهڅاوو چې د طالبانو پرځای له احمدشاه مسعود سره ملګری شي؛ ځکه هغه دولت دی او هلته ډير امکانات دي او حزب اسلامي به ډير ژر واک په لاس کې واخلي.

له دي سره سره همايون جرير موږ ته ويل چې تاسي له طالبانو سره خبري جاري وساتئ، ومې ويل چې اوس خبره وروستۍ شوي، څنګه وکړم، پريکړه ليک امضاء کړم که نه؟ جرير له ايران څخه پر ټليفون وويل؛ هو امضاء يې کړه.

همدا توافقنامه مې له دې مخکې حکمتيار صاحب ته ليږلې او له هغه سره شريکه کړي وه، هغه يې هم د اجراء او لاسليک اجازه کړي وه.

موږ د ټولو ګوندونو استازو پر ترون لاسليکونه وکړل، دا ټول مجلسونه مو د آی اس آی په دفتر کې وکړل، تر لاسليک وروسته، پريکړه ليک د آی اس آی مشرانو په فايل کې بند، ويې ويل چې پريکړه ليک به کانتيننټل هوټل کې اعلانوو، هلته به د ملګرو ملتونو استازي، د سياسي ګوندونو استازي او د نړيوالې ټولنې استازي ناست وي، ملګري ملتونه به له تاسي ۵ جهتونو څخه ددې ضمانت تر لاسه کوي چې په ګډه کار وکړئ."

هلال صاحب زياته کړه:"پريکړه وشوه، چې د همدي پنځه ګوندونو نظامي شورا به غونډه کوي او پر کابل د عملياتو له پاره پر پلان او وخت به بحث کوي.

---

پر افغانستان د امريکا تر حملې وروسته، ډاکټر عبدالرحمن د ملکی هوايی چلند اداري وزير و، د فبروري ۱۴مه ۲۰۰۲، د کابل په هوايې ډګر کې د شمال ټلوالې د قوماندان جنرال جرائت د وسلوالو له خوا له الوتکې څخه را وغورځول او ووژل شو.

د یادو گوندونو نظامي کسان سره کیناستل او پریکړه یې وکړه چې د پروان او کاپیسا له خوا به حزب اسلامي، د چهار آسیاب له خوا طالبان، د کابل د جنوبي دروازي له خوا حزب وحدت او دا ډول دوستم به هم له داخل د کابل څخه د حکومت ضد عملیات کوي، پر کابل د عملیاتو نیټه یې هم تعین کړي وه.

سبا سهار چې گورم شهادت اخبار کې غټ لیکل شوي چې له طالبانو سره دري اړخیزه خبري کامیابي شوي، د شهادت اخبار مسؤل بشارت صاحب ته مې ټلیفون وکړ چې دا خبري پټې وي او موږ ژمنه کړې وه چې د مذاکراتو اړوند خبرې او معلومات به د باندی نه راباسو، پر دي خبرو له ما (هلال) او حکمتیار صاحب څخه پرته بل څوک نه وو خبر، تاسي ته چا وویل چې داخبر نشر کړئ.

بشارت صاحب وویل: ماته وویل شول چې خبر نشر کړم.

زه (هلال) پوه شوم چې حکمتیار صاحب ورته ویلي دي.

په مذاکراتو کې طالبان هیڅ ملامت نه وو، هغوی پر خپلو ټولو وعدو ودریدل، حزب اسلامی هغه مذاکرات او پریکړه شنډه کړه، چې په نږدې تاریخ کې به هم بیا هغه ډول پریکړه ونه وینو، که هغه وخت کې موږ هغه پریکړه منلي وای، نن به ستونزي نه وای او موږ به له طالبانو سره گډ حکومت درلود چې نړیوال ملاتړ به مو هم ترلاسه کړی وای."

هلال صاحب وویل:"وروسته خبره معلومه شوه چې د ایران په هڅو همایون جریر ( دحکمتیار زوم) توانیدلی و چې د ښاغلی حکمتیار ذهنیت د احمدشاه مسعود سره جوړې او یوځای کیدو ته وگرځوي، همهغه و چې د ماهیپر تړون وشو او حکمتیار د لومړي وزیر په توگه کابل ته رانوت."

د ښاغلي حکمتیار او مسعود تر جوړې او حکمتیار کابل ته ننوتلو دري میاشتې وروسته کابل طالبانو ونیوی. په ختیځ او شمال کې د حزب اسلامي ځیني قومندانان او ډیر وسلوال له طالبانو سره یوځای او د طالبانو په لیکو کې د شمال ایتلاف سره په جگړه بوخت وو.

٦ سرطان ۱۳۷۵ / ۲٦ جون ۱۹۹٦، ښاغلی حکمتیار د لومړي وزیر په صفت کابل ته ننوت او د صدراعظم په توګه يې سوګند یاد کړ. استاد سیاف او مسعود ښاغلي حکمتیار ته ښه راغلاست ووایه، ولې په هغه ورځ د طالبانو له خوا په کابل باندي راکټونه ویشتل کیدل، زه (لیکوال) هم د ننګرهار پوهنتون د محصلینو په ډله کې د ښاغلي حکمتیار سره په هغه موټریز کاروان کې وم چې کابل ته ننوتی.

ولسمشر استاد رباني د حکمتیار کابل ته راتګ څخه دوه ورځې وروسته (۲۸ جون ۹٦ ) په جلال اباد کې مولوي خالص، مولوي محمدي او پیرګیلاني ولیدل، له هغوی څخه يې غوښتنه وکړه، چې په حکومت کې ورسره شریک شي، مګر یادو دریو د مجاهدینو رهبرانو د استاد رباني حکومت رد کړ او غوښتنه يې وکړه چې واک ( دولسمشري چوکۍ) باید مولوي خالص ته وسپارل شي.

طالبانو خپلو پرمختګونو او په کابل باندي حملو ته زور ورکړ، ښاغلي حکمتیار د سپټمبر ۹مه ۱۹۹٦، د هغه چا پر ضد د جهاد اعلان وکړ چې د حکومت په مقابل کې جنګ کوي.

۲۱ سنبله ۷۵ / ۱۱ سپټمبر۱۹۹٦، طالبانو جلال اباد ښار ونیو، زه (لیکوال) دوه ورځې وروسته جلال اباد ښار ته ورسیدم، د احمدشاه مسعود د هوایي ځواکونو له خوا په ښار باندي هوایي بمبارد روان وو.

طالبانو د کنړ او لغمان ولایتونو له نیولو سره همهاله د کابل په لور نظامي پرمختګ کاوه، د احمدشاه مسعود او حکمتیار د وسلوالو له ډیر لږ مقاومت سره د کابل د نیولو پر مهال مخ شول او د میزان ۵مه ۱۳۷۵ / د سپټمبر ۲۷مه ۱۹۹٦ طالبانو کابل تر خپل کنټرول لاندي راوست.

د طالبانو د مشر ملامحمد عمر مجاهد له خوا د کابل د امورو اداره کول د ملا محمد رباني په مشرۍ ٦ نفرو (ملا محمد حسن، ملا محمد عباس، مولوي سید غیاث الدین، ملا محمد غوث او ملا فاضل) ته وسپارل شول[۱۲۲].

زه (لیکوال) د کابل تر نیولو دوه ورځې وروسته کابل ښار ته راغلم، سړکونه له موټرو او خلکو خالي وو، ګڼه ګونه نه وه، خلکو لا هم ویره درلودله، چې کیدای شي د حزب اسلامي او شورای نظار د جګړو په څیر به په کابل کې د طالبانو د مخالفو وسلوالو له خوا راکټونه را وویشتل شي.

[۱۲۲] ملا محمد رباني د جهاد پر مهال د مولوي خالص بابا تنظیم کې و، د پخواني شوروي اتحاد د لښکرو سره یې جګړې وکړې، پېښور کې د مجاهدینو د لنډمهاله حکومت د حج او اوقافو مرستیال وزیر وټاکل شو، مګر هغه په کندهار کې جهاد ته ادامه ورکړه او همهلته و.

د مجاهدینو تر کامیابۍ وروسته په کور کیناست، د فساد پر ضد یې په خپله ولسوالۍ ارغستان – کندهار کې مبارزه کوله، چې وروسته له ملا محمد عمر مجاهد سره ملګری او د هغه مرستیال و، کله چې طالبانو کابل ونیو، ملا محمد رباني اخوند د سرپرستي شورا رئیس / لومړی وزیر (۲۷ سپټمبر ۱۹۹٦ تر ۱۳ اپریل ۲۰۰۱) و.

ملا عبدالسلام ضعیف چې هغه مهال پاکستان کې د افغانستان سفیر و، ما (لیکوال) ته وویل:" موږ هڅه وکړه چې ملا محمد رباني اخوند متحده عرب اماراتو ته د درملنې لپاره یوسو، له ډیرو هڅو وروسته، بیا هم د متحده عرب اماراتو له خوا د هغه د درملنې او هلته ورتلو اجازه تر لاسه نه شوه."

ملا محمد رباني د سرطان ناروغي له امله د اپریل پر ۱۵مه، د راولپنډۍ نظامي روغتون کې وفات شو.



انجنير ګلبدين حکمتيار او استاد عبد رب الرسول سياف



حکمتيار او مسعود د عرب او پاکستاني لوړ پوړو استخباراتوي چارواکو منځ کې

## د طالبانو پيدايښت

"د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر په لومړۍ اونۍ کي د طالبانو تحريک د سنګسار کلي څخه چي د ميوند ولسوالۍ (اوس مهال د ژړۍ ولسوالۍ) مربوط دی د ملا محمد عمر مجاهد په مشري پېل سو، د سنګسار لوی کلی د کندهار –هرات د لويي لاري پر غاړه موقعيت لري. دغه اسلامي يون د حوض مدت په سپين مسجد کې د خپل فعاليت اغاز اعلان وکړ، د طالبانو د اسلامي تحريك او غورځنګ په نامه نه، بلکې د يوه سپيڅلي پاڅون په حيث چي د فساد او لوټ مارۍ مخه ونيسي، په مسجد کي د تحريك په هدفونو او اړتياوو باندې دعلماوو له خوا مفصلې خبرې وسوي، د ملا محمد عمر مجاهد او مولوي صاحب عبدالصمد په ټاکلو باندې د ګډونوالو څخه عمومي بيعت واخيستل سو.

ډير ژر يې د کندهار –هرات د لويې لارې په اوږدو کي د عملي کار لپاره زنځير (د موټرو د دريدو لپاره ځانګړی زنځير چي چلوونکي وپوهيږي چي د دريدو او تلاشي ځای دی) واچاو، په همدې توګه تحريک د اول ځل لپاره د شرعي امورو د عملي تطبيق لپاره په ښکاره سره فعاليت پيل کړ.

د ۱۹۹۴ ز کال د اکتوبر مياشتې پر ۷مه ورځ باندې د تحريك د پېل اغاز وسو، د دغه پېل د رضاکارانه ګډونوالو تعداد تقريباً د پنځه ديرش کسانو په شاوخوا کي و، چي ټول زاړه مجاهدين او ډيری يې ديني طالبان وو، چي د روسانو او کمونستانو پر ضد يې په مختلفو جبهو کې جهاد کړی وو[۱۲۳]."

"د طالبانو په لومړيو وختونو کې استاد رباني، احمدشاه مسعود او استاد سياف دهغوی د ښه والي او سولې د فرښتو خبره کوله، مګر بيا يې ورسره جنګ پېل کړ، استاد رباني د طالبانو سره د جنګ په وخت کې د مقاومت کليمه کاروله، د طالبانو په ضد يې د جهاد فتوا د خپل ژوند تر اخره ور نه کړه او نه يې د هغه وخت خپلو وسلوالو مړو ته د شهيد نوم کاراوی. ولي د طالبانو سره مقاومت يې په حقه باله، د خپلو حقوقو د ترلاسه کولو له پاره يې جګړه کوله. کله چې امريکا پر طالبانو حمله

[۱۲۳] د ملا عبدالسلام ضعيف کتاب (طالبان له کندهاره تر مزاره)، ۳۴مه او ۳۵مه پاڼه

وکړه، ويل کيږي چې دواړو استادانو (رباني او سياف) له امريکايې چارواکو غوښتل چې پر طالبانو لوی لوی بمونه وغورځوي.

استاد سياف د طالبانو او امريکايانو+افغان حکومت تر منځ د جګړې په ورستيو کلونو (۲۰۱۱ تر ۲۰۱۵) کې په لويو لويو غونډو کې د طالبانو سره جګړه جهاد وباله، طالبان يې واجب القتل وګڼل او د طالبانو له منځه وړل يې د حکومت دنده وګڼله. مګر د امريکايانو په اړه يې کومه څرګندونه نه ده کړي او د طالبانو سره جګړې ته خپله هم نه دی تللی، يواځې افغان امنيتي ادارو ته يې فتوا صادره کړه.

ولي په وروستيو وختونو کې د استاد سياف څرګندونې د طالبانو په وړاندې هغه وخت تغير وموند چې کله په قطر کې د طالبانو له استازو څخه د ولسمشر اشرف غني تره قيوم کوچي وغوښتل چې استاد سياف په نښه او مړ کړي او طالبانو ورته وويل چې هغه د مجاهدينو رهبر پاتې شوی او کله به هم استاد سياف ونه وژني[۱۲۴].

---

[۱۲۴] په دوحه کې د پګواش غونډې ۲۳ او ۲۴ جنوري ۲۰۱٦) ګډونوال او د ولسمشر اشرف غني تره قيوم کوچی د خپل وراره له ډير صفت کولو وروسته او پر طالبانو له توندو نيوکو کولو سره سره يوه د زړه خبره هم وکړه، هغه طالبانو ته وويل:" تاسي ظالمان ياست، بې ګناه خلک وژنئ، بې ځايه جګړه کوئ، حکومت نه شئ نيولای، راشئ له حکومت سره يوځای شئ او زه په خپل وراره ويارم چې په ډير مهارت سره يې له ډاکټر عبدالله سره ګډ حکومت جوړ کړ" .

ښاغلي کوچي وويل: "طالبان چې په کابل او نورو ځايونو کې بې ګناه عام افغانان وژني او غټ مجرمين نه وژني دا زموږ له پاره د منلو وړ نه ده، طالبان که رښتيا غواړي چې د افغانانو قاتلين او اصلي مجرمين ووژني نو مهرباني دي وکړي تر ټولو لومړی دي استاد سياف او د هغه هم مثله ووژني. ځينې ګډونوال وايې چې د استاد محقق نوم يې هم واخيست خو دغه نوم بيا نور ګډونوال نه تايدوي يواځې د استادسياف د وژلو غوښتنه د کوچي له خوا تايدوي".

د طالبانو د هيئت او قطر دفتر مشر ښاغلي شيرمحمد عباس ستانکزي د ښاغلي قيوم کوچي د استاد سياف د وژلو د غوښتنې اړوند ځواب کې ورته وويل:" موږ ټولو هغو مجاهدينو

د طالبانو د ډلې ملاتړ لومړی ځل، د هغه وخت ولسمشر استاد رباني اعلان کړ، ویې ویل چې دا د سولې فرښتې دي، باید ورسره همکارې وشي. لومړی ځل یې د مولوي شیرانې په لاس د طالبانو له پاره ۲ میلیارده افغانۍ مرسته واستوله.کله چې طالبانو کابل ونیو د چارو په اداره کې یې هغه اسناد ولیدل چې د رباني د حکومت له خوا د طالبانو په نوم پیسې استول شوې وې، د طالبانو چارواکې ډېر حیران وو چې د استاد رباني حکومت څومره ډېره مرسته کړې.

کندهار کې لومړی ځل د فرقې مشر ملانقیب آخوند د جمعیت اړوند مشهور قومندان ټوله فرقه له وسلو سره طالبانو ته وسپارله. د مسعود پروګرام داوو چې حزب اسلامي په طالبانو ختم کړي، بیا به طالبان له هزاره وسلوالو سره هم وجنګیږي، بالاخره به مسعود ته د جنګ له پاره غیر منظم او پاشل شوې طالبان پاتې شي، مسعود فکر کاوه چې د طالبانو له منځه وړل تر حزب اسلامي او هزاره وسلوالو اسان دي." وحید مژده

" طالبان د ۱۹۹۴ ز. کال اکتوبر کې په کندهار کې راپیدا، د کندهار نیولو کې ورسره ملا نقیب الله د استاد رباني په خوښه ملګرتیا وکړه، غزني کې ورته قاري

---

کشرانو او مشرانو ته په درنه سترګه ګورو چې پخواني شوروي اتحاد سره یې په جهاد کې برخه اخستې او کمونیزم یې د نړۍ له مخې ورک کړ. استاد سیاف د جهاد د رهبرانو څخه دی هغه له کمونستانو سره جهاد کړی، موږ به هغه څوک وژنو چې د شوروي د یرغل پر مهال دهغوی غلامان او دهغوی له پاره جنګیدل، په اوس مهال کې د امریکا غلامان او د امریکا د ګټو له پاره له افغان ولس سره جګړه کوي، موږ به د هغو سیکولر کسانو سره هم جګړه کو چې له لویدیځ څخه راغلي‌او په افغانستان کې د سیکولریزم له پاره مبارزه کوي. ښاغلی کوچی! موږ پوهیږو چې لویدیځ غواړي زموږ او مجاهدینو تر منځ اختلافات لا زیات کړي او غواړي موږ په مجاهدینو او د مجاهدینو مشران په موږ ووژني، موږ به هیڅکله د مجاهدینو د مشرانو وژلو له پاره د لویدیځ د دغې دسیسې ښکار نه شو".

بابا مرسته ورکړه[۱۲۵] او میدان وردګو کې د حزب اسلامي تورن امان الله خان [۱۲۶] لاره ورکړه.

تر څو چې طالبان میدان ښار ته رسیدل، تر همدې وخت پورې د استاد رباني او استاد سیاف اړیکې ورسره ښې وې. استاد رباني له امید ورځپاڼې سره مرکه کې وویل چې طالبان د سولې پرښتې او پخواني مجاهدین دي.

---

[۱۲۵] تاج محمد قاري بابا د جهاد پر مهال د حرکت انقلاب اسلامي قومندان و، په غزني کې تر ټولو قوي جبهه د همدوی وه، قومندان خیال محمد حسیني یې مرستیال و. کله چې مجاهدینو کابل ونیو، قاري بابا د غزني والي شو او له جمعیت اسلامي سره یوځای شو.

ما (لیکوال) ته قومندان خیال محمد په ۲۰۱۹ کې وویل:" زه د غزني ولایت مستوفي وم، قاري بابا نه غوښتل چې غزنی طالبانو ته تسلیم کړي، مګر ما غوښتل چې له طالبانو سره جګړه ونه شي او قاري بابا پوهیدی چې پرته زما له ملګرتیا له طالبانو سره جګړه نه شي کولای."

قاري بابا له غزني وتښتید او قومندان خیال حسیني له طالبانو سره ملګری شو، چې د پکتیا مستوفي وټاکل شو.

پر افغانستان د امریکا له حملې وروسته، قاري بابا د فبروري ۱۱مه ۲۰۰۲ کې د غزني والي وټاکل شو او د ۲۰۰۲ کال په وروستیو کې له غزني ولایت څخه ګوښه شو.

قاري بابار د مارچ ۱۸مه ۲۰۰۶، له خپلو ۴ ساتونکو سره یوځای په غزني کې د طالبانو له خوا وویشتل او ووژل شو، قومندان خیال محمد د غزني د والي اسدالله خالد مرستیال، وروسته د زابل والي، د ولسي جرګې غړی، بیا ځل د زابل والي او دارنګه د ډاکټر غني سلاکار و.

[۱۲۶] ډګر جنرال امان الله خوږمن په میدان ښار کې د حزب اسلامي تر ټولو قوي قومندان او له احمدشاه مسعود سره یې سختې جګړې وکړې.

پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته پېښور ته ولاړ، له امریکا او افغان حکومت سره یې ملګرتیا ونه کړه، کله چې حزب اسلامي له افغان دولت سره سوله وکړه، ډګر جنرال امان الله خان بیا هم کابل ته رانغی، هغه د جنوري ۲۲مه ۲۰۱۵، پېښور کې مړ، جنازه یې د جنوري ۲۴مه، میدان ښار کې په خپله پلارنۍ هدیره کې خاورو ته وسپارل شوه.

ویل کیږي چې د پلچرخي قوای چهار څخه په دوه یا درو چورلکوکې افغانی طالبانو ته د حکومت له خوا ولیږل شوې، استاد سیاف له خپل لوري طالبانو ته افغانی واستولي[۱۲۷]، د دوی هدف د طالبانو په واسطه د حزب د جګړې لومړی کرښه ماتول وو." سید داوود اغا

" کله چې طالبانو تیز پرمختګ وکړ، حزب اسلامي او هزاره وسلوال یې له منځه یوړل، مسعود د طالبانو له مشرانو ملا مشر او ملا بورجان اخوند سره په میدان ښار کې ناسته او خبرې وکړي، یوه طالب غوښتل چې مسعود ووژني مګر د نورو طالبانو له خوا یې مخه ونیول شوه، ځکه طالبانو له مسعود سره معاعده کړي وه چې هغه ته به زیان نه رسیږي. کله چې مسعود د طالبانو غیر منظم او ګډ وډ حالت ولیدی، پرته له دي چې د هغوی سره د سولې او د کابل په اړه د تسلیمې خبره وکړي، ویلي یې و چې یو ځل خو له طالبانو سره هم زور ازمایې کوم.

مسعود له روسانو د مرستې غوښتنه مخکې لا کړې وه، روسانو خپل شرط ورته دا ښودلی وو چې د تاجکستان اسلامي نهضت د عبدالله نوري په مشري له تاجکستان سره بیرته یوځای کړئ او د استاد رباني حکومت د تاجکستان مسلمان جنګیالي اړ کړل چې له تاجک مشر امام علي رحمان سره سوله وکړي او ورته تسلیم یې کړي. استاد ربانی او مسعود د تاجکستان مشر امام علي رحمان او د تاجک جنګیالو مشر عبدالله نوري په کابل کې سره کینول، فشار یې وارد کړ چې عبدالله نوري جوړه وکړي، بالاخره همدا کار وشو." وحید مژده

د طالبانو د شریعت ورځپاڼې مسوول، د معادن او صنایع او بیا وروسته د بریښنا وزیر د میزان پر ۳مه او ۴مه ۱۳۹۵ ل. کال د طالبانو دمشرانو او احمدشاه مسعود د ناستې په اړه ما (لیکوال) ته په قطر کې وویل:"یو ځل طالبانو او احمد شاه مسعود

---

[۱۲۷] د استاد برهان الدین رباني د حکومت پر مهال د افغانیو ارزښت ډیر کم و، نو ځکه په بوجیو کې انتقال کیدي، هغه مهال یو سنټ امریکایې ډالر په ۵۲۵ افغانیو او یو امریکایې ډالر په ۵۲۵۰۰ افغانیو اخیستل کیدی.

په میدان ښار کې د جنګ په لومړۍ کرښه کې د تپې (کوتل) په سر کې د ۱۳۷۴ ل. کال په لومړیو کې سره ولیدل، د طالبانو د تحریک مرستیال ملا محمد رباني اخوند، ملا مشر اخوند او ملا بورجان اخوند له احمد شاه مسعود سره ناسته درلودله او احمد شاه مسعود د ملا سیف الله منصور [۱۲۸] د مولوي نصرالله منصور د زوی له خوا په ضمانت هلته ورل شوی وو، احمدشاه مسعود ژمنه وکړه چې درنې وسلې به طالبانو ته تسلیموي؛ مګر هغه وخت چې د حزب اسلامي له خوا په دوی د برید ویره نه وي، طالبانو ته یې وړاندیز وکړ چې لومړی د حزب اسلامي سیمې ونیسئ او کله چې موږ د حزب اسلامي د برید له ویرې امن شو، لویې وسلې به زه (مسعود) طالبانو ته تسلیم کړم، دوو طالبانو غوښتل چې احمد شاه مسعود ووژني خو د غدر اجازه ورنه کړل شوه.

احمد شاه مسعود چې د طالبانو ګډ وډ حالت او دهغوی بې پروایې ولیدله، له طالبانو سره یې جګړې ته زړه ښه کړ او په خپلو ژمنو له طالبانو سره ونه دریدی. "

ځینې افغان سیاستوال او شنونکي وایې چې احمد شاه مسعود نه غوښتل چې له طالبانو سره جګړه وکړي، بلکې له هغوی سره د خبرو او مذاکرې لاره یې غوره ګڼله، خو د استاد سیاف له خوا وهڅول شو چې له طالبانو سره جګړه وکړي.

د جولای ۲۰مه ۲۰۲۰، مولوي محمد عمر فاروقي چې د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د سوداګرۍ مرستیال وزیر، وروسته د احوالو د ثبت او نفوس ادارې عمومي رئیس و، د طالبانو او احمدشاه مسعود ترمنځ ناستې کې موجود و، موږ ته یې وویل:کله چې احمدشاه مسعود میدان ښار کې طالبانو ته راغی، هغه خپله توپانچه طالبانو ته ورکړه، ویې ویل چې زه بې وسلې در سره خبرې کوم او باور در باندې کوم.

---

[۱۲۸] د طالبانو د لومړۍ کرښې منلی قومندان و چې د امریکا تر حملې وروسته یې د پکتیا د زرمت ولسوالي په شاهیکوټ کې له امریکایې پوځیانو سره سختې جګړې وکړې. امریکایې پوځیانو ته یې درنه مرګ ژوبله واړوله او خپله هم په هغه جګړه کې د امریکایې هوایې بریدونو او کیمیاوي وسلو د بریدونو په پایله کې له ډیرو نورو طالبانو سره یو ځای ووژل شو.

مسعود وویل:" استاد رباني راليږلی یم، د هغه له طرفه وکالتاً او د خپل ځان بیعت له ملا محمد عمر مجاهد سره کوم. کابل تاسي ته سپارم، واک به د اسلامي دولت قاضي القضات، د حرکت انقلاب اسلامي مرستیال مشر مولوي محمد شا فضلي ته وسپارم، زه به خپل ۵۰۰ وسلوال کابل کې له تاسي سره ګروګان پریږدم، هغه به ستاسي په واک کې وي او زه به له کابل څخه ووځم، د خپلو ۵۰۰ کسانو د خوندیتوب په خاطر به هم بیا له تاسي سره جګړه نه شم کولای."

مولوي فاروقي وویل:"په وروسته وختونو کې بیا موږ ته مولوي محمد شاه فضلي وویل چې احمدشاه مسعود غوښتل همداسي وکړي، مګر استاد سیاف ورته وویل چې شرعاً تاسي (مسعود) ناسم کار کړی، استاد برهان الدین رباني د دولت زعیم دی."

ملا عبدالسلام ضعیف وویل چې حاجي امیرمحمد اغا وویل:" کله چې احمد شاه مسعود میدان ښار ته راغی، له هغه سره اندیښنه پیدا شوه چې کیدای شي طالبان ور سره غدر وکړي او ژوندی یې ونیسي، د دې لپاره چې طالبان پر خپل ځان باوري کړي او د طالبانو په جال کې ونه نښلي، په همدې خاطر یې دا خبره وکړه چې زه بیعت کوم او کابل تاسي (طالبانو) ته تسلیموم."

ضعیف صاحب زیاته کړه:"له طالبانو سره تر لیدو ۲۴ ساعته وروسته، احمدشاه مسعود د چهار اسیاب لور ته د طالبانو پر جنګې کرښو برید وکړ، ډیر طالبان پکې ووژل شول او احمدشاه مسعود ډیرې سیمې هم ونیولې.

که چیرته ربښتیا هم مسعود له طالبانو سره ژمنو کې ربښتونی وای، نو ولي به یې له طالبانو سره تر لیدنې وروسته په ۲۴ ساعتونو کې پر طالبانو بمبارد او بریدونه کول."

طالبانو په ډیره اسانۍ سره د حزب د چهار اسیاب او میدان د جګړې لومړۍ کرښې ماتې کړې، ویل کیږي چې د حزب اسلامي مشر حکمتیار په دې پوهیدلی و چې جمعیت اسلامي او شورای نظار غواړي چې طالبان او حزب اسلامي تر اخره په جګړه کې پاتې شي، له دې کبله به طالبان هم کمزوري شي او کله چې حزب ماتې وخوري، بیا به مسعود ته له طالبانو سره جګړه نسبتاً اسانه وي.

" ددې لپاره چې د احمدشاه مسعود او طالبانو ترمنځ د لوړې کچې خبرې اترې تر سره شي هغه ميدان ښار ته راغی د طالبانو مشر له کندهار څخه نورو طالب مشرانو ته دا ټنيگار کاوه چې بايد د ژمنو پوره درناوی وشي او د هغه (مسعود) د نيولو په فکر کې نه شي، نو هماغه و چې خبرې ترسره شوې او احمدشاه مسعود په سلامتيا سره کابل ته ستون شو.

داسي انگيرل کېدله چې هغه وخت دولت غوښتل چې لومړی يې مخالفين يعنی حزب اسلامي، جنبش اسلامي او وحدت اسلامي له صحنې څخه وايستل شي او بيا وروسته طالبان هم ورپسې ووهل شي[۱۲۹]."

ځينې کسان وايې چې مسعود غوښتل ميدان وردگ کې له طالبانو سره تفاهم ته ورسيږي، ولي ونه رسيد، مسعود چې کومې وعدی کړي وي چې طالبان کله حزب اسلامي ته ماتې ورکړي، موږ حاضر يو طالبانو ته کابل وسپارو، مگر مسعود په خپله وعده ونه دريدی، مسعود په حکومت کې د مساوي واک موضوع مخکې کړه، او طالبانو ته د وسلو د تسليمي مسئلې اړوند يې نظر بيخې منفي و.

طالبان ورځ تر بلې قوي کيدل، هرات يې ونيوی، په شمالي ولايتونو کې يې پرمختگونه وکړل، جمعيت او حزب روغه وکړه او حکمتيار د صدراعظم چوکۍ ومنله، طالبانو د ۱۹۹۶ ز.کال سپټمبر کې جلال اباد ښار ونيوي او د کابل په لور يې بيړنی پرمختگ وکړ." سيد داوود اغا

د نومبر ۲۳مه ۲۰۱۷، مولوي پيرمحمد روحاني [۱۳۰] د طالبانو او استاد سياف تر منځ د سولې او جگړې نه کولو اړوند ما (ليکوال) ته په کابل کې وويل چې موږ

---

[۱۲۹] د طالبانو د وخت د بهرنيو چارو وزير مولوي وکيل احمد متوکل کتاب (افغانستان او طالبان) ۳۰مه او ۳۱مه پاڼه، د خپريدو نيټه ۱۳۸۴ ل کال.

[۱۳۰] مولوي پير محمد روحاني د حرکت انقلاب اسلامي (محمدي)، حرکت اسلامي (منصور) او استاد سياف پخوانی قومندان، د مجاهدينو د حکومت وخت کې د خوست

دوه ځله استاد سیاف ته د طالبانو د سولې او روغې پېغام ورساوو، مګر د استاد سیاف له خوا جواب منفي و.



ملا محمد عمر مجاهد

ښي لور له روسانو سره د جهاد پر مهال انځور، کیڼ لور کله چې د طالبانو مشر و



ملا محمد عمر مجاهد د خپلو طالب وسلوالو منځ کې

فرقې ریس ارکان. د طالبانو د حکومت پر مهال د خوست د مرافعه محکمې رئیس او بیا د کابل پوهنتون ریس و.

د کرزي د حکومت پر مهال د سولې عالي شورا غړی او د پوهنې وزارت کې د نصاب په اسلامي برخه کې سلاکار، د ډاکټر غني د حکومت پر مهال هم د سولې عالي شورا غړی و.

## استاد سیاف ته لومړی ځل د طالب مشرانو پیغام

" کله چې طالبانو پکیتا او خوست ونیوی، زه (پیر محمد روحاني) او مولوي جلال الدین حقاني ورسره یوځای شوې وو، د خوست له نیولو دوه میاشتې وروسته مولوي احسان الله وغوښتلم او استاد سیاف ته یې پیغام راکړ.

داستاد سیاف قومندانان انجنیر نظرمحمد او حاجي گلام خان او دوه نور چې ۵ تنه کیدو، پغمان کې د استاد سیاف لیدو ته ورغلوو. دا هغه وخت و چې میدان ښار کې هم د طالبانو سره د مسعود خبرې رواني وي. استاد سیاف هم طالبانو سره اړیکه کې و او طالبان یې د حکمتیار په ضد جگړې ته هڅول.

چهار اسیاب د طالبانو له خوا نیول شوی و او طالبان له دولتي ځواکونو سره مخ وو.

هغه شپه مې یاد ده چې موږ پغمان کې وو او د احمدشاه مسعود له خوا په لوگر کې د طالبانو په ځایونو بمبارد شروع شو. موږ د جیټ الوتکو پروازونه لیدل چې د لوگر په لور کیدل.

ماخوستن و، له استاد سیاف سره یې ملگري ناست وو، ورته مو وویل چې طالبان له تاسي سره جگړه نه کوي. ورسره کینئ او خبرې وکړئ. مولوي احسان الله موږ همدېته رالیږلي یو چې له تاسي سره د طالبانو جگړه ونه شي.

استاد سیاف په مخابره کې په احمد شاه مسعود بږغ وکړ، ورته یې وویل چې مولوي پیرمحمد روحاني درته سلام وایي، طالبانو را لیږلي دي او غواړي خبرې وکړي. مسعود مخابره کې وویل:"جگړه په موږ تحمیل شوي، موږ جگړه کول نه غوښتل، طالبانو جگړه پېل کړي."

مخابره مې د استاد څخه را واخیستله، مسعود ته مې وویل:"ولي تاسي وایاست چې جگړه دربانديي تحمیل شوي، دادی زه ستاسي جیټ الوتکي وینم چې په طالبانو بمبارد کوئ. او تاسي جگړه شروع کړي، طالبان خو الوتکې نه لري، هغوی خو بمبارد درباندي نه دي کړي. طالبان خو د هوان غټې وسلې او الوتکو ضد توغنديهم نه لري. طالبان جگړه نه کوي، خبري ورسره وکړئ."

احمدشاه مسعود وويل:"دوه نفره نماينده ګان به زه در وليږم او تاسي ور سره خبرې وکړئ."

استاد سياف ته مې وويل چې موږ خو تاته راغلي يو، ستا لپاره مو پيغام راوړی دی، د مسعود لپاره خو نه وو راغلي.

استاد سياف وويل چې دوه نفره د مسعود او يو نفربه زما وي، سبا به تاسي له يو بل سره خبري وکړئ.

استاد سياف ته مې وويل چې طالب بې الايشه دی، د هغوی په اړه ستاسي انديښنه بې ځايه او وهم دی.

استاد وويل:"طالب د دي لپاره را پيدا شوی چې د اخوانيانو بنياد وباسي."

ما (روحاني) استاد سياف ته وويل: طالبان خو شريعت جاري کوي او اخوانيان هم شريعت غواړي. هدف خو شريعت دی او دوی عملاً دا کار وکړ.

استاد سياف سره تر ځينو خبرو وروسته هغه وويل:"تاسي غواړئ ما طالبانو ته تسليم کړئ."

سياف ته مې وويل چې هو، ستا د ژوند ساتلو لپاره همدا کار کوو، نه غواړو چې جګړه کې له طالبانو سره ښکيل شي. غواړو چې تاسي مخامخ له طالبانو سره د ارغندي سيمه کې خبرې وکړئ.

سبا سهار د جمعيت اسلامي نظامي رئيس او ۲ نور کسان، د استاد سياف استازي سره موږ د کابل باغ داوود سيمه کې کيناستلو، د جمعيت خلکو دلايل ويل چې طالبان جګړه کوي او هغوی يې ملامت ګڼل. دوی ويل چې موږ له طالبانو سره مرسته وکړه، مګر هغوی جګړه کوي. موږ ورته وويل چې موږ د دلايلو لپاره نه يو راغلي، ستاسي‌او طالبانو منځ کې د اصلاح په نيت راغلي يو، ښه داده چې مخامخ خبرې له طالبانو سره وشي. مجلس مو بې نتيجې پای ته ورسيدی، موږ د ميدان ښار په لور روان شوو، په لاره کې بمبارد هم را باندي وشو. الله ج موږ وساتلو. طالبانو ته ورغلو او ټول حال مو ورته ووايه.

## استاد سیاف ته دویم ځل د طالب مشرانو پېغام

طالب مشران (ملا محمد رباني، مولوي احسان الله، ملا مشر، ملا محمد او ملابورجان) اخوند په مشرۍ د طالبانو نږدې ۷۰ تنه نظامي مشران [131] د لوګر ولایت محمداغه ولسوالي یوه لویه کلا کې سره را ټول وو، دوی غونډه درلودله، زه یې هم ور وغوښتلم، غونډه ددې لپاره وه چې په کابل باندې برید وکړي. مګر مخکې له برید څخه زما (روحاني) څخه مولوي احسان الله احسان غوښتنه وکړه چې استاد سیاف ته ورشم او د طالبانو پېغام ورته ورسوم.

مولوي احسان الله احسان وویل:" استاد سیاف ته ورشه ورته ووایه چې تاسي ته موږ د خپل مشر په سترګه ګورو، نه غواړو چې ستاسي سره جګړه وکړو، موږ ستاسي لارښوونو ته اړتیا لرو،موږ په حکومت نه پوهیږو، د حکومت کولو برخه کې ستاسي مرستې ته ډیره اړتیا لرو.

که تاسي (استاد سیاف) وسلې ته ضرورت لرئ، موږ طالبان چې څومره وسله لرو، ستاسي په واک کې یې درکوو. که تاسي پیسو ته اړتیا لرئ، موږ طالبان چې څومره پیسې لرو، هغه به تاسي ته وسپارو او که تاسي‌هر څومره شتمنۍ لرئ، هغه ټوله به مصؤن وي. مګر موږ یواځې په حکومت کې ستاسي لارښونو ته اړتیا لرو.

داسي هم نه ده چې تاسي د استاد رباني له حکومت څخه انقطاع وکړئ، بلکې یوې ګوښې ته شئ، همکاري ورسره مه کوئ."

ملا محمد رباني وویل:"حالت او کابل ته د ننوتلو لاره خرابه ده، استاد سیاف چې زه پېژنم هغه دا خبرې نه مني، هسي به مولوي روحاني ضایع شي."

مګر مولوي احسان الله صاحب ټینګار کاوه، چې باید د طالبانو پېغام استاد سیاف ته ورسوم.

---

[131] ما (لیکوال) ته دا شمیر (۷۰) ډیر ښکاري. والله اعلم

ما (روحاني ) هم وويل چې له مرګه نه ويريږم، ورځم، مګر زه څه ډول قانع شم چې تاسي ربښيتا هم دا کار کوئ. او استاد سياف ته ضرر نه رسيږي.

مولوي احسان الله وويل:"که تاسي ويره درلودله، دلته ډيری، زموږ ملګري (طالبان) د استاد سياف پخواني قومندانان ستا په شمول ناست دي، تاسي يې ساتنه په غاړه واخلئ، موږ خو به له تاسي سره جګړه نه کوو.

که خوست ته يې تاسي درسره بياست او يا پغمان کې اوسيږي، هر ډول چې د ده خوښه وي، هغه ډول ورسره کوو."

ما (روحاني) وويل چې زه يواځې استاد سياف ته نه ځم، نور دوه کسان (قومندان فضل احمد چې ميرام شاه کې د استاد سياف استازی و او قومندان مياجان نيازی) دي هم راسره ملګري وي.

د ميدان ښار د لارې چې کابل ته را ننوتلو، هرې پوستې ته چې به را ورسيدو، داسي تعامل مې ورسره کاوه لکه چې زه د دولت هيئت يم، د هغوی د احوال او ستونزو په اړه به مې پوښتنه وکړه،او بيا به مې ورته وويل چې ستاسي غوښتنې د حکومت مشرانو ته رسوم. په همدې طريقه تر کابل را ورسيدو.

باغ بالا کې استاد سياف ناست و، هلته ورغلو، له قومندانانو سره يې غونډه وه، د جمعيت اسلامي قومندان ملا شيرين مې وليد، هغه ته مې وويل چې تر استاد پورې مې ور ورسوه.

استاد سياف ته موږ درې ملګري ورغلو، ورته مو وويل:"طالبانو راليږلي يو، تا خو په خپل وخت کې موږ ته کله هم ډير موټر او وسلې رانه کړې،اوس وايه استاده! څومره ټانکونه او وسلې، څومره موټرې او څومره پيسو ته ضرورت لرئ؟ ميدان ښار کې د طالبانو ټوله قوه به پغمان کې درته تسليم کړو."

استاد سياف ويل چې داسي نه ده، مګر له ما سره دواړو ملګرو به شاهدې ورکوله چې همداسي طالبانو وعده کړې.

طالبانو داهم وويل چې زموږ نيت دا نه وو چې کابل ونيسو او حکومت وکړو، مگر اوس مجبوريت دی، خلک اميدونه لري او د حکومت لپاره د استاد سياف لارښونو ته اړتيا لرو.

استاد سياف ته مې خبرې له ښې مقدمې سره پيل کړي وي او په ترتيب مې ورته کولي، هغه ارام ناست و، غوږ يې نيولی و، زه په زړه کې خوشاله وم چې استاد سياف ته مې خبرو خوند ورکړ او دا پيغام به رد نه کړي.

استاد سياف زما خبرې تکرار کړي،چې همدا شيان ټول طالبان راته راکوي،او طالبان دومره باور لري، نو طالبان له ماڅخه څه غواړي؟

ومې ويل چې دا ځل د تسليمې خبره نه ده (تير ځل ناسته کې مې ورته ويلي و چې استاده! طالبانو ته خپل ټول نظامي تجهيزات تسليم کړه)، د استاد رباني له حکومت سره انقطاع هم نه ده، يواځې له حکومت څخه گوښه کېدل او همدلته يا هر ځای چې تاسي واياست هلته اوسيدل دي، تاسي د طالبانو د مرستي اعلان هم مه کوئ، د حکومت څخه د وتلو اعلان هم مه کوئ.

استاده! تاسي‌ته اسلامي نړئ اميدونه درلودل، اوس هم اميدونه درته شته،چې تاسي په دي لاره کې ډير څه وکړئ.

استاد سياف وويل چې طالبان داسي ښه فکر لري، ولي له موږ (استاد برهان الدين رباني) سره گډ حکومت نه جوړوي.

ومې ويل چې د طالب په ځای زه (روحاني) شم، هم شريک حکومت درسره نه جوړوم، زه خو ستا قومندان يم، مگر دا کار نه کوم، ځکه واک دلته ټول له دوستميانو او پخوانيو افغان کمونستانو سره دی، همدا ته هم دلته پرته له خپلو وسلوالو مصؤن نه يې، په دوستم باور نه لرئ.

استاد سياف وويل: ليک به درکړم، قلم او کاغذ يې را واخيست، ما ورته کتل هغه وليکل:

۱ – طالبان ولي له موږ (استاد رباني) سره ګډ حکومت نه جوړوي؟
۲ – طالبان څه غرض لري او هدف يې څه دی؟

ما (روحاني) د استاد سياف لاس ونيوی، ومې ويل چې زه ستا دکاغذ وړلو قاصد نه يم، ماته خبره وکړه. مګر استاد سياف راته خبره نه کوله. ومې ويل چې اوس اجازه راکوئ چې بيرته ولاړ شم او که مې بندي کوئ.

ولاړ شوم، استاد سياف تر لاس ونيولم، ويې ويل چې خفه شوئ؟ ورته مې وويل هو! ولي به نه يم خفه شوی، موږ پيغام درته راوړ، خوشاله وو، مګر تاسي منفي ځواب راکړ.

موږ ډير لوی اميد درلود، مګر تاسي ځان په جنجال کې اچوئ، افسوس راته راځي، ستا په حال افسوس کوم، دی وخت کې ما (روحاني) ته ژړا راغله.

استاد سياف وويل: ولي افسوس کوي. ومې ويل چې اوس درته نه وايم، استاد سياف اصرار وکړ چې خبره ورته وکړم. مګر نه مې کوله. ورته مې وويل که بيا ځل مو سره وليدل داخبره به درته کوم.

استاد سياف ډير ټينکار وکړ چې خبره راته وکړه.

ومې ويل چې استاده! تاسي د احمدشاه مسعود په څير ډير قومندانان روزلي او درلودل، احمدشاه مسعود زه پيژنم چې هغه څومره عملي جهاد کړی، يواځي د فرانسي رسنۍ وي چې د هغه په اړه يې تبليغات کول.

هغه ته ما (روحاني) فليپيني، ماليزيايې او چينايې مجاهدين ليږل، زه هغه ښه پيژنم، د مجاهدينو سرتاسري شورا کې يوځای وو.

افسوس دی چې اوس يې ته په خپل ځان مشر مني، نږدې وخت کې به داسي حالت درباندي راشي چې مسعود به تاته قومانده درکوي او ته به يې د سرګروپ حيثيت ولري[۱۳۲].

---

[۱۳۲] همداسي وشول، کله چې طالبانو کابل ونيو، استاد سياف له خپلو کم شمير جنګياليو سره يوځای له احمدشاه مسعود سره شمال ته وتښتېد، شمال کې د طالبانو ضد جګړې

د رخصت کیدو پر مهال استاد سیاف پیسو ته لاس کړ چې رایې کړي، وامې نه خیستلي او موږ ډیر خفه ورځخه روان شوو.

موږ بیرته له کابل ځخه په هغه چل ووتلو کوم چې د ننوتلو وخت کې مو د دوستم له وسلوالو سره کارولی وو. میدان ښار ته چې نږدې شو، بمبارد راباندي وشو، مگر الله ج بچ کړو.

کله چې د طالبانو مشرانو ته ورغلو، بیرته په همدې ورځ مو ځانونه ورسول، هغوی ټول هلته موجود وو او ملا مشر په میدان ښار کې و. کله چې طالب مشرانو ولیدو، زموږ ځیرې خړې پړې وي، خوشاله نه وي، ملامحمدرباني وخندل او

را باندي ږغ یې کړل چې ما درته ویل چې هغه یې نه مني."

---

عمومي قومانده له احمدشاه مسعود سره وه او استاد سیاف په اصل کې د احمدشاه مسعود د یو قومي قومندان حیثیت درلود.

کله چې احمدشاه مسعود ووژل شو، بیا هم ټول واک له محمد قسیم فهیم سره و او استاد سیاف د جگړې اړوند د مهمو پریکړو واک نه درلود.

د نومبر ۲۳مه ۲۰۱۹، ما (لیکوال) ته سید محمد گلابزوی وویل:"ماسکو کې مې له احمدشاه مسعود سره ولیدل، هغه زما ځخه وغوښتل چې د طالبانو په مقابل کې له دوی سره ملگری شم، ما ورته وویل چې څه ډول پر تاسي باور وکړم، زما نږدې ملگری اسدالله سروري (د خاد پخوانی مشر) له تاسي (شمال ټلوالې) سره بندي دی، تر ټولو لومړی هغه را خوشی کړئ بیا به وروسته خبري کوو.

مسعود وویل: استاد سیاف وایې چې سروري باید اعدام شي، هغه یې د خلاصون مخالفت کوي، ماته وایې د څه لپاره دي ژوندی ساتلي دی.

او دا زما (مسعود) مجبوریت دی چې د استاد سیاف درناوی وکړم، ځکه ټول جهادي رهبران زموږ (د حکومت) مخالف شول، یوازي همدا استاد سیاف را سره ملگری دی، هغه جنگیالي نه لري، ځانگړی قوت نه لري، خو له دي امله مې له ځان سره ساتلي چې جهادي رهبر دی."

د جولای ۱۹مه ۲۰۱۷، موږ (انجنير احمدشاه احمدزی، استاد محمد زمان مزمل، حاجي احمد فريد، استاد احمد وحيد مژده او استاد علام الدين اثير) مازديګر مهال په پغمان کې د استاد سياف په کور کې له هغه سره مجلس درلود، استاد سياف وويل: "د طالبانو ډله کې ملا عبدالسلام راکټي، ملا محمد غوث، ملا احمد الله نانی او نور يې ژوندي دي.

د استاد اکبر اکبر [133] ځای کې مو ورسره مجلس درلود، دوی ته مې وويل چې د ملک بچيان مه وژنئ، جنګ مه کوئ.

دوی وويل چې ته ورشه د طالبانو له مشرانو سره خبرې وکړه. قلعه حيدر کې مو خبرې وشوې، عبدالله وردګ[134]، شجاع الدين هم وو، د قران کريم ايتونه مو تلاوت کړل، اته نفري مجلس و، ماته وخت په وخت ټولې خبرې او د طالبانو هر څه پټ او ښکاره پلان رسيدی.

ملا محمد غوث اخوند دلته کابل کې و[135]، خيرن کالي يې و، کالي او هرڅه مو ورته ورکړل، د استاد رباني څخه مې د طالبانو لپاره پيسې ورته واخيستلې.

---

[133] استاد اکبر اکبر د جهاد پر مهال د استاد سياف مشهور قومندان، د حامد کرزي د حکومت پر مهال د کډوالو او راستنېدونکو چارو وزير و.

[134] عبدالله وردګ د جهاد پر مهال د جنوب لويديځې حوزې لپاره د استاد سياف د دفتر رئيس و، د استاد رباني د حکومت پر مهال کابل ته راغی، دنده يې درلودله، د شمال ټلوالې سره يوځای يې د طالبانو پر ضد جګړې وکړې، پر افغانستان د امريکا د حملې پرمهال له امريکايانو سره يوځای د طالبانو پر ضد يې جګړه کوله. د بُن غونډې د پريکړو پر اساس د حامد کرزي د حکومت پر مهال د شهيدانو او معيوبينو چارو وزير (ډسمبر ۲۰۰۱ تر ډسمبر ۲۰۰۴) و.

د لوګر والي (۱۹ جولای ۲۰۰۷ تر ۱۳ سپټمبر ۲۰۰۸) و، پغمان ته له کور سره نږدې، د سپټمبر پر ۱۳مه ۲۰۰۸، ور باندې د ماين چاودونه وشوه، له دوو ساتونکو او موټر چلوونکي سره يوځای مړ شو.

[135] ممکن هدف يې اميرمحمد اغا وي، ځکه ډير ځله ما(ليکوال) دا کيسه له استاد سياف څخه اوريدلي، وايې چې اميرمحمد اغا شپه را سره وکړه او سهار مې د طالبانو لپاره جامې،

طالبانو ته مې وویل چې تاسي څه غواړئ؟ حکومت غواړئ؟ دوی ویل چې نه، حکومت نه غواړو.

ورته مې وویل چې څهار اسیاب او کابل کې جګړه کوئ، حتماً حکومت کول غواړئ.

راشئ سوله وکړئ، د دوی منځ کې ځینو ویل چې نه.

ورته مې وویل چې له ماڅخه څه غواړئ؟ طالبانو ویل چې موږ ته تسلیم شه.

ورته مې وویل چې زه خلقي یم که پرچمی یم چې تاسيته تسلیم شم. خبرې توندي شوي، دوی ویل چې وسله دي راته راکړه.

طالبانو ته مې وویل چې د حزب وحدت سره زما جګړه د نوامیسو د ساتلو جګړه ده، آیا تاسيد خلکو د دفاع تضمین کولای شئ؟ خبرې بیرته نرمې شوي.

د مولانا فضل الرحمن په مشري ۱۵ تنه علما راغلل، هغوی ته مې کتابچه مخکې کیښودله، ورته مې وویل چې سلاح له صالحانو هم واخلئ، څه به پیښ شي، وليداکار کوئ، د څه لپاره یې کوئ. مولوي عبدالعلي دیوبندي او مولوي عبدالغني هم ور سره وو[۱۳٦]، یو حرف هم دوی جواب نه دی ویلی.

کوټونه او بوټونه هم ورته ورکړل. او یا ممکن چې ملا محمد غوث اخوند او حاجي امیرمحمد اغا دواړو هغه مهال له استاد سیاف سره لیدلي وي.

[۱۳٦] مولوي عبدالعلي دیوبندي د طالبانو عمومي مفتي و، هغه ملا محمد عمر مجاهد ته ډیر نږدې وي، د کندهار په جهادي مدرسه کې مدرس و. ما (لیکوال) ته د ملا محمد عمر مجاهد سلاکار مولوي وکیل احمد متوکل وویل:"ملا محمد عمر مجاهد راته ویلي و، دوه کسان، مولوي عبدالعلي دیوبندي او ملا نقیب الله اخوند، چې هر وخت او هر کله راشي، ماته به یې راولئ، ماته د هغوی د راتګ لپاره اجازه مه اخله، سمدستي یې د لیدو لپاره راوله."

مولوی عبدالغني صاحب په چمن کې یو له ډیرو پېژندل شوو عالمانو څخه دی.

مولانا فضل الرحمن ته مې وويل: د ميدان ښار تخت کوتل کې طالبان پراته دي، ورته ووايه چې جنګ نه کوم او تسليم کيږم هم نه. د کندهار دوه لارې ته زه نه يم درغلی، کور کې ناست يم، دوی راغلي. شريعت اجازه د دفاع لِنفسه راکړې. له دې حقه هم تير يم، چې دز يې راباندې‌نه وي کړی، ډز پرې نه کوم. ورشه طالبان پوه کړه. مګر طالبانو جګړه شروع کړه. زه چې له کابل او پغمان څخه وتلم، هرڅه راڅخه همدلته پاتې وو. "

٣ اپريل ١٩٩٦، په کندهار کې ١٥٠٠ علماوو فتوا ورکړه چې ملا محمد عمر مجاهد ته يې د اميرالموومنين لقب ورکړ او استاد رباني يې له حکومت څخه عزل وباله، له دې نوي پرمختګ سره نور طالبانو له کابل حکومت سره هر ډول مذاکره رد کړه.

٦ جون ١٩٩٦، د حرکت انقلاب اسلامي ګوند رهبر مولوي محمد نبي محمدي، د اسلامي حزب ګوند رهبر مولوي محمد يونس خالص، د نجات ملي اسلامي ګوند رهبر صبغت الله مجددي او د محاذ ملي اسلامي ګوند مشر پير سيد احمد ګيلاني د طالبانو له مشر ملامحمد عمر مجاهد سره کندهار کې وليدل او ويې ويل چې استاد رباني د ټولو بدبختيو مسؤل دی، دوی له واک څخه يې د رباني لرې کيدل وغوښتل.

انجنير احمدشاه احمدزی وايي:"د طالبانو د واکمنۍ پر مهال، له دوی د حاجي ناصري لمسی، زما قريب و، ماته يې زنګ وواهه چې که کوم خدمت طالبانو کې وي. زه هغه وخت لندن کې وم، ومې ويل چې له کوم مشر سره خبره کوم. د جمعې ورځ اختر محمد عثمانی [١٣٧] چې د کندهار د قول اردو قومندان و ټيليفون يې راوکی.

[١٣٧] ملا اخترمحمد عثماني د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د کندهار قول اردو قومندان و، پر افغانستان د امريکا له بريد او ملا دادالله تر مرګ وروسته، د طالبانو د هلمند عمومي نظامي مشر او د هلمند لپاره د طالبانو والي و. هغه د ډسمبر دريمه اونۍ ٢٠٠٦ کې د امريکا په هوايي بريد کې ووژل شو.

ویل یې ستاسي غوندي خلک باید راشي، دلته کار وکړي، ومی ویل چې تاسي خو ملایان یاست، الله ج په قران کریم کې فرمایلي:

فَإِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا.[۱۳۸] (سورهٔ نساء-آیهٔ ۵۹)

زما (احمدزي) که ږغ هم ثبتوئ، اجازه ده، که سیاف او ربانی د سولې خبرو ته کیناستل زه به ستاسي په ګټه باندی وږغیږم، زه به د دوی ټول نواقص بیان کړم. لندن کې یم، نه ستاسي او نه د دوی زور راباندی رسیږي، مګر د خدای ج له پاره دا وایم. کوم دلایل چې راسره دي، هغه به وایم، جنګ سم کار نه دی. راځئ سوله وکړئ.

د حاجي ناصري لمسي وویل: ستا پیغام به شورا ته ورسوو، بیا به بله جمعه ستا سره سړی وږغیږي. ما فکر وکړ چې تیر یې ایستلم (غلط) یې کړم، د راتلونکې جمعې ورځ بیا زنګ راغی، د مالي وزیر معتصم اغا جان و[۱۳۹]، ویې ویل ۲۸ کلن

---

[۱۳۸] ژباړه: که ستاسې تر منځ په کومه چاره کښې شخړه پېښه شي؛ نو هغه د الله او رسول لوري ته ور وګرځوئ، که رښتیا تاسې پر الله ﷻ او د اخرت په ورځ ایمان لرئ. همدا کار غوره او په انجام کې ډیر ښه دی.

[۱۳۹] معتصم اغا جان د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د مالیې وزیر او ملا محمد عمر مجاهد ته نږدې کس و، پر افغانستان د امریکا له برید وروسته، د طالبانو د مالي چارو کمیسون مشر، وروسته د سیاسي چارو کمیسون مشر و. په کراچۍ کې مرګونی برید (اګست ۲۰۱۱) ور باندي وشو، سخت ژوبل شو، د هغه وخت له ولسمشر حامد کرزي سره یې اړیکې درلودلې، د کابل وزیر اکبرخان روغتون ته را انتقال شو، وروسته ترکیې ته د افغان حکومت له خوا ولیږل شو.

معتصم اغا له طالبانو بېلې سیاسي هڅې پیل کړي، د اګست دوېمه اونۍ ۲۰۱۲ کې د طالبانو له خوا اعلامیه خپره شوه، چې معتصم اغا د دوی له ډلې وتلی دی.

د مارچ پر ۴مه ۲۰۱۳، معتصم اغا جان له بي بي سي سره د مرکې پر مهال وویل:" د سیاسي ګوند جوړولو په تکل کې یم."

ځوان يم، وزارت ماليه يې راته سپارلي. زه ورباندي نه پوهيږم، تاسي غونډي خلک چې راشي او دلته کار وکړي، ومي ويل ما مخکې عثماني صاحب ته وويل چې سوله وکړئ. بيا مې ده ته وويل: دا زه چې پکې اوسم، دي ځای ته څه وايې؟ هغه وويل لندن، ومي ويل په دي ځای کې د ډيرو هيوادو پاچاهي ګاني کښته پورته کيږي، نه والله که تاسي او نه استاد رباني په پاچاهي باندی پاتي شئ. ويل يې په دي پوهيږو، ومي ويل سوله وکړئ، په جنګ يې نه شئ ګټلای، ويې ويل څو ورځې وروسته به واوري چې له امو دريابه مو در تير کړل. ومې ويل چې مسعود جنګې سړی دي، دنيا ورسره ملګري ده چې يو کيلو متر ځمکه ولري در سره جنګيږي، دا کار مه کوئ. ويې ويل ته به يې واوري چې له امو مو تير کړل. بيا نو خبره خرابه شوه. "

استاد محمد زمان مزمل ما (ليکوال) ته د نومبر ۱۰مه ۲۰۱۶، وويل:"د طالبانو د بانک رئيس ملاعبدالرحيم اخوندزاده د پيښور کارخانو بازار کې د ګربز تجار دوکان ته ما پسې راغلی و، فکر کوم چې ملا محمد رباني اخوند به ورته ويلي و، هغه ډير ټينګ شو، چې زموږ (طالبانو) سره کار وکړئ، مګر ومې نه منله، کله چې له هغه دوکان څخه وتی، له لاس څخه يې ټينګ ونيولم، د دوکان مالک ګربز ته يې مخ ور واړاوو، بيا يې ورته وويل چې ۲۰ کاله وروسته به کوم بې عقل پيدا شي، وايې به چې طالبانو اخوانيانو ته د کار موقع نه ورکوله، دا دی ته شاهد يې چې مزمل صاحب ته ډير عذر کوم چې کار وکړي، خو دی يې نه مني او زموږ سره کار نه کوي.

مزمل صاحب وايې چې ما هغه مشر طالب ته وويل که د سولې کار وي، سمه ده، مګر د کومې جنګې ډلې سره کار نه کوم."

---

معتصم اغا سره د حامد کرزي له خوا مالي مرسته کيده او د ډاکټر غني د حکومت پر مهال يې هم له حکومت څخه مالي امتيازات تر لاسه کول.

د جولای پر ۴مه ۲۰۲۰، استاد محمد زمان مزمل ما (لیکوال) ته وویل:"موږ چې کندهار ته د ملا محمد عمر مجاهد لیدو لپاره ولاړو، هلته د کندهار والی ملا محمد حسن ډېر بد چلند را سره وکړ. له همدې امله موږ غوښتل چې مولوي جلال الدین حقاني له طالبانو را بېل کړو، هغه ته ورغلو، په هغه ورځ، د لوی کندهار طالبانو د ده کسان د کابل خیرخانې کوتل کې بې وسلې کړي او سپک کړي هم وو، ورته مو وویل چې طالبان د چا عزت نه لري، نه د چا احترام، ته دروند سړی یې په طالبانو کې دي عزت نشته، باور در باندي نه کوي او نه هم کومه وړه دنده درکوي، له ملګرتیا یې لاس واخله.

حاجي نعیم کوچی په میز ناست و، هغه وویل: استاده! موږ خو له طالبانو سره د چوکۍ په خاطر نه یو، یو ځای شوي، دنیا خو تیره شوه او تیریږي، موږ خو د اخرت په خاطر له علماوو او طالبانو سره یو ځای شوې یو، نه عزت ورځخه غواړو او نه چوکۍ، غواړو چې په ملګرتیا یې د خپل اخرت لپاره کار وکړو.
د حاجي نعیم کوچي همدي یوې خبرې زموږ ټولې هڅې ختمي او مولوي جلال الدین حقاني له طالبانو سره ملګری پاتې شو[۱۴۰]. "

[۱۴۰] حاجي نعیم کوچي د جهاد پر مهال د نجات ملي اسلامي ګوند قومندان او له روسانو سره یې جګړې کړي، هغه تر پایه له طالبانو سره ملګري وکړه، د حامد کرزي د حکومت پر مهال د امریکایانو له خوا (۱ جنوري ۲۰۰۳) ونیول شو، په سپین ژیرتوب کې د ګوانتانامو جهنمي زندان ته یوړل شو، له یو کال او ۹ میاشتې بند وروسته، د سپتمبر ۲۸مه ۲۰۰۴ کې له ګوانتانامو را خوشی شو.

د جون ۱۸مه ۲۰۲۰، د لوګر په ازره ولسوالۍ کې مړ شو. طالبانو د هغه د فاتحې د مراسمو لپاره په یاده سېمه کې ۵ ورځې نا اعلان شوی اوربند وکړ، ځینو حکومتي لوړ پوړو چارواکو هم وکولای شوای چې پرته له ویري د هغه فاتحې ته ازري ته ورشي.

## د طالبانو له خوا د کابل نیول کیدل

د طالبانو د وخت د معدن او صنایعو او بیا وروسته د برېښنا وزیر مولوي احمد جان [۱۴۱] په قطر کې د فبروري پر ۲۳مه، ۲۰۱۷ د کابل د نیولو په اړه ما (لیکوال) ته وویل:"کله چې د سروبي اړوند وریښمین تنګي کې جګړې شدت پیدا کړ، د مسعود ځواکونه له لویو توپونو او ټانکونو څخه په استفاده جګړه سخته او ګرمه ساتله، یوې ډلې طالبانو د ملا فاضل اخوند په مشرۍ د لته بند د لارې د ماهیپر او وربښمین تنګې تر منځ د سروبي مرکز ته مخه کړه، په سروبي کې د حزب اسلامي د مشهور قومندان زرداد [۱۴۲] وسلوال پراته وو، له طالبانو سره هغوی جګړه ونه کړه او سروبی په ډېره اساني سره طالبانو ونیوی، کله چې مسعود خبر شو چې وریښمین تنګې کې دده وسلوال په جګړه بوخت دي او سروبی په اساني سره طالبانو نیولي، هغه په وریښمین تنګې کې د خپلو ځواکونو په اړه له تشویش سره سره په دي

[۱۴۱] مولوي احمدجان د طالبانو د راپیدا کیدو په لومړیو وختو کې ور سره ملګری شوی و، هغه د مولوي نصرالله منصور د ګوند غړی و. د طالبانو د رسمي ورځپاڼې "شریعت اخبار " مسؤل و. د معادن او صنایع وزیر و، وروسته د بریښنا وزیر شو. پر افغانستان د امریکا له حملې وروسته، د اقتصادي ستونزو له کبله یې شخصي کار ته مخه کړه او په قطر کې د لویې ماشینري کار یې کاوه.

[۱۴۲] قومندان زرداد په سروبي کې د حزب اسلامي ډېر بې رحمه او زړور قومندان و، احمدشاه مسعود په ټول توان او نظامي قوت سره ونه شوای کولای چې له قومندان زرداد څخه سروبی ونیسي، د دوی ترمنځ سختې نښتې وشوې، د یو بل ډېر کسان یې سره ووژل. قومندان زرداد په غلا، وژنو او بېلابېلو جرمونو تورن قومندان و، له موټر چلونکو او مسافرو یې د جلال اباد –کابل په لویه لاره، د خپلې نظامي قرارګاه (سروبي) مخې ته په زوره پیسې او قیمتي مالونه وړل.

کله چې طالبانو کابل ونیو، زرداد بیا وروسته لندن ته ولاړ، ډېر کلونه هلته بندي و، د ډاکټر غني د حکومت پر مهال کابل ته راغی او بیا ځل یې په کابل کې د ځمکو پر غصب پیل وکړ، مګر له حکمتیار سره یوځای نه شو.

اندیښنه کې هم ولویدی چې د حزب اسلامي قومندان زرداد به له مسعود سره چل کړي وي او غواړي چې د مسعود ځواکونه طالبانو ته ژوندي په لاس ورشي، مسعود دا ویره هم درلودله چې کیدای شي زرداد د مسعود په نیولو کې له طالبانو سره مرسته وکړي. همهغه وو چې د حزب اسلامي او مسعود ترمنځ د بې باورۍ په نتیجه کې وربښمین تنګی هم په اساني سره طالبانو ونیوی او د همدې بې باورۍ له امله مسعود په ماهیپر کې هم د طالبانو سره د جګړې فرصت له لاسه ورکړه او یواځې د خپلو کسانو ژوندي ایستلو په اړه یې فکر کاوه، چې ډیر په تیزي او منډه سره له ماهیپر څخه هم ووتل.

مولوي احمد جان وايي چې د زرداد سربیره د هغه ملګري قومندانانو چمن او قلم هم جګړه ونه کړه او علت یې داسي ووایه:

کله چې زه (مولوي احمدجان) په پېښور کې د طالبانو د رسمي او محوري شریعت ورځپاڼې مسوول وم، هغه وخت کې غزنی لا هم  طالبانو نه و نیولی.

یوه ورځ زموږ د شریعت ورځپاڼې کوټې ته یو ببر سري سړي سر را  ښکاره کړ، ویې ویل چې مزار شریف ته کله د الوتکې پرواز دی[۱۴۳] ؟

زموږ یوه ملګري ورته وویل چې هغه پخواني خلک اوس دلته نه شته، دا سړی همداسي په بیړه بیرته روان شو، ملګري ته مې وویل چې دا خو ماته داسي ښکاره شو لکه چې زرداد به وي، هغه هم شکمن شوی و، زموږ ځای د پېښور د ګل حاجي پلازه [۱۴۴] په دویم منزل کې وو،  ژر پسې ور ولاړ شوم، چې کتل مې هغه په زینو کې لاندي منزل ته کښته شوی وو، د حزب اسلامي مشهور قومندان زرداد و، روغبړ مې ورسره وکړ، ورته مې وویل چې راځه راسره چای وڅښه، هغه ویل چې کار لرم

---

[۱۴۳] د شریعت اخبار همدغه دفتر پخوا د عبدالرشید دوستم د کسانو دفتر وو، چې له همدې ځایه یې مزار او شبرغان ته د  وسلوالو په تګ او راتګ کې اسانتیاوې برابرولې.

[۱۴۴] ګل حاجي پلازه چې د یو افغان له خوا جوړه شوې وه، د پلازې هټۍ او کوټې د افغانانو له خوا کرایه شوې وې، ډیرى پکې د مطبعو، مجلو، ورځپاڼو، کمپیوټرونو دفترونه وو، د سیاحتي (توریستي) شرکت هم یو دوه دفترونه پکې موجود وو.

او ځم، زه ډېر ورته ټینګ شوم، زرداد مې یو ډول مجبوره کړ چې بیرته زموږ دفتر ته راسره وخیږي، هلته چې کیناستو، حتی مخکې له دی چې راسره اطاق / دفتر ته راشي، هغه پوه شو چې موږ طالبان یو او دا هغه وختونه دي چې د حزب اسلامي مشر ښاغلي حکمتیار د طالبانو سره د جګړې جواز ورکړی وو او په کندهار کې د طالبانو او حزب اسلامي د وسلوالو تر منځ جګړې شوې وي، دا ډول د غزني په روضه کې هم دحزب اسلامي له خوا د طالبانو سره  د جګړې تیاری نیول کیدی، په داسي حال کې چې طالبان د غزني له والي قاري بابا سره په خبرو بوخت وو چې غزنی په سولییز ډول طالبانو ته وسپاري.

موږ (طالبانو) همدلته د شریعت اخبار په یوه اطاقیز دفتر کې زرداد ته شین چای مخکې کیښود او د طالبانو د تحریک د اړتیا او پیداکیدو په اړه مو معلومات ورته ورکړل، دا  ډول مو د حزب اسلامي له خوا د طالبانو سره د جګړې په اړه هم ورته وویل چې نه باید جګړه وشي، کوم اهداف چې مجاهدینو درلودل، د همهغه اهدافو لپاره طالبان را ولاړ شوې دي، ځکه مجاهدین په خپل منځې جګړو کې بوخت او اهداف ورڅخه پاتې شول.

له لنډ مجلس وروسته قومندان زرداد وویل چې دلته بحث نه کیږي، خو زه ژمنه کوم چې تر خپل وسه به ستاسي سره جګړه نه کوم، تاسي سبا شپه زما میلمانه شئ، هلته به بیا خبرې وکړو.

مولوي احمد جان وایي چې زښت زیات خوشاله شوم چې موږ ته یې سبا ماښام د ډوډی لپاره بلنه راکړه، تر څو د بحث او خبرو لپاره زیات وخت ولرو، له موقع څخه په استفاده مې ورته وویل چې بیا نو قومندان چمن او قومندان قلم هم سبا ماښام را وغواړه، زرداد ومنله او سبا ماښام د هغه کور ته موږ څو تنه طالبان ورغلو.

رښتیا هم زرداد دواړه؛ چمن او قلم هم راغوښتي وو، بیا مو هم د طالبانو د تحریک او مشرانو په اړه هغوی ته خبرې وکړي، هغو ته مې وویل: د طالبانو مشران پخواني مجاهدین دي، د طالبانو هدف د هیواد له تجزیې ژغورل او اسلامي نظام

ته کار کول دي، دا ټول له مدرسو او مسجدو را ولاړ شوې طالبان دي چې د مجاهدینو پاتې کار بشپړ کړي.

له بحث وروسته قومندان زرداد، چمن او قلم درې واړو ژمنه وکړه چې که له طالبانو سره په جګړه کې مخامخ شي، نو له طالبانو سره به جګړه نه کوي او تر پایه هم زرداد په خپله ژمنه ودریدی.

کله چې طالبانو غزنی ونیوی، د میدان ښار په لور په روضه کې د حزب اسلامي قوي مرکز و[۱۴۵]، د همدې مرکز د ساتنې او طالبانو د پرمختګ د مخنیوي لپاره د حزب اسلامي وسلوال له چهار اسیاب او سروبي څخه هم روضې ته ورغلل، د قومندان زرداد وسلوال هم وو، مګر هلته زرداد له طالبانو سره جګړه ونه کړه او له جګړې څخه په شا شو، طالبانو په اسانۍ سره روضه ونیوله او د میدان ښار په لور یې پرمختک وکړ، همدا ډول زرداد په سروبي کې د طالبانو له خوا د کابل د نیولو پر مهال له طالبانو سره جګړه ونه کړه او په خپله ژمنه تر پایه ودریدی. "

"د حزب اسلامي او شورای نظار د پخوانیو دښمنیو او تربګنیو له امله وو چې د حزب اړوند بدنام قومندان زرداد په سروبي کې له طالبانو سره جګړه ونه کړه، سروبی یې طالبانو ته پریښود او د مسعود ځواکونه په وریښمین تنګي کې محاصره پاتې شول، زرداد دا ډول مرسته وکړه لکه چې د کندهار په نیولو کې د جمعیت اړوند قومندان ملا نقیب الله له طالبانو سره کړي وه، مسعود د حزب پر ملګرتیا نور هم بې باوره شو، د جګړې له لومړۍ کرښې د چورلکو په واسطه له خپلو لوړ پوړو جنرالانو سره وتښتیدی، کابل ته راغی، له دې ځایه یې له کابل څخه د جمعیت اسلامي د مشر استاد رباني او حکمتیار د وتلو لپاره پلان ونیوی، د چورلکو پواسطه جبل السراج ته ولاړل، حکمتیار یې بغلان ته رخصت کړ، ویل کیږي چې دوستم د

---

[۱۴۵] په غزني کې د حزب اسلامي د همدې مرکز قوماند د قومندان سرور خان په غاړه وه، هغه په ۲۰۰۹ کال کې ما (لیکوال) په کابل کې ولید، ویې ویل:"زما مجاهدینو له طالبانو سره جګړې ته زړه نه ښه کاوه."

حکمتیار لپاره بغلان ته د تګ په لاره کې تابیا نیوله چې له منځه یې یوسي، مګر حکمتیار بیا په چورلکه کې ولاړی، بیا وروسته د شمال ټلوالې مشران تاجکستان، ازبکستان او ایران ته ولاړل.

په شمال کې د جګړو په وخت بیا وروسته د اهل تشیع مشران استاد خلیلي او محمد اکبري په بامیان کې د طالبانو له خوا محاصره وو، خلیلي ته په وخت د استاد سیاف له خوا چورلکه ورواستول شوه، مګر استاد محمد اکبري [146] پاتې شو او طالبانو ته تسلیم شو." سید داوود اغا

د طالبانو د شریعت ورځپاڼې مسوول، د معادن او صنایع  او بیا وروسته د بریښنا وزیر د میزان پر ۳مه او ۴مه ۱۳۹۵ ل. کال د کابل د نیولو په اړه په لاندې ډول معلومات ما (لیکوال) ته راکړل:

"د طالبانو په لاس د کابل تر نیولو مخکې دوه ځله نور هم طالبانو د کابل نیولو ناکامه هڅه کړې وه، دواړه وارې د کابل ښار ځنډو ته طالبان رسیدلي وو، خو بیا وروسته یې ماتې خوړلې وه.

---

[146] استاد محمد کریم خلیلي: کله چې عبدالعلي مزاري مړ شو، خلیلي د حزب وحدت ګوند د یوې شاخې مشر او استاد محقق د بلې شاخې مشر شو، وروسته دواړه یو ځای او د طالبانو ضد یې جګړې وکړې. پر افغانستان د امریکا د حملې پر مهال دواړه له امریکا سره ملګري شول. د کابل تر نیولو وروسته دواړه سره جلا او هر یو د بېل بېل ګوند مشران شول.

محمد کریم خلیلي د ولسمشر حامد کرزي دویم مرستیال (۷ډسمبر ۲۰۰۴ تر ۲۹ سپټمبر ۲۰۱۴) و، د ډاکټر غني د حکومت پر مهال د سولې عالي شورا (٦ جون ۲۰۱۸ تر دې مهاله) رئیس دی.

استاد محمد اکبري د حزب وحدت ګوند د مرکزي شورى مرستیال مشر و، د بامیان ولایت اوسیدونکی دی، کله چې د سپټمبر ۱۳مه ۱۹۹۸، طالبانو بامیان ونیو، هغه محاصره کې پاتې او طالبانو ته تسلیم شو.

پر افغانستان د امریکا له حملې وروسته، محمد اکبري د ولسي جرګې دوو دورو (۷ډسمبر ۲۰۰۵ تر ۲۰ مئ ۲۰۱۹) غړی پاتې شو. او د حزب حراست اسلامي په نوم سیاسي ګوند یې جوړ کړ.

۱ – په کابل د لنندر او چار اسياب د لاري حمله (۱۹ مارچ ۱۹۹۵ ل کال) وشوه، د طالبانو نظامي ډلې د کابل ښار تر دهمزنگ څلور لاري پوري را ورسيدلي، د حزب وحدت مشر عبدالعلي مزاري او د هغه مشهور او ظالم قومندان شفيع ديوانه ونيول شول. دا رنگه د هزاره گانو په سيمه کې په کانتينرو کې د ځينو قومونو اړوند د وژل شوو ميرمنو لوڅ جسدونه هم پيدا شوې وو.

د طالبانو د جگړي قومندان ملا يار محمد اخوند د احمدشاه مسعود د ځواکونو له خوا ژوندی ونيول شو.

اصل کې د استاد عبدالعلي مزاري په مشري د حزب وحدت قومندانانو له طالبانو غوښتې وو چې کابل ته را ننوځي او دوی ورسره مرسته کوي، ربښتيا هم د حزب وحدت وسلوالو په خپلو سيمو کې له طالبانو سره جگړه ونه کړه، ځکه هغوی د مسعود سره د سختو جگړو له امله غوښتل چې مسعود په طالبانو باندي مات کړي[۱۴۷].

د حزب وحدت قومندانانو له طالبانو سره چل وکړ، هغوی ته يې هغه سيمې ونه ښودلي چې د احمد شاه مسعود د ځواکونو په لاس کې وي، نا خبره طالبان چې د حزب وحدت وسلوالو ډاډ ورکړی وو، په ناخبرې او پرته له چمتووالي څخه د احمدشاه مسعود د ځواکونو ساحې ته ننوتل، د طالبانو د جنگيالو عادت داوو چې تر ټولو مشهور او لوړ پوړی قومندان به د جگړې پر مهال تر ټولو نورو مخکې روان و، همهغه و چې د جگړې عمومي قومندان ملا يار محمد اخوند هم د مسعود د ځواکونو په جال کې ولويدی او ژوندی ونيول شو.

کله چې د طالبانو نظامي مشر ونيول شو، بيا د طالبانو او حزب وحدت تر منځ هم بې باورې راغله او جگړه پيل شوه، استاد عبدالعلي مزاري او قومندان شفيع

---

[۱۴۷] ۱ اپريل ۱۹۹۶ کې د حزب وحدت او طالبانو ترمنځ تړون وشو چې د حزب وحدت د مشر عبدالعلي مزاري د وژلو څيړنه به کوي، د حزب وحدت سيمو ته ترلې لاري به طالبان خلاصوي او په کابل ښار به د مسعود په مقابل کې گډه حمله.

دیوانه غوښتل چې د ریشخورو فرقي د لاري د چهار اسیاب په لور وتښتي، خو د ریشخورو فرقي سیمه کې طالبانو هغوی ونیول.

د مارچ ۱۳مه **۱۹۹۵**، طالبانو غوښتل چې عبدالعلي مزاري او ور سره دوه نور قومندانان، له لوګر څخه کندهار ته یوسي، د غزني ولایت اړوند مقر سیمه کې د شفیع دیوانه له خوا د جګړې له امله، په چورلکه کې دوه ساتونکي طالبان ووژل شول، چورلکه د غزني ښار ته نږدې کیناستلو ته اړ شوه، د بلې ډلې طالبانو له خوا عبدالعلي مزاري د تیښتې په حالت کې ووژل شو او شفیع دیوانه په تیښته بریالی او بامیان ته ولاړی[۱۴۸]."

---

[۱۴۸] ملا عبدالسلام ضعیف په خپل کتاب ( طالبان له کندهاره تر مزاره) په ۱۰۷مه او ۱۰۸مه پاڼه کې لیکلی: "عبدالعلي مزاري چې د کابل څخه تښتېدلي و، په میدان ښار کې د تیښتې په وخت کې په داسي حالت کې چې په یوه شخصي موټر کي سپور و د تحریك د ځواکونو لاس ته ورغی. مزاري لا وار له مخه د طالبانو سره د خپل مخالفت اعلان کړی و.

تر نیولو وروسته مزاري د طالبانو د مشرتابه د هدایت سره سم کندهار ته انتقال کیدی، له دي امله چي هغه د یوه تنظیم مشر و د طالبانو له خوا د هغه لاسونه تړل سوي نه و. د میدان ښار څخه هغه د محدود طالبانو په بدرګه په چورلکه کي کندهار ته په لاره کي د طالبانو د باور او غفلت څخه استفاده وکړه، مزاري د خپل مشهور قومندان شفیع دیوانه چي د ده سره په چورلکه کي یو ځای و لاسونه خلاص کړل، هغه په ناڅاپي توګه له یوه طالب څخه وسله واخیستله، په هواء کي یې په چورلکه کي دننه پر امنیتي طالبانو ډزي وکړي، په ډزو کي د چورلکي پیلوټ هم ټپي سو، مزاري او ورسره قومندان یي پیلوټ دي ته اړ کړ چي د غزني ولایت د جنډې په سیمه کي بیړنۍ ناسته وکړي، پر ځمکه د چورلکي د ناستي سره سم دوی تیښته وکړه، غوښتل یي چي د هزاره جات سیمي ته ځان ورسوي، دا چي چورلکي د کابل – کندهار لویي لاري ته نږدې ناسته کړي وه او پر دغه لار به همیش د طالبانو ځواکونو تګ راتګ کاو، یوي وړې ډلي تیریدونکو طالبانو د چورلکي یو ناڅاپه کښته کیدل د طالبانو ویشتل او د مزاري او ورسره قومندانانو تېښته ولیدله، داچي طالبانو عبدالعلي (مزاري) او د هغه ملګري د ځغاستي او تیښتي په حالت کي ولیدل، پرته له دي چي نوموړی وپیژني چي څوك دی، هغوی یي د ډزو هدف وګرځول، مزاري او ملګري یې په ډزو کي ولګیدل او ووژل شول."

وحيد مژده ما ( ليکوال) ته وويل:"د عبدالعلي مزاري اړوند د استاد رباني د حکومت پر مهال د بهرنيو چارو وزير (۱۹۹۴ -۱۹۹۶ ز کال) دکتور نجيب الله لفرايي ما (مژده) ته وويل چې د مزاري د مرگ مسؤليت جنرال خدايداد هم لري، دی (لفرايي) وايي چې په کابل کې د ايران د هغه وخت سفير له احمدشاه مسعود سره وليدل او ورته يې وويل چې عبدالعلي مزاري د طالبانو له خوا محاصره کيږي، غواړي چې هغه د کابل له لاري مزار ښار ته ولاړ شي، نور به تاسي ته هم خطر نه وي، مسعود هوکړه وکړه، سفير وويل چې سبا سهار به اته بجې د ايران سفارت موټران عبدالعلي مزاري د ده له ځايه د کابل ښار په لور راولي او بيا به يې مزار شريف ته رسوي، تاسي (مسعود) خپلو کسانو ته لارښوونه وکړئ چې د ايران سفارت موټران تر بريد لاندي رانه شي. مسعود موافقه وکړه، خپلو ټولو کسانو ته يې وويل چې د دهمزنگ له لوري کوم موټران د ښار په لور راځي، مزاحمت ورته مه کوئ. لفرايي وايي چې سبا سهار مې هرڅومره په مخابره کې او په کورني ټليفون هڅه وکړه، د ايران سفير جواب نه راکاوو، وخت رانږدې کيدی، د ايران سفارت ته ورغلم، ساتونکې ويل چې سفير ويده دی، له انتظار وروسته مې چې سفير ته دروازه ورخلاصه کړه، د اطاق منځ کې و، ومې ويل چې مزاري ستاسي په انتظار دی، سفير ويل چې ولي؟ څه خبره ده؟ باالکل يې هغه د پرون ماښام خبره چې له مسعود سره شوې وه، نه يې منله، ويل يې چې ما د مزاري د راوتلو وعده نه ده کړي، همهغه و چې مزاري د طالبانو لاس ته ورغی او بيا د حوت په ۲۲مه ۱۳۷۳ کې د طالبانو له خوا ووژل شو."

ملا يارمحمد اخوند د احمد شاه مسعود د وسلوالو له خوا مسعود ته وروستل شو، په داسي حال کې چې استاد سياف او مسعود يو ځای ناست وو.

د استاد سياف زوی ښاغلي حبيب الرحمن [۱۴۹] د مارچ ۱۳مه ۲۰۱٦ د يوې ناستې پر مهال ما (ليکوال) ته وويل:" استاد سياف نه غوښتل چې له طالبانو سره جگړه

[۱۴۹] مولانا حبيب الرحمن اپريل ۲۰۱۹ کې د ولسي جرگې غړی شو.

وکړي، کله چې لومړی ځل کابل کې د احمد شاه مسعود په لومړیو کرښو طالبانو حمله وکړه، هغه وخت استاد او مسعود یوځای سره ناست وو، قسیم فهیم په مخابره کې پر مسعود برغ وکړ چې څه وکړو، مسعود به استاد سیاف ته وویل چې څه وکړو، درې ځله فهیم غوښتنه وکړه او مسعود به د استاد خبرې ته منتظر و، بالاخره جنګ ونښت او جګړه وشوه[۱۵۰]، د مسعود کسانو ملا یار محمد اخوند[۱۵۱] ژوندی نیولی و، هغه یې مسعود ته راوست، نیول شوی د طالبانو مشر استاد د جهاد له وخت څخه پېژندی، استاد چې ولید ډېر خفه شو، ورته یې وویل چې بد وضعیت خو به نه وي درسره شوی، هغه ورته وویل چې ستاسې وسلوالو زما د لاس ساعت راڅخه خلاص کړ. سمدستي یې د (ملا مشر اخوند) تړلي لاسونه ورته خلاص کړل او استاد سیاف خپل د لاس ساعت ورته ورکړ، هغه ته یې وویل چې دا زما ساعت په لاس کړه، مسعود ته یې وویل چې دی به بندیخانې ته نه؛ بلکې میلمستون ته لیږئ، بیا یې جبل السراج کې د مسعود میلمستون ته واستاوی، وروسته تبادله شو، استاد پېغام په لاس ورکړ چې که ممکن وه سوله وشي، خو هغه بیا د غزني والی شو او بیا په جګړه کې ووژل شو[۱۵۲]."

مولوي احمد جان وویل:"دویم ځل په کابل د طالبانو برید (اکتوبر ۱۹۹۵) د مسعود ځواکونو د سخت هوایي بمبارد او د طالبانو د لومړۍ کچې نظامي قومندان ملا مشر د وژلو له امله له ماتې سره مخ شو.

۲ –دا ځل طالبانو د خورد کابل له لارې د مسعود پر ځواکونو حمله وکړه، طالبان تر پلچرخي سیمې پورې ورسیدل، د مسعود د هوایي قواوو له خوا تر سخت بمبارد

---

[۱۵۰] ښکاري چې احمدشاه مسعود د استاد سیاف په مشوره له طالبانو سره جګړه پیل کړې.

[۱۵۱] ملا یارمحمد اخوند د جهاد پر مهال د اتحاد اسلامي (استاد سیاف) قومندان و. له طالبانو سره ملګری او د لومړي لیکو قومندان و، د هرات والی و، وروسته د غزني والي و، په غزني کې د جګړې د لومړۍ کرښې څخه د لیدو پر مهال په مرمۍ ولګید او مړ شو.

[۱۵۲] د طالبانود واکمنۍ پر مهال د غزني والي و، غوښتل یې چې د جګړې لومړۍ کرښه له نږدې ووینې، د قره باغ ولسوالي اړوند سیمه کې د طالبانو د مخالفو وسلوالو (حزب وحدت) له خوا له ډېر لرې په مرمۍ وویشتل او ووژل شو.

لاندي راغلل، طالبان شاتګ ته مجبوره شول او د خاکجبار سیمه کې یې د جګړې عمومي قوماندان ملا مشر هم ووژل شو.

د کابل د نیولو درېمه طرحه ملا بورجان اخوند [۱۵۳] وړاندي کړه، که څه هم خپله مخکې د کابل له نیولو ووژل شو، خو طرحه یې په کامیابۍ سره عملي او کابل د طالبانو له خوا په ډېره اسانۍ سره ونیول شو.

۳ – د ملابورجان اخوند طرحه داسي وه چې د خوست ولایت او د جلال اباد سپین غر سیمه ونیول شي، د حصارک غلجي د لاري به جلال اباد نیسي او ورپسي به کنړ او لغمان ولایتونه د طالبانو له خوا نیول کیږي، بیا به همداسي د ورښمین تنګۍ او ماهیپر سیمې تر کنټرول لاندی راولي او کابل ته به ننوځي.

البته له دي سره هم مهاله به د میدان ښار، لنندر، چهار اسیاب او خوردکابل سېمو څخه هم طالبان د کابل د نیولو بریدونه پیل کوي."

مولوي فضل محمد فیضان د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د سوداګرۍ مرستیال وزیر د میزان میاشتې پر ٦ مه ۱۳۹٦، ما (لیکوال) ته وویل:"د جلال اباد ښار تر نیولو وروسته، د جلال اباد قصر کې د طالبانو د مشرانو ناسته وشوه، د ناستې ګډونوال حاجي ملا

---

[۱۵۳] ملا بورجان چې خپل نوم یې ملا امین الله و، د کندهار د پنجوایې ولسوالۍ په تلوکان کلي کې په ۱۹۵۸ز کال کې پیدا شوی.

له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال د کندهار د طالبانو په جبهه کې نوموتی مجاهد و، د مجاهدینو د خپلمنځي جګړو پر مهال پر کور ناست و. کله چې طالبان را پیدا شول، په لومړي وخت کې ملا بورجان ورسره ملګری، ځکه هغه د ملا محمد عمر د جهاد د وخت ملګری و.

د ملا یارمحمد او ملا مشر تر مرګ وروسته، ملا بورجان د طالبانو د لومړۍ کرښي عمومي نظامي قوماندان و.

د کابل نیولو جګړې پر مهال، ملا بورجان اخوند د سپتمبر ۲٦مه ۱۹۹٦ په ورښمین تنګې کې د احمدشاه مسعود وسلوالو سره د جګړې پر مهال ووژل شو.

محمد رباني اخوند، مولوی احسان الله احسان، ملا بورجان اخوند، ملا دادالله اخوند، ملا عبدالقهار فقير، زه ( فيضان ) او ځيني نور مشران وو، ځينو مشرانو ويل چې طالبان ستړي شوي، په کار ده چې دمه وکړي، ملا بورجان اخوند ويل چې دښمن وارخطا دی، کنړ او لغمان نيسو او همداسي وريښمين تنګې کې د سروبي او کابل د نيولو لپاره جګړې ته دوام ورکوو."

طالبانو د کابل پر لور جګړې ته دوام ورکړ، د طالبانو د جګړې عمومي قومندان ملا بورجان اخوند په وريښمين تنګي کې د احمد شاه مسعود د ځواکونو له لوري په مرمۍ ولګېد او ووژل شو.

مولوي احمد جان وايي:"په وريښمين تنګي کې د ملابورجان له مرګ وروسته ملا عبدالرزاق اخوند د ماهيپر په لور او ملا فاضل اخوند د لته بند لور ته د جګړو مشرۍ په غاړه درلودله، نور قومندانان لکه ملا عبدالسلام راکټي او ملا دادالله هم دجګړې په لومړيو کرښتو کې موجود وو.

ماهيپر [۱۵۴] او لته بند [۱۵۵] ته چې طالبان ورسيدل جګړه سخته شوه، ډير طالبان هم ووژل شول، د ماښام لمانځه وروسته د احمد شاه مسعود د ځواکونو د جګړې کرښه ماته شوه، طالبان د شپې ناوخته ۱۰ يا ۱۱ بجې کابل ښار ته ننوتل."

د سپټمبر پر **۲۶**مه د شپې مهال يو شمير طالبان د کابل ښار څنډو ته له ماهيپر، دارالامان، ميدان ښار او نورو لارو ورسېدل او د شپې ناوخته يوه ډله طالبان د کابل ارګ ته ننوتل او د مسعود پاتې ځواکونه د خيرخانې کوتل د لاري په بشپړ ډول سره له کابل څخه د شپې مهال ووتل، سهار د رڼايي سره سم (۲۷ سپټمبر ۱۹۹۶) کابل ښار ته له هر لورې څخه په ډلو ډلو نظامي طالبان ننوتلي وو.

[۱۵۴] ماهيپر: له سروبي څخه کابل ته د غرونو په منځ کې لنده ننوتلي لاره ده.

[۱۵۵] لته بند : له سروبې څخه لږ اوږده خو په اواره کې کابل ته ننوتلي لاره ده.

مولانا عبدالرزاق فتاحي، د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د سوداګرۍ وزیر وايي:"موږ د حاجي رازمحمد خاکسار [۱۵۶] په مشري ۱۲ تنه د سپتمبر پر ۲۶مه د دهمزنګ دلاري ارګ ته د شپې څه باندي ۱۲ بجې / د سپتمبر ۲۷مې پېلېدو سره راغلو او بیا وروسته په همدې شپه کې د خیرخانې کوتل ته ولیږل شوو، هلته د خیرخانې تر کوتل لاندي په دوه لارې کې موږ ناست وو، لیدل مو چې د احمد شاه مسعود وسلوال د شمال په لور تیښته کوي، مګر یواځي نندارہ مو کوله، د چا مخه مو نه نیوله.

کوم ټانکونه چې هلته ولاړ وو، ویرینګ یې ورته شارټ کړی وو او مرمۍ یې پکې ځای په ځای کړي وي، چې طالبانو به چالان کړ، ټانک به اور واخیست، دوه ټانکونه وسوځېدل.

۵۵مې فرقې ته په قصدي ډول سره د مسعود د وسلوالو له خوا اور اچول شوی وو، چې همهلته د خیرخانې کوتل سره نږدې پرته ده، تر سهاره د مسعود پلویان وتښتیدل او سهار بیا طالبان د خیرخاني کوتل سر ته ور وختل."

د میزان پر ۵مه ۱۳۷۵، د شپې مهال طالبان کابل ته ننوتل. کابل د سرپرستۍ شورا، چې ملا محمد رباني یې مشر و او ٦ (ملا محمد حسن، ملا محمد عباس اخوند، مولوي سید غیاث الدین، ملا محمد غوث او ملا فاضل) نور غړي یې درلودل، اداره کیدی او د طالبانو مشر ملامحمد عمر مجاهد ۹ میاشتې وروسته د جون میاشتې پر ۱۰مه ۱۹۹۷ کابل ته راغی، چې سفر یې پټ و.

[۱۵۶] د طالبانو نظامي قومندان و، یو بل کس په همدي نوم ملا خاکسار بیا د کورنیو چارو مرستیال وزیر و.

## د طالبانو په لاس د کابل د سقوط ځینې لاملونه

د طالبانو په لاس د کابل نیول، سمه ده چې طالبان وايي دا د ملابورجان طرحه وه، چې د مسعود ځواکونه وارخطاء وو، ولي دا هم مهمه ده چې په جلال اباد او لغمان کې د طالبانو سره د جګړې په لومړیو کرښو کې مقابله ونه شوه، د هغه وخت د استاد رباني د حکومت د دفاع وزیر ښاغلی وحیدالله سباون [157] د لغمان د سرخاکان د تور غر په سیمه کې له خپلو وسلوالو سره د طالبانو د مقابلې لپاره راوتلي وو، هغه ونه شوای کولای چې خپلو وسلوالو ته د طالبانو سره د جګړې لپاره مورال ورکړي.

دحزب اسلامي د هلمند مشهور قومندان او د حامد کرزي د حکومت پر مهال په ولسي جرګې کې په لومړۍ او دویمه دوره (ډسمبر ۲۰۰۵ تر مئ ۲۰۱۹) کې وکیل معلیم میرولي وايي:"موږ هم د سباوون صاحب ملګري وو، له طالبانو سره د جګړې لپاره د تور غر سیمې ته ولاړو، سباوون صاحب د قوماندې مشر و، خو هغې سیمې ته راسره نه ولاړ.

کله چې به د طالبانو ډاډسن په سړک ولیدل شوه، زموږ سره ټانګونه وو، خو زموږ ملګرو به ورځخه تیښته کوله. موږ وروستي کسان وو چې د طالبانو څخه د وریښمین تنګې / سروبي په لور مو حرکت وکړ، ځکه چې زموږ ټانک خراب و، په بل ټانک مو چالان کړ او د طالبانو ډاډسن موټري مو لیدلي، خو موږ ته یې موقع راکړه چې ولاړ شو."

[157] کله چې ښاغلي حکمتیار دویم ځل (۲۶ جون ۱۹۹۶) لومړی وزیر شو، دفاع وزارت هم ده ته ورکول شو او حکمتیار د دفاع وزارت لپاره وحیدالله سباوون وټاکه، مګر عملاً د دفاع وزارت چارې احمدشاه مسعود کنټرولولې.

انجنیر وحیدالله سباوون د جهاد پر مهال د حزب اسلامي مشهور قومندان و، په کونړ کې له قومندان کشمیر خان وروسته، سباوون صاحب ډیر مشهور قومندان و.

له احمدشاه مسعود سره د حزب اسلامي د جګړې پر مهال له حکمتیار سره په چهار اسیاب کې و، کله چې چهار اسیاب طالبانو ونیو، سباوون ایران ته وتښتید، هلته یې له شمال ټلوالې سره اړیکې جوړې او د طالبانو پر ضد له احمدشاه مسعود سره یوځای شو.

کلونه د مسعود او حکمتيار ترمنځ جنګونه وشول، د دوی ترمنځ د ۵ کلونو جګړو په ترڅ کې، د نړيوالو رسنيو د راپور پر بنسټ، نږدې ٦۰۰۰۰ کسان ووژل شول، نه خو مسعود کابل په بشپړ ډول تر کنټرول لاندې راوست او نه هم ښاغلي حکمتيار.

د حکمتيار او مسعود ترمنځ جګړو کې د کابل ښار ډيرکورونه ړنګ شول، د بيا ودانولو په وخت کې په ځينو کورونو کې د انسانانو مړي او جسدونه پيدا شول، ځکه د جګړو په وخت کې له کورونو د کورنۍ د ټولو غړو وتل مشکل وو، هغوی چې د کور ساتنې لپاره به په کور کې پاتې وو، هغه به همهلته پکې ووژل شول.

طالبانو هم جګړې وکړې، دهمزنګ او پلچرخې ته به ورسيدل، خو د کابل په نيولو به قادر نه شول.

مولوي احمد جان وايې:" کابل ځکه د جلال اباد له خوا په اساني ونيول شو، د کابل اداري لپاره يوازينۍ مهمه لاره چې ورته خلاصه وه، د ننګرها او تورخم لاره وه چې دولت خپل اکمالات له همدې لارې کول[158]، په ځانګړي ډول د الوتکو، ټانکونو او وسايطو لپاره تيل، ممکن له شمال څخه به هم تيل کابل ته راوړل کيدل، ولي هغه لاره اوږده وه، کله چې ننګرهار طالبانو ونيوی، د کابل د هغه وخت واکمنو روحيه له لاسه ورکړه.

دا ډول د ننګرهار اکثره قومندانان له طالبانو سره ډير مضبوط ودريدل، که طالبانو ۱۰ زره وسلوال کسان لرل، د لوی ننګرهار نږدې ۲۰ زره وسلوال نور ورسره ملګري شول، د دوی په ډله کې ځينې قومندانان او ډيری يې په جګړه پوه کسان وو[159].

[158] کابل ته د شمال له خوا هم لاره خلاصه وه، مګر ډيره اوږده او که د منځنۍ اسيا څخه کوم خوراکي توکې لکه غنم، اوړه، تيل او غوړي به کابل ته راوړل کېدل، سوداګرو ته به ګرانه تمامېدل او کابل ته را رسيدو يې وخت هم نيوی.

[159] له امريکايانو سره د طالبانو د جګړو پر مهال، چې کله به طالبانو ځينې سيمې د افغان حکومت څخه ونيولې، د هغې سيمې او کليو خلک به له طالبانو سره ملګري او ډيرو به

د حزب اسلامي ځینو قومندانانو له طالبانو سره مرسته وکړه، دکابل نیول یې اسانه کی، یو پکې قومندان زرداد وو، کله چې طالبانو د تور غر د لاري په سروبي حمله وکړه، قومندان زرداد پرته له مقاومت څخه سروبی طالبانو ته پریښود.

چې سروبی ونیول شو، احمدشاه مسعود وډار شو، چې زما د نیولو او زمور د ملګرو د محاصره کولو لپاره تاکتیک دی، مسعود او مهم ملګري یې د چورلکو پواسطه وتښتیدل او د جګړي ډګر یې پریښود.

د کابل اداري څومره کسان چې ورښمین تنګې کې له سروبې لاندي (د لغمان په لور) جنګیدل، هغوی هم مقاومت پریښود، د محاصري څخه وبیریدل او د غرونو او مختلفو لارو وتښتیدل، سپمه یې طالبانو ته پریښودله، طالبانو ته نوره هم اسانه شوه چې د تنګې د لارې هم سروبي ته راوخیږي.

همدا د جمعیت اسلامي او حزب اسلامي ترمنځ چې سروبي کې کومه بې باوري پیداشوه، د ننګرهار له خوا د جګړې لومړۍ کرښه ماتیدل او داډول د میدان ښار او لوګر له خوا هم په کابل باندي د طالبانو حملې، ټول هغه څه وو چې د مسعود کسان وتښتیدل او کابل ته د طالبانو د ننوتلو لاري خلاصي شوي.

اساسي لامل د کابل د سقوط د ملابورجان طرحه او د حزب او شورای نظار یو پر بل بې باورې ګنلای شو. "

---

یې وسلې واخیستې، د طالبانو په لیکو کې به د امریکا/ناټو او افغان حکومت پر ضد جنګېدل.

# د ملا بورجان اخوند وژل کېدل

د طالبانو د جنګې کرښو د لومړۍ کچې قومندان ملا بورجان د مرګ په اړه ډول ډول اوازې اورېدل شوې دي، له مختلفو کسانو څخه ما ( لیکوال) په دي اړه معلومات وغوښتل، د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د ملا محمد عمر مجاهد نظامي سلاکار، اوسمهال د طالبانو د قطر د سیاسي دفتر غړي ملا عبدالاحد جهانګیروال د میزان ۴مه، ۱۳۹۵ راته وویل چې د ملا بورجان اخوند د هغه وخت له ژوندي پاتې شوو ملګرو سره یې اړیکه نیولي او هغوی دا ډول معلومات ورکړي: "د ملابورجان اخوند ملګری حاجي طالب چې د کندهار د پنجوایي ولسوالي د تلوکان اوسیدونکی دی او ملارحمت الله وردګ، چې همدا دواړه د پېښې پر مهال له ملا بورجان اخوند سره ملګري وو، دوی وایې چې د ټانک مرمۍ ولګیدله او ملابورجان پري زخمي او ووژل شو.

محب الله اخوندزاده چې په ایوب اخوندزاده سره مشهور و، د کندهار د شاولیکوټ اوسیدونکی دی، دا مهال د طالبانو له خوا د جوزجان ولایت مشر / والي دی، هغه وایي:"د میزان ۵مه، ۱۳۷۵، موږ په جلال اباد کې ښار کې وو، ملا بورجان اخوند وویل چې ځانونه د لغمان دوراهی ته ورسوئ، ۱۲ بجې وي ملابورجان راغی، د ورښمین تنګي لپاره یې تشکیل [۱۶۰] وکړ، هغه وویل چې تاسي مخکې درځئ او زه ټانکونه له شا درپسې در روانوم، په ورښمین تنګي کې د مسعود له قواوو سره جګړه پیل شوه، او ملا بورجان اخوند خپله هم د جګړې ډګر ته را رسیدلی و، ډیر ژر وخت کې د رود له هغې غاړي د غره له سره، د راکټ پیر وشو او د پیکا وسلي درلودونکی هم هلته د هغه راکټ ویښتونکي سره یو ځای وو.

د راکټ یو ډول ځانګړي نسبتاً کوچنۍ مرمۍ وي، همدا مرمۍ ملا بورجان اخوند ته نږدې ولګیدله، د مرمۍ یوه پرزه راغله، د ملابورجان اخوند په ستونې کې ولګیدله،

---

[۱۶۰] تشکیل: هغه طالب قومندانان په نښه کول چې د جګړې لومړۍ کرښې په لور به له خپلو وسلوالو سره یو ځای حرکت کوي او هغوی ته د جګړې او برید ځای ور ښودل.

هیڅ حرکت یې نه دي کړي، سمدستي را واوښت، د اکمالاتو مسوول ملا محمدرحیم اخوند په غیږ کې ونیو او پور ( ځاه یې وتلي وه) یې پرې کړی وو، څادر مو پرې واچاوی، تر پول لاندي مو کېښود، چې نور ملګري خبر نه شي.

محب الله اخوندزاده وایي:"د ملا بورجان اخوند تر مرګ وروسته ملاعبدالرزاق اخوند [۱٦۱] د جنګ مشر شو، ماښام مهال سروبي ته ورسیدو، د ماهیپر او تګاب خواوو ته تشکیلات وشول، د نغلو په لور زه د جګړې د کرښې مسوول وم او د ماهیپر په لور ملا رحمت الله اخوند چې د زابل ولایت د سیوري ولسوالي اوسیدونکی و، هغه د جګړې مسوول و، چې بیا وروسته ووژل شو. د چهار اسیاب له خوا د جګړې مشرې صدر محمد ابراهیم [۱٦۲] کوله او د سروبي له نیولو سره یو ځای ملا محمد رباني اخوند هم را رسیدلي و. زموږ سره نظامي طالبانو شپه په ماهیپر کې وکړه، سهار وختي د میزان پر ٦مه کابل ته ور ننوتل."

مولوي احمد جان وایي:"د طالبانو مشران به د جګړې پر مهال تر نورو مخکې وو، تر ملا بورجان اخوند مخکې هم داسي شوې چې د طالبانو مهم قومندانان د سختو جګړو پر مهال ژوندي پاتې شوې، خو بل ځای بیا وژل شوې، ملا مشر اخوند د میدان ښار په سختو جګړو کې ونه وژل شو، خو کله چې طالبان د کابل پلچرخې ته را ورسیدل او بیرته شاتګ ته مجبوره شوو، هغه په خاکجبار کې ووژل شو، مولوي احسان الله احسان بیا په مزار شریف کې ووژل شو. یواځې ملا بورجان نه و چې د کابل د نیولو پر مهال ووژل شو، بلکي شاوخوا ۸۰ تنه طالبان ووژل شول.

تر ملا بورجان مخکې او وروسته د طالبانو ځینې مهم قومندانان او مشران وژل شوې.
لکه ملا عبدالخالق، ملا رحمت الله، ملا محمد، ملا یارمحمد، ملا مشر، ملا معاذ الله، ملا خان محمد، ملا محمد نعیم، مولوی احسان الله، ملا محمد جهادوال او نور."

---

[۱٦۱] بیا وروسته د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د کورنیو چارو وزیر شو.

[۱٦۲] صدر ابراهیم، پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته، چې کله ملا عبدالقیوم ذاکر د طالبانو د نظامي کمیسون له مشرې لرې شو، پر ځای یې صدر ابراهیم وټاکل شو او ډیر وخت د طالبانو د نظامي کمیسون او جګړې مسؤل و.

## د ډاکټر نجیب الله وژل کېدل

د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د سوداګرۍ وزیر، د ګوانتانامو ۴ کلن بندي مولاناعبدالرزاق فتاحي وايي:" لومړي ځل موږ ۸ نفره طالبان د حاجي راز محمد خاکسار په مشري د دهمزنګ د لارې کابل ته داخل شوو او بیا ارګ ته د شپې څه باندي ۱۲ بجې ور ننوتلو، د ارګ په دروازه کې یو دانه ټانک هم ولاړ و. لومړی موږ ټولو د ارګ په چمن کې الله ج ته د شکرانې په موخه د قران کریم تلاوت وکړ او د کابل د نیولو د شکرانې دعاوې مو وکړې، موږ ډېر وږې شوې وو، د ارګ هغه دفتر چې ولسمشر به پکې کیناستې بند و، زموږ یوه ملګري یې یوه شیشه ور ماته او میوه یې ورڅخه را واخیستله او ګردو ملګرو همدلته وخوړله.

ملااسلام راکټي چې د جلال اباد له خوا له خپلو وسلوالو سره کابل ته راننوتلی وو، په همدې شپه کې ارګ ته راورسید [۱٦٣].

زموږ یوه ملګري وویل چې ډاکټر نجیب الله هم دلته نږدې دی، راځئ چې ورشو، موږ غوښتل چې هلته د هغه دلیدو لپاره ورشو، نه د هغه د وژلو لپاره، لږ وروسته یو بل طالب ارګ ته راغی، ویې ویل چې طالبانو ډاکټر نجیب الله وژلی (د شپې ناوخته، د سپټمبر۲۷مې۱۹۹٦د پیل لومړی وخت) او جسد یې د اریانا په چوک کې ځړولی دی[۱٦٤]."

که څه هم کابل ته د ننوتلو قومانده د ملابورجان وروسته د ملاعبدالرزاق په لاس کې وه، چې بیا وروسته د کورنیو چارو وزیر شو، خو جوته نه ده چې ډاکټر نجیب الله به د هغه په امر وژل شوې وي او یا به ځینې طالبانو خپلسرې کړې وي.

---

[۱٦٣] له دریو جبهو ( ماهیپر، لوګر او میدان ښار) څخه په کابل د طالبانو برید وه.

[۱٦٤] په افغانستان او نږدې سیمه کې عام خلک د ورځې پیل صبح صادق / سهار چې سپیدي ښکاره شي، ګڼي. مګر په عیسوي تاریخ کې چې کله د شپې دولس بجې پوره شي، همدا ورځ ختمه او د شپې له دولس بجې وروسته بله ورځ حسابل کیږي.
مولانا عبدالرزاق او ملګري یې د سپټمبر پر ۲٦مه ورځ، د شپې څه باندي ۱۲ بجې ارګ ته ورغلي وو، چې د عیسوي تاریخ په حساب د سپټمبر ۲۹مه کیږي.

ډاکټر نجیب الله کیدای شي په دي ډاډه و چې طالبان پښتانه دي او وبه یې نه وژني، ولي ځینې طالبان بیا دلیل وړاندي کوي چې سمه ده چې ډاکټر نجیب الله پښتون و، خو هغه هم چې کله د خاد/استخباراتو رئیس و[۱۶۵]، ډېرى پښتانه یې شهیدان کړي وو، بل داچې د کابل تر نیولو مخکې طالبانو د ژبنې تعصب نه کولو اړوند فرمان صادر کړی وو. او تر ده له مخه د اهل تشیع د حزب وحدت ګوند مشر عبدالعلي مزاري هم د یوې پیښې له امله وژل شوی و.

پخواني طالب چارواکي حاجي رحمت [۱۶۶] د میزان ۴مه ۱۳۹۵ ما (لیکوال) ته وویل:"د ډاکټر نجیب الله د مرګ کیسه اغا راته کړي، هغه وویل چې زه (اغا)، مجاهد او حاجي اغا له ارګ سره نږدې د ملګرو ملتونو دفتر ته ور ننوتلو، موږ چې کله د ډاکټر نجیب الله کوټې ته ورغلو، هغه راته وویل؛ ښه شو چې کابل ته راغلاست، کابل مو ونیوی؟ حاجي اغا ( طالب) ورته وویل، هو! کابل مو ونیوی.

ډاکټر نجیب الله پوښتنه وکړه چې ملامحمد عمر او ملامحمد رباني اخوند څنګه دي؟ ښه دي؟

حاجي اغا (طالب) ورته وویل، هغوی ښه دي او تاسي یې غوښتي یاست.

ډاکټر نجیب الله هم له لږ مشاجرې وروسته ومنله، له اطاق څخه راکښته شو، د ملګرو ملتونو د دفتر د باندي زموږ (طالبانو) بایپور / ډاډسن موټر ولاړ و، په موټر

---

[۱۶۵] ډاکټر نجیب الله د کمونسټ پلوه افغان رژیم وروستی ولسمشر (۳۰ سپټمبر ۱۹۸۷ تر ۱۶ اپریل ۱۹۹۲)، مخکې له ولسمشر کیدو د مرکزي کمیټې (۴ مئ ۱۹۸۶ تر ۱۶ اپریل۱۹۹۲) مشر او له دي مخکې (۱۱ جنوري ۱۹۸۰ تر ۲۱ نومبر ۱۹۸۵) د هغه وخت د استخباراتو (خاد رئیس و.

[۱۶۶] حاجي رحمت، اغا، مجاهد او حاجي اغا مستعار نومونه دي. د افغانانو د کلتوري نزاکتونو له کبله یې اصلي نومونه دلته نه دي یاد شوې.

کې مو سپور کړ، کله چې د اریانا څلورلارې [۱۶۷] ته را ورسیدلو، موږ (طالبانو) ورته وویل چې راکښته شه، ډاکټر نجیب پوه شو، نه کښته کیدی، هغه قوي سړی و، یوه طالب د توپانچې ډز پرې وکړ، په بغل کې یې وویشت، بیا مو را کښته کړ او هلته مو په هغه شپه کې په اریانا چوک کې وځړاوه او ومو واژه."

د یو مشر طالب احمد [۱۶۸] له خولې چې ما (لیکوال) ته یې وویل:"د ډاکټر نجیب الله د لاس ساعت، ډیرو طالبانو د کندهار له یوه طالب سره په هغه نږدې ورځو او تر دوو کلونو پورې وروسته هم لیدلی و."

د ډاکټر نجیب الله د مرګ په اړه د طالبانو ځینو مشرانو اندیښنه درلودله چې که ډاکټر نجیب الله ووژل شي، د خلقیانو وژلو ته به خلک پلمې پیداکړي او داکار به په ځینو ځایو کې وشي.

حاجي رحمت ما (لیکوال) ته وویل:"ملا اسرایل اخوند وویل چې له ملا فاضل اخوند سره کندهار ته ولاړم، کله چې ملامحمد عمر مجاهد ته ورغلو، هغه ملا فاضل اخوند ته وویل چې تاسي ته چا وویل چې ډاکټر نجیب مړ کړئ؟؟!"

---

[۱۶۷] اریانا څلور لارې د اریانا هوټل څیرمه، ارګ او د هغه وخت د ملګرو ملتونو دفتر ته نږدې ځای ده. پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته، د امریکا د افغانستان برخې د سي آی اې لومړي مرکز او دفتر همدا ځای و، اوس مهال (جولای ۲۰۲۰) کې هم په یاد هوټل کې د سي آی اې مامورین اوسیږي.

طالبانو ارګ ته نږدې د امریکا د سي آی اې مرکز (اریانا هوټل) باندې (۲۵ جون ۲۰۱۳) برید وکړ، د امریکایې پوځیانو په یونیفورم او ورته مرمۍ ضد موټرانو کې یې دې مهم ځای ته ځانونه را رسولي وو، هلته چې هیڅ دولتي لوړ پوړی چارواکی هم پرته د ارګ او امریکایې مسؤلینو له اجازې پرته نه شي ورتلای او په کابل کې تر ټولو د امنیت له اړخه مهمه او د ګڼو پوځیانو له خوا ساتل کیدونکې سیمه ده. په همدې سیمه کې د ولسمشر ځانګړې امنیتي کسان هم د امنیت ساتلو په موخه ولاړ وي او د هر شي څارنه په ډیر دقت سره کوي. د طالبانو موټر برید او څو ساعته جګړه کې د سي آی اې کسانو ووژل او ژوبل شول.

[۱۶۸] احمد مستعار نوم دی.

حاجي رحمت وويل:"ملامحمد حسن اخوند چې د کندهار والي و، د کابل تر نيولو وروسته د سرپرستۍ شورا مرستيال او د بهرنيو چارو وزير و، هغه په کندهار کې د خپل ولايت په وخت کې ويل چې کابل ونيول شي په اوله ورځ بايد ډاکټر نجيب الله ووژل شي، داسې نه شي لکه تورن اسماعيل خان چې ونه وژل شو او ژوندی وتښتيده[١٦٩]."

ملاعبدالرزاق اخوند د کورنيو چارو وزير، د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د هيواد ورځپاڼې سره په مرکه کې ويلي و:"د ډاکټر نجيب الله د وژلو پريکړه په کندهار کې علماوو کړي وه او کله چې کابل ته داخليدو، په هغه مازديګر مور ټولو طالب مشرانو د هغه د وژلو پريکړه وکړه[١٧٠]."

ولي داسې اسناد او شواهد نشته چې په کندهار کې دي د ډاکټر نجيب الله د وژلو پريکړه علماوو کړي وي او داچې د جګړې په حالت کې به طالب مشرانو کابل ته تر ننوتلو مخکې د ډاکټر نجيب الله د وژلو پريکړه کړي وي، څومره به قانع کوونکی ځواب وي؟ داچې د ملامحمد عمر مجاهد مرستيال ملا محمد رباني اخوند هم په دغه وخت کې د جګړې په لومړۍ کرښه کې طالب مشرانو ته

---

[١٦٩] تورن اسماعيل خان چې د طالبانو سره يې سختې جګړې وشوې، په چل او فريب سره جنرال مالک له ځان سره ملګری کړ، فارياب کې يې د ميلمستيا پر مهال ونيو او بيا يې د طالبانو سره د ښه نيت له کبله، د غويي ۲۸مه ۱۳۷٦ طالبانو ته ژوندی وسپاره، هغه له طالبانو سره تر يو کال زيات بندي و، چې وروسته د هلمند اوسيدونکې حکمت الله چې د طالبانو په ليکو کې و او د هغه د ساتلو دنده يې په همدې شپه درلودله، د خپل پلار برازو استاد په مرسته له زندان څخه وتښتاو او ايران ته واوښتل. کله چې تورن اسماعيل خان د امريکا تر حملې او طالبانو د نظام تر نړيدو وروسته د هرات والي شو، په لومړي وخت کې حکمت الله خان د هغه سره ليدل شوی و، خو وروسته هغه په مرموز ډول فکر کيږي وژل شوی او بيا چا ونه ليد. برازو استاد امريکايانو ونيوی، ګوانتانامو زندان ته يې يوړ، هلته مړ شو او بيا يې مړی د سور صليب له خوا کابل ته راوړل شو.

[١٧٠] د ملاعبدالرزاق دغه ادعا تر ډيره سمه نه بريښي.

لاربښوونې کولي، که د ډاکټر نجيب الله د مرگ په اړه مشوره شوې وي او يا ناسته شوې وي، بيا به د ملا محمد رباني دريځ څه ډول و؟ دا هم مهمه پوښتنه ده.

د ملا عبدالسلام ضعيف [۱۷۱] له انده د ډاکټر نجيب الله په وژنه کې عجله شوې او د انتقام بڼه ښکاري، هغه وايي: "زه په دې عقيده يم چې د مظلومو افغان شهيدانو د کورنيو د غړو له خوا به ډاکټر نجيب الله د انتقام سره په ډيره عجله مخامخ شوی وي، کيدلای شي چې د هغو شهيدانو اولادونو د ده په وژنه کې تلوار کړی وي، کوم چې د ډاکټر نجيب الله په امر (کله چې د خاد رئيس و) په شهادت رسيدلي وو.

حقيقت دادی چې د طالبانو مشرانو د ده د وژلو سره مخالفت هم نه درلودی او نه هم ډاکټر نجيب الله چا د لمانځه د مسلي (مصلی) څخه را ولاړ او مړ کړی، لکه دده د خاد د مشرتوب په وخت کې چې ډير مسلمانان د لمانځه څخه راولاړ شوي او بيا شهيدان شوي او ژوندي تر خاورو لاندي ښخ شوي." ۱۵۰مه پاڼه، طالبان له کندهاره تر مزاره

---

[۱۷۱] ملاعبدالسلام ضعيف: ديني زده کړې يې په کور دننه او بيا وروسته د هجرت پر مهال په افغاني مدارسو کې کړې، د جهاد پر مهال يې د حرکت انقلاب اسلامي اړوند د طالبانو جبهه کې جهاد کړی، هغه وخت هم د ملا محمد عمر مجاهد سره ملگری پاتې شو، د طالبانو د نظام پر مهال د دفاع وزارت اداري رئيس، د ترانسپورټ لوی رئيس او په اسلام اباد کې سفير پاتې شوی، د پاکستان له خوا په اسلام اباد کې په خپل کور کې ونيول شو، امريکايانو ته وسپارل شو، بگرام زندان ته يوړل شو او بيا وروسته يې په گوانتانامو کې ۴ کلونه زندان تير کړ.

د افغان بنسټ مشر دی او دغه بنسټ اوسمهال افغان پوهنتون، افغان ښوونځی، افغان مدرسه او افغان مجله او افغان ږغ راډيو لري.

د سولې په هڅو بوخت دی، په بېلابېلو کورنيو او نړيوالو د سولې اړوند ناستو کې يې گډون کړی، د کندهار ولايت د پنجوايي ولسوالي د کندلانو سيمې اوسيدونکی دی، اوسمهال د کابل په بگراميو ولسوالي کې استوگن دی.

ځيني کسان دا دليل هم وړاندي کوي چې کله د افغان کمونستانو له خوا د سردار داوود خان د حکومت پر ضد کودتاه وشوه، هغوی داوود خان او د هغه د کورنۍ غړې پرته له محاکمې په ارګ کې ووژل او هغه وخت ډاکټر نجيب الله د افغان کمونستانو د مهمو څيرو څخه ګڼل کيدی. دوی وايې که خبره د محکمې شي، نو بيا خو په کار ده چې د داوود خان د وژلو پوښتنه هر وخت د افغان کمونستانو څخه وشي، چې ولي يې هغه پرته له محاکمې د خپلي کورنۍ له غړو سره يوځای په ارګ کې شهيد کړ.

ډاکټر عبدالرحمن د هوانوردي وزير، د شورای نظار د سياسي چارو مسؤل وويل:"د کابل د دفاع له پاره ښه جنګ روان و، فکر نه کيدی چې کابل ته به طالبان په اسانه داخل شي، مازديګر مهال احمدشاه مسعود په مخابره کې راته وويل چې استاد رباني خبر کړم چې زموږ قوتونو پر شاتګ کړی او له کابل څخه د جبل السراج لور ته بايد ولاړ شو.

متوجه شوم چې نظامي خطونه ماتيږي، استاد رباني او حکمتيار چې په خيرخانه کې په سمڅه کې وو، هغوی مې خبر کړل، د خپلو کالو د ټولولو وخت مې پيدانه کی، د اسنادو بکس مې را واخيست. هغه نفر چې د نجيب سره د ملاقات مسؤل و، هغه مې نجيب ته واستاوی د ملګرو ملتونو دفتر ته تر څو هغه خبر کړي چې موږ له کابل څخه وځو که زموږ سره دی هم ځي. هغه نفر له نجيب سره ملاقات وکړ، ډاکټر نجيب ورته ويلی و او ماته يې پيغام راوليږی چې ستونزه نشته، زه له تحولاتو او موضوع څخه باخبره يم، داچې څه به کيږي په جريان کې يم. که چيرته ډاکټر عبدالرحمن له کابل څخه نه وځي، مطمئن اوسئ چې هغه تضمين کولای شم.

ډاکټر عبدالرحمن وايې نجيب فکر کاوه چې په راتلونکې نظام کې به اساسي رول ولري او بيا به په واک کې شريک شي.

د نجيب ميرمن هم په يوه مرکه کې بی بی سی ته ويلی وو چې خاوند يې د عمر په وروستيو ورځو کې ورسره اړيکه نيولي وه او مطمئن ښکاريده." ۵۴ او ۵۵مه پاڼه، علل سقوط

## د ډاکټرنجیب الله د وژلو پړه

کله چې حضرت صبغت لله مجددي د کابل واک د اپریل ۲۸مه، ۱۹۹۲ ز کال کې په لاس کې واخیست، د مجاهدینو لومړی ولسمشر شو، هغه پخوانیو خلقیانو او پرچمیانو ته عمومي عفوه وکړه، که چیرته ډاکټر نجیب الله په یاده عفوه کې شامل وای، ولي هغه ته د مجددي په دوه میاشتنۍ واکمنۍ کې د ملګرو ملتونو له دفتر څخه د وتلو او بهر ته تللو اجازه ورنه کړل شوه[172].

[172] په داسي حال کې چې د پرچم ډلې ډیری مشران د احمدشاه مسعود په شتون کې، لا هم په کابل کې په واک کې پاتې او په لوړو دندو یې کار کاوه.

دفاع وزیر جنرال رفیع هم د دوستم ملیشو له خوا راګرځول شوی و، ویل کیږي چې د استاد سیاف په سپارښتنه اجازه ورکول شوه چې بهر ته ولاړ شي.

دارنګه عبدالرشید دوستم، نبي عظیمي، اصف دلاور او بابه جان د کابل کنټرول په لاس کې نیولی و.

داچې په کابل کې ډیر واک له پرچمیانو سره و، د پرچم ډلې عبدالحق علومي له ځینو خلقیانو غوښتي و چې په ګډه د مسعود او جمعیت اسلامي پر وړاندي بله کودتاه وکړي.

د اپریل **۲مه ۲۰۲۰**، ما (لیکوال) ته ګلابزوی وویل:"کله چې احمد شاه مسعود (شورای نظار) کابل ته داخل شول، د نورالحق علومي مشر ورور جنرال عبدالحق علومي هغه وخت د جنرال هاشم خان کور ته ورغلی و، له هغه یې غوښتي و چې د شورای نظار په مقابل کې کودتاه کې خلقیان له پرچمیانو سره ملګري شي او د نظام واګې بیرته په خپل لاس کې واخلي، علومي ورته ویلی و چې ډاکټر نجیب ډیر لوی خیانت وکړ، چې استعفی یې وکړه او واک یې شورای نظار ته تسلیم کړ.

داچې جنرال هاشم خان د شاه نواز تنې له ناکامې کودتا وروسته د ډاکټر نجیب الله له خوا بندي شوی و او د نجیب د حکومت د سقوط پر مهال تازه له زندان څخه راوتلي و، علومي ته یې ویلي و چمتو نه دی چې کودتاه وکړي.

بیا څو ورځې وروسته علومي د خپل کور سره نږدې د مسعود د وسلوالو له خوا په رڼا ورځ ووژل شو."

تر مجددي وروسته استاد رباني د مجاهدینو د حکومت دویم ولسمشر و، د هغه په څلور کلنه دوره کې هم ډاکټر نجیب الله ته د ملګرو ملتونو له دفتر څخه د وتلو او بهر ته تللو اجازه ور نه کړل شوه.

ویل کیږي چې احمد شاه مسعود د هغه د ژوندي پاتې کیدو کوشش کړی و او له کابل څخه د وتلو پر مهال یې ډاکټر نجیب ته خپل کسان لیږلي وو چې له دوی سره یوځای شمال ته ولاړ شي[۱۷۳]، پوښتنه داده چې ولې یې ډاکټر نجیب په خپله څلور کلنه واکمنۍ کې ازاد نه کړ، ولې یې هغه ته د ملګرو ملتونو له دفتر څځه د وتلو او بهر ته تللو اجازه ورنه کړه او کله چې مسعود پنجشیر ته دتلو تابیا نیوله، کولای یې شوای چې ډاکټر نجیب یې ازاد کړی وای او هغه په خپله خوښه له هیواده وتلی وای او یا یې د هغه درانه قوم احمدزیو ته تسلیم کړی وای، چې خپل پلرني ټاټوبي پکتیا او یا بل خوندي ځای ته یې بیولی وای، که بیا طالبانو د هغه د وژلو تصمیم درلود، نو د محاکمو له لارې به یې د هغه محکمه کړې وای.

داچې د حکمتیار او مسعود ترمنځ جګړو کې ډیر وخت کابل د واک په جزیرو ویشلی وو، ډیر کمزوری حکومت و، چې پر ټول کابل ښار یې هم تسلط نه درلود، که هغه وخت د ملګرو ملتونو دفتر له خوا تصمیم نیول شوی وای چې ډاکټر نجیب

---

[۱۷۳] احمدشاه مسعود د نورمحمد تره کي د واکمنۍ پر مهال د خاد رئیس اسدالله سروري (اپریل ۱۹۷۸ تر سپټمبر ۱۹۷۹) چې له مئ ۱۹۹۲ راهیسي له دوی سره بندي و، پنجشیر ته ور سره بوت.

د ډسمبر ۲۵مه ۲۰۰۵، د حامد کرزي د حکومت پر مهال لومړۍ محکمې یو کال بند سزا ور کړه، د فبروري پر ۲۵مه ۲۰۰٦، استناف هغه ته د اعدام سزا واوروله او په ۲۰۰۸ کال کې هغه ته سترې محکمې د ۱۹ کاله بند سزا ورکړه.

اسدالله سروري د ډاکټر غني د حکومت پر مهال، په زندان کې له ۲۵ کلونو تیرولو وروسته، جنوري ۲۰۱۷ کې خوشی شو.

الله له هیواده بهر وباسي، دا کار شونی و، داچې ملګرو ملتونو ولې داسي یو کار ونه کړ، دا مهم سوال دی.

ډاکټر نجیب د خپل واک په ورستیو وختو کې او بیا وروسته غوښتل چې له کابل څخه ووځي، عامل یې څوک وو چې دلته وساتل شو، په ټوله کې بیا هم ځواب دادی چې عبدالرشید دوستم په ۱۳۷۱ ثور میاشت کې د ډاکټر نجیب الله له هیواده د وتلو مخه د احمد شاه مسعود په خوښه ونیوله او بیا وروسته تر ۱۳۷۵ل.کال پوري هم په کابل کې د استاد رباني او مسعود په غوښتنه د ملګرو ملتونو دفتر کې نظر بند وساتل شو.

که ډاکټر نجیب الله د آی ایس آی په غوښتنه او خوښه طالبانو وژلي وي، نو بیا پوښتنه دا پیداکیږي چې حضرت صبغت الله مجددي، استاد رباني او احمد شاه مسعود به ډېر آی ایس آی ته نږدې وو که طالبان؟ هغه استاد رباني چې د خپلې واکمنۍ په لومړیو ورځو کې یې د آی ایس آی برحاله مشر جنرال حمید ګل ته د ده (استاد رباني) د سلاکار کیدو وړاندیز کاوه، د دومره نږدې اړیکو پر بناء بیا داهم ممکن وه چې جنرال حمید ګل د ډاکټر نجیب الله وژل او له منځه وړل ورڅخه غوښتې وای او که چیرته آی ایس آی له استاد رباني څخه غوښتي وي چې ډاکټر نجیب الله ته له کابل څخه د وتلو اجازه ورنه کړي، دا هم ځکه نه شي منل کیدی، ځکه د استاد رباني په وروسته وختو کې د پاکستان او کابل اړیکې ډېرې یو له بل سره خرابې وې، بیا هم ولې ډاکټر نجیب الله په کابل کې د مرګ تر ورځې پورې شورای نظار او جمعت اسلامي نظر بند وساتی او د هغه غاړه یې په لوی لاس د طالبانو چاړې ته پریښودله.

مهمه پوښته داده چې ډاکټر نجیب الله خو د روسانو لپاره کار کاوه، د هغوی نږدې ملګری و [۱۷۴]، ولې روسانو د هغه د خلاصون اړوند ملګرو ملتونو کې شکایت ونه کړ،

---

[۱۷۴] ۱۳۶۸ کال د روسانو له وتلو وروسته د (قرارګاه قومنداني) د اعلی مسلح قواو غونډه چې مرسیتال ولسمشر، د مسلحو قوتونو وزیران او نور ذیربط دفاعي ادارو مشران چې ریاست یې ولسمشر نجیب کاوه، هره ورځ نظامي غونډه کوله او د شوروي اتحاد یو نفر

ولي يې د ډاکټر نجيب الله د خلاصون هڅه ونه کړه، په داسي حال کې چې روسانو له احمد شاه مسعود او استاد رباني سره هم نږدې او دوستانه اړيکې درلودلې[۱۷۵].

استاد رباني او مسعود چې د روسانو مرستي يې ترلاسه کولي، له روسانو سره يې نږدې او پخې اړيکې درلودلې، که روسانو له دوی څخه د ډاکټر نجيب الله د خلاصون او خونديتوب غوښتنه کړي وای، حتمې ده چې د کابل د هغه وخت حکومت به د روسانو غوښتنه منله.

داسي راپور هم ورکول کيږي چې استاد رباني د ډاکټر نجيب الله د اعدام کيدو غوښتنه کړي وه، چې د ملت قاتل دی، خو ملګرو ملتونو هغه ورته ونه سپاری، مګر دغه ډول راپور تايد شوی نه دی.

بله پوښتنه داده چې ملګرو ملتونو ولي د ډاکټر نجيب الله د خلاصون لپاره يوه سالمه لاره په کار وانه چوله. ولي يې بشپړ ۴ کلونه د هغه ژوند له ګواښ سره مخ کړی وو. آيا ملګرو ملتونو ډاکټر نجيب الله خوندي ځای ته نه شوای انتقال کولای؟ حتمې ده چې دا کار يې کولای شوای.[۱۷۶]

---

ارشد نظامي مشاور به هم پکې شرکت درلود، تر څو له اوضاع څخه خبر وي. جنګ های کابل ۱۰۴ مه پاڼه.

[۱۷۵] د روسانو په غوښتنه احمد شاه مسعود او استاد رباني د تاجکستان د اسلامي نهضت مشر مجبوره کړ چې د تاجکستان له دولت سره جوړه وکړي، تاجک مجاهدين يې امام علي رحمان ته ور تسليم کړل. که روسانو له مسعود او رباني غوښتي وای، نجيب ته به يې خامخا بهر ته د وتلو اجازه هم ور کړي وای.

[۱۷۶] بينن سيوان په کانتيننټل هوټل کې (۶ ثور ۱۳۷۱) د خبريالانو جواب کې چې نجيب چيرته او د وتلو پلان يې څنګه دی؟ ويلي يې وو چې مسئله ډيره باريکه او پيچلي ده، ډير بحث نه شم کولای، مګر د هغه له افغانستان څخه وتل د سولې په پلان کې شامل ده. جنګ های کابل ۱۳۵مه پاڼه

ملګرو ملتونو ته په کار وه او باید هغه وخت یې لا چې دهمزنګ او پلچرخي ته طالبان راغلل او بیرته په شاشول، د ډاکټر نجیب الله د خوندیتوب او وتلو چاره کړې وای، دوی چې خپل د ملګرو ملتونو کسان له کابل څخه ایستل، ډاکټر نجیب الله ته به یې هم د ایستلو لاره جوړه کړې وای او په کار وه چې په دغسي حالت کې د استاد رباني حکومت هم ډاکټر نجیب الله ته له کابل څخه د وتلو اجازه ورکړې وای.

هند چې د ډاکټر نجیب الله او استاد رباني د حکومتونو دوست حکومت و، ولې یې خپلو انډیوالانو (د شمال ټلوالې) څخه د ډاکټر نجیب الله د خلاصون غوښتنه ونه کړه.

داچې ویل کیږي چې احمدشاه مسعود ډاکټرنجیب الله ته خلک ولیږل چې ورسره پنجشیر ته ولاړ شي، ولې یې ددې پرځای ملګرو ملتونو څخه غوښتنه نه کوله چې هغه هند یا د منځنۍ اسیا کوم بل هیواد ته یوسي.

ډاکټر نجیب الله به څنګه په مسعود اعتبار کړی وای او پنجشیر ته به یې د هغه سره تګ ته زړه ښه کړی وای، خو د همدوی له ویرې د ملګرو ملتونو دفتر ته ده (نجیب) پناه وړې وه، له مسعود سره خو دوستم ملګری و، هغه چې په لومړي ځل یې له هیواد څخه د نجیب د وتلو مخه ونیوله.

داچې د ملګرو ملتونو کارکوونکي د جګړو او تاوتریخوالي بېلابېلې تجربې لري، هغوی ته په کار وه، چې په دغسي حالت کې مخکې له دې چې د احمدشاه مسعود ځواکونه له کابل څخه ووځي، د خپلو کارکونکو سره یو ځای او یا بېل ډول یې د ډاکټر نجیب الله له هیواده ایستلو ترتیبات نیولي وای او که دا هم ورته ستونزمنه او یا سخته وه، په کار وه چې ډاکټر نجیب الله یې د هغه د اوسیدو له مهم او ښکاره ځای څخه کوم بل د ملګرو ملتونو دفتر، د نړیوالو ادارو کوم دفتر او یا هم کوم بل نسبتاً خوندي ځای ته انتقال کړی وای، کله چې د کابل وضعیت سم شوی وای، ملګرو ملتونو به د ډاکټر نجیب الله د اوسیدو په اړه له طالبانو سره معلومات شریک کړي وای.

پورته اندیښنو او پوښتنو ته په کتو سره:

د ډاکټر نجیب الله د قتل اصلي پړه پر عبدالرشید دوستم، صبغت الله مجددي، استاد برهان الدین رباني، احمدشاه مسعود، روسیې، هند او ملګرو ملتونو اچول کیدای شي.

د ډاکټر نجیب الله په مرګ کې د پرچمیانو مشران هم برائت نه شي پیداکولای، دوی ښه پوهیدل چې کله طالبان کابل ته راننوځي نو ډاکټر نجیب به وژني، په کار وه چې ډاکټر نجیب یې د ملګرو ملتونو له دفتر څخه کوم پټ ځای ته انتقال کړی وای، کله چې اړو دوړ ختم شوی وای، بیا به یې ډاکټر نجیب رسمي سپارلی وای او یا به یې په پټه له هیواده کوم لور ( منځنۍ اسیا ) [۱۷۷] ته ایستلی وای.

داچې په مجاهدینو عام ولس انتقاد کاوه چې ولې یې ډاکټر نجیب الله ژوندی پریښود، همدغه خبره بالاخره د مجاهدینو د اتحاد اسلامي ګوند مشر استاد عبد رب الرسول سیاف د ولسي جرګې غړې ملالۍ جویا ته ( مئ ۲۰۱۷ ) هم وکړه، چې اشتباه وه چې تاسي (افغان کمونستیان) د مجاهدینو له خوا ژوندي پریښودل شوئ، که طالبانو ډاکټر نجیب ژوندی پریښودلی وای، نو د مجاهدینو او شهیدانو زامنو به هم له طالبانو د هغه د وژلو غوښتنه کوله.

داچې د ډاکټر اشرف غني د حکومت پر مهال (۲۹ سپټمبر ۲۰۱۴ -تر دې مهاله اګسټ ۲۰۲۰)بیا هم پخواني پرچمیان په واک کې دي، که ډاکټر نجیب ژوندی وای، پرته له شکه هغه به د زیات واک څښتن وای او د دې احتمال شونی وو چې د هغه د

[۱۷۷] د پرچم ډلې ډیری مشران د شمال ولایتونو څخه وو او له مسعود سره ملګري وو، کله چې مسعود کابل ترک کاوه، پرچمیانو کولای شوای چې ډاکټر نجیب هم د ملګرو ملتونو له دفتر څخه وباسي، ځکه هغه وخت د ملګرو ملتونو دفتر هم بې سرنوشته پاتې و، د ډاکټر نجیب د وتلو ممانعت چا نه شو کولای او که یې غوښتي وای، په اسانۍ سره یې د منځنۍ اسیا کوم هیواد ته بیولای شوای.

وطن گوند کوم غړی له ډاکټر غني وروسته ولسمشر وای، نو د پړې گوته به طالبانو ته نیول کیدله.

داچې طالبانو وار له مخه د مجاهدینو د اهل تشیع ډلو مشر استاد عبدالعلي مزاري وژلی و، هغه د هزاره توکم څخه و، که ډاکټر نجیب الله یې ژوندی پریښودلی وای، بیا به د نورو قومونو خلکو ویل چې ډاکټر نجیب پښتون دی، ځکه یې داکار وکړ.

طالبان په لوی لاس مجبوره شوې وو، چې ډاکټر نجیب ووژني او په دې ډول مسعود او رباني او نورو استخباراتي کړیو غوښتل چې طالبان د ډاکټر نجیب په وژلو سره منزوي کړي، دوی ټول ښه پوهیدل چې که طالبان کابل نیسي، ډاکټر نجیب به وژني، د ډاکټر نجیب د خلاصون هڅه چا ونه کړه.

طالبان چې د نړیوالې ټولنې پرواه یې نه درلودله او د عواقبو اړوند یې ډیر فکر نه کاوه، نو په ډیره تیزي سره یې ډاکټر نجیب وواژه، که ډاکټر نجیب په لومړیو دریو ورځو کې نه وای وژل شوی، ممکن د هغه د اصولي محاکمه کیدو، یا هم له هیواده د وتلو او یا هم د ملگرو ملتونو دفتر کې د پاتې کیدو پریکړه شوی وای.



ډاکټر نجیب الله احمدزی




طالب جنګيالي د جګړې لومړۍ کرښې ته روان دي




طالب جنګيالي په ټانکې د جګړې لومړۍ کرښې ته روان دي

## شمال ټلواله

«جبهه متحد اسلامي ملي برای نجات افغانستان» چې په شمال ټلوالې مشهوره وه، د احمدشاه مسعود په مشرۍ د طالبانو ضد نظامي ايتلاف و چې سپټمبر ۱۹۹۶ کې تاسيس شو، مهم مشران يې ولسمشر استاد برهان الدين رباني او دفاع وزير احمدشاه مسعود وو، د جبهې غړي په مطلق اکثريت سره تاجک وو، مګر په ۲۰۰۰ ز کال کې د نورو توکمو ځينې نظامي کسان هم ورسره يوځای شول،لکه عبدالرشيد دوستم، استاد محقق، حاجي عبدالقدير او اصف محسني.

شمال ټلوالې د طالبانو د حکومت پرضد جګړه کوله او د روسيې [۱۷۸]، ايران، ترکيې، هند او تاجکستان ملاتړ يې له ځان سره درلود. طالبانو د پاکستان او القاعده ملاتړ له ځان سره درلود. هغه وخت شمال ټلوالې په ۱۰ سلنه خاوره واک درلود او مرکزيت يې په بدخشان کي وو، پر افغانستان د امريکا د حملي پر مهال د شمال ټلوالې وسلوال د امريکا په ملاتړ د پلي پوځ په توګه نږدې دوې مياشتې د طالبانو په مقابل کې جګړه وکړه او بيا وروسته د بُن غونډې په نتيجه کې د کرزي د لنډ مهاله حکومت پر مهال غوښتنه برخه ورکول شوه.

د شمال ټلوالې غړي:

جمعيت اسلامی افغانستان: سني تاجک ډله چې مشري يې برهان الدين رباني او احمدشاه مسعود کوله

---

[۱۷۸] مسعود له طالبانو سره د جګړې پرمهال ۵ واره له پوتين سره ملاقات کړی. يو عينی شاهد چې نوم اخيستل يې امنيتي ستونزی جوړوي وايی:"يوځل د روسيې له ولسمشر پوتين سره د ملاقات په وخت کې مسعود پوتين ته د پنجشير يو زمرد چې د څهار مغز په اندزه و، تحفه کې ورکړ، چې بيا وروسته پوتين ورسره عاجل مرستي او يوه په طلا وهل شوې تومانچه چې قيمت يې اټکل ۵۰۰ زره امريکايی ډالر وو،مسعود ته ورکړل. په تاجکستان کې يی د کولاب اډه ورته ورکړه، وسلي او مهمات يې ورکول. د روسيی (نی زوی سيه ګازيته – مقاله جنرال ورينيکوف) جريده کې راغلی چې مسعود له طالبانو سره د جګړې له پيله دوه سوه ميليون ډالر له روسانو څخه ترلاسه کړي. " جنګ های کابل ۷۷ -۷۸ مه پاڼه

جنبش ملی اسلامی افغانستان: سني ازبک او ترکمن ډله چې مشري يې عبدالرشيد دوستم کوله.

مشرقي شورا: سني پښتون ډله چې مشري يې حاجي عبدالقدير کوله.

حرکت اسلامی افغانستان: شيعه تاجک او هزاره ډله چې مشري يې محمد اصف محسني کوله.

حزب وحدت اسلامی افغانستان: شيعه هزاره ډله چې مشري يې محمد کريم خليلي او محمد محقق کوله.

د شمال ټلوالې قومندانان:

شمال: محمد قسيم فهيم، عبدالرشيد دوستم، استاد محقق، بسم الله محمدي، عطامحمد نور،، محمد داود داود، گل حيدر او قاضي کبير ميرزبان

جنوب: قاري بابا، عارف نورزی او هوتک

ختيځ: حاجي عبدالقدير، حضرت علي، جان داد خان، عبدالله واحدي، قطره او نجم الدين

لويديځ: اسماعيل خان، ډاکټر ابراهيم او فضل الکريم ايماق

مرکزي افغانستان: کريم خليلي، شيرعلم، سيد مصطفی کاظمي، سيدحسن انوري، عالمي بلخي، استاد اکبري، محمد علي جاويد



حامد کرزی[۱۷۹] له احمد شاه مسعود څخه د امریکا او اروپا د ملاتړ جلبولو په موخه په ۲۰۰۰ او ۲۰۰۱ ز کال کې د شمال ټلوالې له ځینو غړو سره یوځای امریکا او اروپا ته په سیاسي سفر تللی و[۱۸۰].

" شمال ائتلاف یا شمال ټلواله نوم سم نه دی، دغه نوم نورو خلکو ورته یاد کړی، د جهاد په وخت کې د جمعیت ګوند د مجاهدینو جبهات ډیر غیر منظم وو، وسلې او هر څه ګډ وډ وو، احمد شاه مسعود له استاد رباني سره تر خبرو او موافقې وروسته د جمعیت د جبهاتو د څارنې له پاره یو منظم پروګرام جوړ کړ او په هغه شورا کې یې مهم قومندانان راټول کړل، چې همدغه شوار یې د شورا نظار په نوم ونومول شوه، یعني د جمعیت د مجاهدینو د جبهاتو د نظارت او څارنې شورا.

بیا وروسته چې کله احمدشاه مسعود د طالبانو سره په جګړه کې بوخت و، د ایران او روسیې په همکارئ یې په شمال کې د طالبانو ضدګرده جنګیدونکې ډلې، شورا نظار، جمعیت اسلامي، اتحاد اسلامي، خلیلي، محقق، اکبري، دوستم او مالک یې سره یوځای کړل چې د شمال مقاومت / جبهه متحد اسلامي په نوم یې دغه اتحاد ونوماوه، مګر رسنیو او حزب اسلامي د خپلې خوښې او اسانتیا له پاره دغه نوم لنډ او مختصر کړ "د شمال ټلواله / ائتلاف شمال" نوم به یې ورته کاراو." وحید مژده

---

۱۷۹ حامد کرزی د جهاد پر مهال د حضرت صبغت الله مجددي د نجات ملي ګوند کې و، کله چې مجاهدینو کابل ونیو، کرزی د بهرنیو چارو مرستیال وزیر شو. حزب اسلامي او آی اس آی ته د جاسوسي په تور د استخباراتو د رئیس قسیم فهیم له خوا بندي شو، له بند څخه وتښتید.

پر افغانستان د امریکا د برید پر مهال ارزګان ته د طالبانو ضد جګړې ته ولاړ، بیرته پاکستان کې د جیکب اباد هوایي اډې ته امریکایانو ور سره بوت.

حامد کرزی د امریکا تر سیوري لاندي (۲۲ سپټمبر ۲۰۰۱ تر ۲۹ سپټمبر ۲۰۱۴) د افغانستان ولسمشر و.

۱۸۰ ویکیپیډیا، انګریزي او فارسي:

https://en.wikipedia.org/wiki/Northern_Alliance

۱۴ اکتوبر ۱۹۹۶، په سالنگ کې استاد رباني، عبدالرشيد دوستم، استاد خليلي، احمدشاه مسعود، تورن اسماعيل خان او ځينو نورو مهمو مشرانو ناسته درلودله، د کابل د بيا نيولو پر پلان يې خبرې کولي او له طالبانو يې وغوښتل چې کابل پرېږدي.

کله چې احمدشاه مسعود او دوستم شمال ته ولاړل، په لومړيو وختو کې هر يوه بېلابېلې د طالبانو ضد ډلو جوړولو هڅې کولې، که څه هم مسعود د استاد رباني له ادرسه د يوې مشترکې طالب ضد جبهې هڅې کولي، خو په لومړيو وختو کې دوستم هم په ورته طالب ضد ايتلاف باندي لگيا و.

"۱٦ اکتوبر ۱۹۹٦، داسي راپورونه هم ورکول شول چې د طالبانو د بهرنيو چارو وزير ملا محمد غوث او نظامي قومندان ملا دادالله اخوند په شمال کې له عبدالرشيد دوستم سره کتلي وو.

۲۲ اکتوبر ۱۹۹٦، يونس قانوني، ډاکټر عبدالرحمن، جمعه خان همدرد[۱۸۱]، عبدالرشيد دوستم چې ټول ټال ۱۵۳ واړه او غټ قومندانانو وو، په مزار شريف کې يې د شورای دفاع از افغانستان تر نوم لاندي د رايو په اتفاق سره دوستم د طالب ضد حرکت ريس وټاکی.

۲۴ اکتوبر ۱۹۹٦، ايران، روسيې او هند هيوادونو اعلان وکړ چې د استاد رباني حکومت لا هم په رسميت پېژني او د طالبانو حکومت په رسميت نه پېژني.
کله چې طالبانو کابل ونيو، په لومړيو وختو کې بيا هم د نوبرت هال په هڅو د طالبانو، استاد رباني، عبدالرشيد دوستم او استاد خليلي استازو په اسلام اباد کې دوه ځله مذاکرات درلودل، ولي کومه نتيجه يې ورنه کړه.

---

[۱۸۱] جمعه خان همدرد په بلخ ولايت کې د حزب اسلامي پېژندل شوی قومندان و، له سرو لښکرو سره يې جگړې وکړي، کله چې طالبانو مزار شريف ونيو، پښتون جمعه خان همدرد ور سره يوځای نه شو. له طالبانو سره يې جگړې وکړي.

پر افغانستان د امريکا تر حملې وروسته د جوزجان او پکتيا والي و، اوس مهال په کابل کې د حزب اسلامي د يوې جلا شوې څانگې مشرې کوي.

۲۵ مئ ۱۹۹۷، د پاکستان له خوا د طالبانو حکومت په رسیمت وپېژندل شو او په همدې ورځ د شمال ټلوالې یو مهم قومندان جنرال سالنگی له طالبانو سره یوځای شو. " حوادث تاریخي

طالبانو د مزار نیولو لپاره د دوستم د رقیب جنرال مالک سره معامله وکړه، د مئ میاشتي پر ۲۶مه ۱۹۹۷ ز. کال د جنرال مالک او طالبانو ترمنځ تړون وشو، کله چې مزار ته بې وسلې طالبان ننوتل، د مالک له خوا هغوی په کمین کې ولویدل، د مئ پر ۲۸مه په دوو ورځو کې د مالک له خوا تر ۱۰۰۰۰ زیات طالبان په مزار شریف، شبرغان او نورو سېمو کې کلابند او ووژل شول[۱۸۲].

کله چې دویم ځل مزار شریف طالبانو ونیوله، بیا نو پکې د ۱۰ ایراني ډیپلوماټانو په شمول، د مالک او اهل تشیع زیات کسان د طالبانو له خوا ووژل شول[۱۸۳].

" ۱۳ جون ۱۹۹۷، د بلخ ولایت مزار شریف ښار کې د استاد رباني له خوا د دولت اعلان او عبدالرحیم غفورزی ۱۸٤ یې لومړي وزیر او دکابینې ځینې وزیران

---

[۱۸۲] د لیلې او حیرتان ډلئیزه ناځوانمردانه او بې رحمه وژنې چې جنرال مالک وکړي، امریکایانو ظاهراً دغه پیښه، خواشینوونکی کار وباله، خو د دې کار سربیره یې جنرال مالك، چي د دوولس زره افغانانو قاتل و، امریکي ته دعوت کړ، د امریکا ویزه یې ورته ورکړه او د هغه ښه استقبال یي وکړ. طالبان له کندهاره تر مزاره کتاب ۲۱۶مه پاڼه

[۱۸۳] د طالبانو یو لوړ پوړي چارواکي د یوې ناستې پر مهال وویل چې ډېر وروسته، کله چې د طالبانو نظام ونړید، پوه شوم چې د طالبانو د نوم څخه په گټه پورته کولو یوې ځو کسیزې ډلې د ایران په کونسلگري کې د زیاتو پیسو د شتون له امله ایراني ډیپلوماټان وژلي وو او هغه پیسې یې غلا کړي وي. هغه دا هم وویل، که موقع برابره شوه، دا خلک باید محاکمه شي.

[۱۸٤] عبدالرحیم غفورزی د ظاهرشاه د پاچاهي په وخت کي په دفاع وزارت کې د سریاور دنده درلوده، د ببرک کارمل په وخت کې هغه د بهرنیو چارو وزارت مامور وه، کله چې دیو هیئت په مشری د ملگرو ملتونو د کنگري غونډې ته ولاړ، هلته یې د پخواني شوروي اتحاد دیرغل په ضد لاره خپله او د مجاهدینو موقف یې تاید کړ، د مجاهدینو د حکومت

هم اعلان کړل، له پخواني پاچا ظاهر شاه یې له ایټالیا څخه خپل هیواد ته د راتلګ او لویې جرګې د جوړیدو غوښتنه وکړه[۱۸۵].

۱۵ اګست ۱۹۹۷، د حکمتیار له خوا په مزار کې د حکومت اعلان رد او کابل یې د هیواد مرکز وګاڼه او په همدې ورځ امریکا خپل سفارت هم په بشپړ ډول سره په کابل کې وتاړه[۱۸۶]. پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته، نومبر ۲۰۰۱ کې بیاځل د امریکا سفارت په کابل کې پرانیستل شو.

غواړم چې د هیواد د تجزیې اړوند د روسانو د پلان په اړه د پخوانیو خلقیانو او پرچمیانو د سترګو لیدلی حال درسره شریک کړم.

د جولای ۲۲مه، ۲۰۱۹، مورږ (سید محمد ګلابزوی، استاد محمد زمان مزمل، استاد احمد وحید مژده، دکتور فیض محمد ځلاند او زه مطمئن) د کابل ښار خوشحال خان مینه کې ناسته درلودله، د ډاکتر نجیب الله د وخت د کورنیو چارو وزیر ګلابزوی وویل: "زه د کورنیو چارو وزیر وم، ډاکتر نجیب الله احوال را کړ چې د شوروي اتحاد بهرنیو چارو وزیر اډوارډ شوارډناډزي، د کې جي بی رئیس، د دفاع مرستیال وزیر او د شوروي اتحاد مرستیال ولسمشر کابل ته راغلي، له هغوی سره د شوروي اتحاد په سفارت کې ناسته لرو.

---

په وخت کې د بهرنیوچارو وزارت مرستیال او بیا د استاد رباني د سیارحکومت په دوره کې د خارجه وزیر لقب ورکول سو.

۱۸۵ د ضعیف صاحب خبره چې مسعود غوښتل چې رباني وهڅوي چې شمال افغانستان اعلان کړي، مګر رباني داکار ونه کړ او یوازي مزار یې د خپل ګرځنده حکومت مرکز اعلان کړ.

۱۸۶ د امریکا سفارت په ۱۹۸۹ ز کال کې په کابل کې وتړل شو، بیا یې کوم ځانګړی فعالیت نه درلود، مګر د مجاهدینو او طالبانو د حکومت پر مهال یې د افغانستان چارې هم له اسلام اباد څخه مخکې وړلې، په ۲۰۰۱ کال کې بیاځل د امریکا سفارت په کابل کې پرانستل شو، مګر بیا رغونه او ودانیزو چارو یې تر ۲۰۰۶ پورې دوام درلود.

ډاکټر نجيب ته مې وويل چې تاسي ولسمشر ياست، ښه ده چې د شوروي اتحاد راغلي لوړ رتبه کسان ارګ ته را شي او همدلته ور سره غونډه وکړو، ډاکټر نجيب وويل چې توپير نه لري که موږ هلته ورشو هم کومه ستونزه نه ده.

موږ د سياسي بيرو ۱۱ غړي ټول په دارالامان کې د شوروي اتحاد سفارت ته ورغلو، د ميز يو لور ته روسان او بل لور ته موږ کيناستو. پيل کې ډاکټر نجيب الله ۴۵ دقيقي خبرې وکړي، د شوروي اتحاد له مرستو او له افغان حکومت سره د هغوی د ملاتړ ستاينه يې وکړه.

ډاکټر نجيب د خپلو خبرو پر مهال وويل:"زموږ د سياسي بيرو د ټولو غړو توافق دی چې پلازمينه له کابل څخه مزار شريف ته انتقال شي او هلته خپلې رسمې دولتي چاري مخکې يوسو، موږ دي کار ته چمتو يو."

زه (ګلابزوی) حيران شوم، چې ډاکټر نجيب خو له موږ سره په دي اړه هيڅ مشوره نه ده کړي او دلته يې وويل چې د سياسي بيرو ټول غړي موافق دي چې پايتخت له کابل څخه مزار شريف ښار ته انتقال شي، منتظر وم چې کوم ملګری به خبرې وکړي، عموماً په دغه ډول ناستو کې زموږ خلقيانو په استازولي به صالح محمد زيري خبرې کولې، خو هغه د ډاکټر نجيب بل لور ته ناست و، نه مې شوای کولای چې هغه ته د سترګو اشاره وکړم، څو دقيقي همداسي ټول سکوت ناست وو، بيا ما نږدې اته دقيقې خبرې وکړې، ومې ويل:"له کابل څخه مزار شريف ته د پلازمېنې د انتقال په اړه له ما سره مشوره نه ده شوې، زه د کورنيو چارو وزير او د سياسي بيرو غړی يم، خو په دي اړه ماته هيڅا مخکې له ننی غونډې څخه څه نه دي ويلي، موږ نه غواړو چې هيواد مو تجزيه شي، زه تاسي (شورويانو) ته ډاډ درکوم چې کابل ساتلی شم، هوايي ډګر، راډيو ټلويزون او د نورو مهمو دولتي ځايونو ساتنه موږ په ښه ډول سره کولای شو، که بيا هم ځيني کسان ويره لري چې کابل کې امنيتي ستونزې ډيري او مخ په زياتېدو دي، هغوی دي مزار شريف ته ولاړ شي، هلته دي خپلې چارې مخکې يوسي، خو مزار شريف ته د پايتخت له انتقال سره موږ مخالف

یو او دا د هیواد د تجزیې پېلامه ګڼو، که تاسي (شورویان) غواړئ چې افغانستان هم د ویتنام په څیر وویشل شي، د افغانستان جغرافیه له هغه ځای سره توپیر لري.

دا هم سمه نه ده چې موږ پلازمینه له کابل څخه مزار شریف ته انتقال کړو او بیا له هغه ځایه سمنګان، تخار او نوري سیمې تر کنټرول لاندي راولو، موږ باید کابل وساتو."

زما (ګلابزوی) له خبرو وروسته د دفاع وزیر شاه نوازي تڼي نږدې ۳ دقیقې خبرې وکړي، ویې ویل:"زه د کورینو چارو د وزیر ګلابزوی خبرې تایدوم، موږ له کابل څخه ساتنه کوو او له کابل څخه مزار شریف ته د پلازمېنې له انتقال سره مخالف یم، په دي اړه له موږ سره نه چا مشوره کړي او نه هم موږ ور سره موافقه کړي ده."

زموږ تر خبرو وروسته ټول مجلس سکوت وکړ، د سیاسي بیرو هیڅ کوم غړي زموږ د خبرو مخالفت ونه کړ او نه یې د ډاکټر نجیب الله د خبرو تاید وکړ، څو دقیقې همداسي ناست وو، بیا روسانو وویل چې تفریح به وکړو، له هغه وروسته به مجلس ته ادامه ورکړو، روسان د سالون د دراوزې جنوب لور ته او موږ د سالون دروازې شمال لور ته ووتلو، ډاکټر نجیب ما (ګلابزوی) ته وویل:" ملګری ګلابزوی! مرداره دي کړه." هغه ته مې وویل چې مرداره خو تا کړه، چې د هیواد تجزیه مني او ما خو سمه کړه، چې هیواد له تجزیې څخه وژغورل شي، زموږ دواړو ترمنځ، د لنډې لفظې شخړي وروسته خبره فیزیکي شخړي ته ورسېده، له یو بل سره مو ږغ لوړ شو، یو بل ته د لاس اچولو په موخه ور نږدې شوو، چې بیا زه لومړي وزیر سلطان علي کشمند او ډاکټر نجیب صالح محمد زیري ونیوی او موږ یې یو له بل سره جلا کړو[۱۸۷].

---

[۱۸۷] سلطان علي کشمند هزاره توکمه افغان کمونسټ و، د نورمحمد ترکي (۳۰ اپریل تر ۲۳ اګست ۱۹۷۸) او ببرک کارمل (۲۸ ډسمبر ۱۹۷۹ تر اپریل ۱۹۸۲) د حکومتونو پر مهال د پلان وزیر و، د ببرک کارمل (۱۱ جون ۱۹۸۱ تر ۲۶ مئ ۱۹۸۸) او ډاکټر نجیب الله (۲۱ فبروري ۱۹۸۹ تر ۸ مئ ۱۹۹۰)د حکومتونو پر مهال لومړی وزیر و.

صالح محمد زیری د کندهار اوسیدونکی، د خلق ډیموکراټیک ګوند د سیاسي بیرو دایمي غړی او د سیاسي بیرو لومړی منشي پاتي شوی. هغه له نورمحمد ترکي او حفیظ الله امین

ډاکټر نجیب الله او روسانو چې دا ډول عکس العمل ولید، بیا دوېمه جلسه ونه شوه او موږ ټول له سفارت څخه ووتلو او خپلو دندو ته ولاړو."

ګلابزوی وویل:"زما میرمن هم مړه شوې وه او درې کوچني زامن مې راته پاتې وو، مګر د میرمنې د مرګ ۴۰ ورځې لا نه وې پوره او د شوروي اتحاد په سفارت کې تر ناستې ۸ ورځې وروسته زه د کورنیو چارو وزارت څخه لرې او په ماسکو کې سفیر وټاکل شوم.

ما (ګلابزوی) ته د ډاکټر نجیب الله او یا هم بهرنیو چارو وزارت له خوا نه، بلکې د شوروي اتحاد د بهرنیو چارو مرستیال وزیر له خوا وویل شول چې له کورنیو چارو وزارت څخه لرې شوی یم او په ماسکو کې سفیر ټاکل شوی یم.

روسي چارواکي ته مې وویل چې زه به په دې اړه غور وکړم، خو هغه وویل چې دا د ماسکو پریکړه ده او تاسي به هلته ځئ.

کله چې ډاکټر نجیب زما مخه ښې ته راغی، هغه ته مې وویل چې دا ګېله کوم، یو خو زما د میرمنې د مړینې ۴۰ ورځې لا نه دي پوره شوې، بل داچې په ماسکو کې د دندې په اړه به تاسي (د بهرنیو چارو) وزارت خبر را کاوه، مګر ماته مو د روسانو په خوله دا خبر راکړ.

ډاکټر نجیب ته مې وویل: کور دې ودان، ماته دې نجات راکړ، زه خو به له کابل څخه ووځم، خو دلته کابل کې به کور په کور او کوڅه په کوڅه جګړې وي، همدا زموږ بلاک (مکرریان) کې به هم ٦ راکټونه لګیږي او دلته به ډېره مرګ ژوبله وشي. تصادف همداسي وشول د مجاهدنیو تر منځ جګړو پر مهال زموږ بلاک کې ٦ راکټونه لګېدلي وو. "

---

وروسته د خلقیانو مشر و، د کورنیو چارو وزیر ګلابزوی او دفاع وزیر شاه نواز تڼی یې تر څنګ کلک ولاړ وو.

د زیری او ډاکټر نجیب الله ترمنځ هم ستونزې وې، یوځل د کابل ښار سرې میاشتې ودانۍ ته نږدې پر صالح محمد زیري چاودنه وشوه، مګر له چاودنې روغ ووت.

ډاکټر محمد حسن شرق چې د ډاکټر نجيب الله په وخت کې لومړی وزير و، په خپل کتاب (کرباس پوشهای برهنه پا، خاطرات دکتور محمد حسن شرق ) کې ليکلي:"کله چې ډاکټر نجيب الله ولسمشر او سلطان علي کشمند لومړی وزير و، روسي سلاکارانو د خپلو پوځيانو د وتلو تر وروستي وخت پوري هڅې کولي چې د جنوبي او شمالي افغانستان طرحه عملي شي، د شمال نهه ولايتونه (ميمنه، شبرغان، بلخ، بغلان، کندز، تخار، بدخسان، سرپل او باميان) يې د شمالي افغانستان په نوم د صدارت له تشکيل سره يو ځای د مرکزي حکومت څخه جلا او د ۱۳٦٦ ل کال په حوت مياشت کې ښاغلی نجيب الله مسير د حزب ديموکراتيک خلق د مرکزي کميټې غړی د صدارعظم د کفيل په صفت له ١٦ تنو مرستيال وزيرانو سره په مزار شريف کې په کار پيل وکړ[۱۸۸]." افغانستان چا وران کړ؟ ۷۲مه پاڼه

" شورويانو مخکې له وتلو په مزارشريف کې د يو مودل او يا التړنيټو حکومت په اړه فکر کړی وو، چې د دوی د سياسي او نظامي نفوذ لاندی مزار شريف کې وي.

په ښکاره يې ويل؛ که کابل او جنوب سقوط کوي، نو معادل حکومت به مزار کې وي، تر څو د کابل او جنوب بيرته نيولو لپاره چمتووالی مخکې له مخکې وي. اصل کې د منځنۍ اسيا د مسلمان هيوادو د پولو ساتل او له مسلمانو او مجاهدينو څخه خوندي کول او د افغانستان د شمال او جنوب د تجزيې په قيمت يې دا کار کاوه.

جنرال پوهاند محمد هاشم پوپل د استاد گل محمد زوی، د کابل اوسيدونکی، د دفاع وزارت تعليم تربيه کارکوونکي چې په شوروي اتحاد کې يې زده کړې کړي،

---

[۱۸۸] تر روسانو مخکې انگريزانو هم د افغانستان د تجزيې هڅې وکړي، په بشپړ ډول يې افغانستان تجزيه نه شو کړلای، ولي د گندمک او ډيورنډ شرمونکي تړونونه د افغان مشرانو له خوا له انگريز سره وشول چې د ډيورنډ کرښې جنجالي مسئله تر دې مهاله هم د افغانستان او پاکستان تر منځ د سرطان داني په ډول پاتې ده.

له روسانو وروسته د طالبانو د نظام او بيا د طالبانو د نظام ړنگيدو وروسته امريکا هم د خپل ۲۰ کلن شتون پر مهال د افغانستان د تجزيې هڅې وکړي او د امريکايي سناتورانو له خوا په سپين سترگې د افغانستان د شمال او جنوب د ويش غوښتنې وشوې.

په ۱۳٦۷ ل کال اوړي کې له ماسکو څخه هیواد ته راګرځېدلي و، ما لیکوال (سید عبدالقدوس) ته یې وویل:" زموږ روسی استاد چې درس خوني ته راغی، مختصر یې د مهمو پیښو، جیو پولیټیک او جیو ستراتیژیک اوضاع اړوند خبرې وکړې، د ژنیو معاهدې او د روسانو د وتلو اړوند یې سیاسي خبري او بیا یې په لاندي دوو مسئلو خبرې وکړې.

۱ – تاسي (محصلینو) په تیرو ورځو کې د ډګر جنرال سلمانف د اکاډمي قومندان څخه به مو اوریدلي وي چې په افغانستان کې ملي اشتي او په واک کې د مخالفینو ګډون په نظر کي دی، چې د دفاع وزارت چوکۍ به احمدشاه مسعود ته سپارل کیږي[189].

۲ – په هغه صورت کې چې د جګړو شدت، د پاکستان، ایران او امریکا مداخلات او له مجاهدینو سره مرستې دوام ولري، د افغانستان دولت له ځانه د دفاع توان له لاسه ورکړي، د هیواد جنوب او مهم ښارونه لکه جلال آباد، خوست، کندهار مخالفین ونیسي، کابل تر تهدید لاندي وي، په دي صورت کي د شوروي اتحاد سیاست دا دی چې پلازمینه له کابل څخه مزار شریف ته انتقال کړي او بیا به د افغانستان په شما ل او جنوب ویشل ممکن او اسانه وي.

د هندو کش د غرونو سلسله به د شمال او جنوب افغانستان ترمنځ مطمئن ترین سرحد وي، کابل کې به ګوندي جګړي وي، د تعارض توانایي به له لاسه ورکړي او ځینې به شمال ته زړه ښه کړي او بیا به موږ له همدوی څخه چې غچ به اخلي، قصاوت به یې په زړه کي وي، د جنوب د اضمحلال لپاره استفاده وکړو.

جنرال محمد عمر سیلاني چې د دفاع وزارت د انجنیري ریاست مرسیتال و، خپل مخالفت یې په لوړ اواز د روسي جنرال په مخ کې ووایه، ما (پوپل) هم د افغانستان له تجزیې سره مخالفت وښود. ومې ویل که تندروان هم واک ته رسیږي مګر موږ د هیواد تجزیه نه غواړو.

---

[189] پخوانی شوروي اتحاد د خپلو لښکرو تر وتلو وړاندي پریکړه کړي وه چې نظامي واک به د شورای نظار مشر قومندان احمدشاه مسعود ته سپاري.

د شورويانو د افغانستان د تجزيې د پلان خبره د روسيې نورو نظامي پوهنتونو ته هم ورسيدله، درې ورځې وروسته د اکاډمي رئيس ډگرجنرال سلمانف راغي او د افغان محصلينو سره يې وليدل، د همدې خبرې له امله يې بخښنه وغوښتله." جنگ های کابل، ۱۰۵مې تر ۱۰۸مې پاڼې.

۲۱ اگسټ ۱۹۹۷، د استاد رباني د حکومت لومړی وزير عبدالرحيم غفورزی، د حکومت وياند عزيز مراد او ټول ټال ۱۷ نفره د باميان ميدان کې د الوتکې د سقوط له امله مړه شول.

" د اهل تشيع مشران استاد خليلي او استاد محمد اکبري په باميان کې د طالبانو له خوا محاصره وو، خليلي ته په وخت د استاد سياف له خوا چورلکه ور واستول شوه، مگر محمد اکبري پاتې شو او طالبانو ته تسليم شو." سيد داوود اغا

۸ سپټمبر ۱۹۹۷، روسي جنرال په پنجشير کي له احمدشاه مسعود سره ليدنه تايد او طالبانو بيا وويل چې د روسي جنرال سره تر ليدو وروسته مسعود ته د روسيې له خوا لرې ويشتونکې راکټونه ورکړل شوې او کابل ويشتلای شي. " حوادث تاريخي

د مئ مياشتې ۱۴مه د ۲۰۱۳ کال د بي بي سي د فارسي به (عبارت ديگر) پروگرام سره د تاجکستان د اسلامي گوند غړي توره جان زاده وويل: " په اول وختونو کې مسعود او رباني زموږ سره مرسته وکړه، کله چې د طالبانو فشار په هغوی زيات شو دوی له ماسکو سره اړيکې ټينگې کړي، ماسکو غوښتنه ورځخه وکړه چې پر موږ فشار راولي چې د تاجکستان له حکومت سره جوړه وکړو، مسعود او ربانی هم پر موږ ډير زيات فشار وارد کړ او موږ مجبور شوو چې د تاجکستان د حکومت له مشر امام علي رحمانوف سره سوله وکړو. توره جان زاده وايي چې موږ د استاد رباني او طالبانو د جگړې قرباني شوو. "

"د تاجکستان د حکومت د ضد ځواک وياند اکبر توره جانزاده د تاجکستان حکومت سره د خپل مشر سيد عبدالله نوري تړون رد، پر استاد رباني يې تور ولگاوو چې د خپلو شخصي گټو پر بنسټ يې د تاجکستان اسلامي غورځنگ د

دغه ټرون لاسليک ته اړ کړ. استاد رباني د روس ملاتړ ته زياته اړتيا لري، ده د روسانو د خوشالي او نظامي مرستې د ترلاسه کولو په خاطر عبدالله نوري د ياد ټرون لاسليک ته اړ کړ. دافغانستان شمال کې له موږ سره هغه څه وشول چې تمه يې نه کېدله. "ماسکو، د بي بي سي راډيو خبريال داود جنبش راپور

قاري رحمت الله ما (ليکوال) ته وويل:"د طالبانود بهرنيو چارو مرستيال وزير عبدالرحمن زاهد د الجزيرې ټلويزون له هغو دوو ژورنالستانو چې مسعود ته د مرکې لپاره ورغلي وو پوښتنه وکړه، چې مسعود به جوړه او روغه وکړي کنه؟ يوه يې وويل چې له مسعود څخه مې پوښتنه وکړه چې طالبان ادعا لري چې له تاسي سره اسرائيل مرسته کوي، مسعود وويل که د طالبانو په مقابل کې راسره شيطان مرسته وکړي، هغه هم قبلوم. خبريال وويل چې ماته سوله مشکل ښکاري."

" تاجکستان د مسعود په واک کې د کولاب هوايي اډه ورکړه، ايران، روسيې او هند له شمال ټلوالې سره د طالبانو په ضد مرسته شروع کړه، وسلي او مهمات يې ورته برابرول، دا ډول روسانو ډيرې زياتي پيسې مسعود ته ورکولي، مسعود وتوانيدي چې د دغو امکاناتو څخه په استفادې سره جنوب کې د طالبانو څخه تښتېدلي قومندانان او دا ډول وروسته د ختيځ تښتيدلي قومندانان هم له ځان سره يوځاى کړي، ځکه مسعود پيسې او امکانات درلودل، د جنوب او ختيځ قومندانانو دغه ډول امکانات نه لرل، بيا نو په ګډه د طالبانو په مقابل کې تر هغه وخت پورې وجنګيدل تر څو چې امريکا په افغانستان حمله وکړه، د امريکا دحملې په وخت کې شمال ټلواله د امريکا پلې پوځ وو او د امريکا د هوايي بمبارد له امله يې طالبان لومړی په مزار او کندز کې په شا وتمبول، کابل يې ونيو، کندهار او جنوبي ولايتونه پرته له جنګ څخه طالبانو پريښودل، شمال ټلوالې د نومبر ۱۴مه ۲۰۰۱ کې، بيا ځل د استاد رباني په مشري خپل حکومت اعلان کړ، قسيم فهيم دفاع وزير، عبدالله د باندنيو چارو وزير او قانوني پکې د کورنيو چارو وزير و." وحيد مژده

"د مقاومت پيلونکو! تاسي ياد لرئ چې پنځه هيوادونو زموږ سره مرسته کوله، هند، روسيه، ايران، ازبکستان او تاجکستان. همدي هيوادونو زموږ سره مرسته کوله، هغه

وخت مې د احمد شاه مسعود په مشوره د امو سيند ته نږدې د تاجکستان لوري کې، د افغانستان لور ته آی خانم سېمه او د تاجکستان لور ته لويه ځنګلي سېمه، د ځنګل په دننه کې موږ د نجات په نوم يو کوچنی روغتون درلود، په روغتون کې درې مجربو او پوهو هندي جراحو ډاکټرانو کار کاوه، داچې زموږ شديد زخميان چې مشهد يا تاجکستان يا بل ځای ته يې سمدستي رسولو کې د مرګ ويره وه او د خواجه بهاء الدين څخه تر ياد ځنګل (د تاجکستان خاوره کې ) پورې ۳۰ دقيقې د چورلکې الوت وخت نيوی، همدلته زموږ د سختو زخميانو تداوي هندي ډاکټرانو کوله[۱۹۰]."

---

[۱۹۰] د شمال ټلوالې مهم مشر صالح محمد ريګستاني ويډيو چې د ۲۰۱۸ کال د مارچ مياشتې په نهمه او لسمه په ټولنيزو رسنيو کې خپره شوه. له دې وروسته د همدې لاسوند سره يوازې د صالح محمد ريګستاني –ويډيو ليکل کيږي.

صالح محمد ريګستانی د پنجشير اوسيدونکی، د احمدشاه مسعود له نږدې ملګرو او د مسعود د مرګ په وخت کې په ماسکو کې د افغانستان نظامي اتشه او د مسعود په اړه يې کتاب (مسعود و آزادي) هم ليکلی دی. له ۲۰۰۴ تر ۲۰۰۹ پوري د ولسې جرګې غړی او وروسته د ټاکنو د اصلاحاتو کميسون غړی و.

د سپټمبر لومړۍ ورځ ۲۰۱۹ کې د"دې هندو ورځپاڼي" راپور ورکړ چې "هند په پټه له شمال ټلوالې سره پوځې مرسته کوله ".

ورځپاڼې په تاجکستان کې د هند د پخواني سفير بهارت راج ماتهو کمار له خولې ليکلي: "له شمال ټلوالې سره په پټه پوځي مرستې يوه اونۍ وروسته له هغه پيل شوې چې طالبانو کابل ونيو او پخوانی ولسمشر نجيب الله يې وواژه.

د هند حکومت پوښتنه وکړه چې له شمال ټلوالې سره مرسته د هند لپاره څه ګټه لري؟

ما (راج کمار) ورته وويل چې احمد شاه مسعود له داسې چا سره جګړه کوي چې هند بايد پوځې مرستې ور سره وکړي، ځکه کله چې له طالبانو سره جګړه کوي نو له پاکستان سره جګړه کوي.

په پيل کې غوښتنې هند ته ډېرې ښکاره شوې او يوازې د غوښتل شويو توکو په ډېره وړه برخه د هند حکومت موافقه وکړه، مګر وروسته هوکړه وشوه چې درنه وسله نه شي ورکولی خو

"د طالبانو سخته رويه او قيوداتددي باعث شوو چې د جنوب او ختيځ قومندانان له مسعود سره ملګري شي، مسعود دوی ته امکانات برابرول، پيسې يې ورکولي او د همدي (پښتنو) قومندانانو له نوم څخه يې په نړيواله سطحه ګټه پورته کوله، استاد سياف او د مشرقي شورا له مسعود سره وه، دا ډول د حکمتيار سره چې يو شمير غير پښتانه قومندانان وو، هغوی هم له مسعود سره يوځای شوو، لکه نسيم مهدي او نور...

ډيری خلکو فکر کاوه چې د طالبانو سره ځای نه لري، ټول وزارتونه، رياستونه، مهمې اداري د دوی وي، هرڅه د طالب او مجاهد لپاره وو، عادي کس ته پکې ځای نه وو.

د مجاهدينو د خپلمنځي جګړو پر مهال استاد سياف، رباني او مسعود ويل ولس له موږ سره دی، حکمتيار به ويل چې ولس له حزب سره دی او طالبانو سره بيا ولس ودريدی، ترڅو چې حزب او مسعود ته يې ماتې ورکړه." سيد داوود

د جولای ۴مه ۲۰۲۰، استاد محمد زمان مزمل ما (ليکوال) ته وويل:"احمد شاه مسعود کولای شول چې څه ډول د دوو سياسي جريانو يو ځای کيدو مخه ونيسي، کله چې طالبانو له عبدالعلي مزاري سره تفاهم وکړ، همهغه وخت مسعود هم استاد مزاري ته خلک ور واستول، طالبانو ته يې داسي په نظر ورکړل چې کيدای شي د مزاري او مسعود تر منځ د دوی لپاره پلان جوړ شوې وي، همهغه و چې طالبانو استاد مزاري ونيو او مړ شو.
کله چې طالبانو کابل ونيو، مسعود په پروان کې پخواني قومندانان او خلک را ټول کړل، له هغوی يې وغوښتل چې د طالبانو مقابل کې ور سره ملګري شي، مګر

---

سپکه وسله، پيسې، طبي مرستې، خواړه او جامې ورکولی شي. او احمد شاه مسعود ته هغه کلاشينکوفونه هم ورکړل شوې چې هندي سرتېرو په کشمير له کشميري وسله والو نيولي وو.

د هند مرستې د تاجکستان له لارې شمالي ټلوالي ته رسول کېدلې او پيسې د احمد شاه مسعود ورور احمد ولي مسعود له لارې چې په لندن کې و هغوی ته ورکول کيدلې.

د شمال ټلوالې د ټپيانو درملنه هم د هند له خوا د تاجکستان په کولاب کې جوړ شوې روغتون کې کيدله او ځينې ټپيان هندوستان ته لېږودل کيدل. يوازې طبي مرستې د اوه نيم ميليونه ډالرو په ارزښت شمالي ټلوالې ته ورکړل شوي دي."

ټولو منفي جوا ب ورکړ، ورته يې وويل چې  له طالب سره جګړه نه کوو، خو د مسعود خلکو څو ورځې وروسته د سيمې نوموتی او بانفوذه مشر قوماندان سرشار په ډيره بې رحمي وواژه، د هغه مرګ يې پر طالبانو ور تاوان کړ او يا ممکن طالبانو ته د مسعود کسانو غلط معلومات ورکړي وي او دا کار طالبانو کړی وي، همهاغه وو چې کيسه سرچپه او خلک د طالبانو مقابل کې راپورته شول، دارنګه په پروان کې د احمد شاه مسعود کسانو ځينې سپين ږيري خلک په باغونو کې وويشتل او پر طالبانو يې تاوان کړل، خلک د طالبانو پر ضد شول."

"جنګ چې له طالبانو سره شروع شو، سياف ته مي وويل چې دا خو فتنه ده، هغه ويل چې ماته روا ده، د خپل ځان دفاع کوم، غټ مفتي سياف و.

مخکې له دي چې طالبان کابل ونيسي، هغه وخت زه د پوهني  وزير وم، د يونسکو له لوري جنيو کې  د پوهنې اړوند کانفرانس وو،  زه لومړی هند ته ولاړم، کله چې جنيو ته رسيدم، کابل طالبانو ونيوی، يوه ورځ مې کانفرانس کې ګډون وکړ، نور بيا له شرمه ورنغلم او بيا وروسته ترکيې ته ولاړم، او له هغه ځايه څه وخت وروسته لندن ته ولاړم.

لندن کې الجزيره ټلويزون ډيري مرکې راسره کولي، ويل مې چې په افغانستان کې جګړه فتنه ده، نه سياف، نه رباني او نه هم طالبان په حقه دي، بايد سولي ته غاړه کيږدي، سوله راشي، زما دغه ډول څرګندونو احمدشاه مسعود، استاد رباني او استاد سياف ته خوند نه ورکاوه، ويل يې چې انجنير احمدشاه خو زموږ په ضد خبري کوي.

يوځل يونس قانوني او ډاکټر عبدالله [191] لندن ته  راغلل، ډاکټر عبدالله په هغه سفر کې يوه دريشي په شل زره ډالر اخيستي وه، افغانان يې سفارت ته  وغوښتل،

---

[191] ډاکټرعبدالله د مجاهدينو د حکومت پر مهال د دفاع وزارت ويناند، وروسته د بهرنيو چارو وزير شو.

د شمال ټلوالې پېژندل شوې څېره ده، پر افغانستان د امريکا له بريد وروسته د بهرنيو چارو وزير (۲۲ سپټمبر ۲۰۰۱ تر ۲۰ اپريل ۲۰۰۵) و، له ۱۳ اکتوبر ۲۰۱۴ تر ۲۴ جنوري ۲۰۱۹ پوري د حکومت اجرائيه رئيس چې ۵۰ سلنه واک يې درلود.

قانوني ته مې وويل؛ مسعود ته مي سلام وايه، ورته ووايه ته خو د مجاهد په نوم جنګيږې، په لندن کې چې دي ورور احمد ولي مسعود سفير دی، مستقيماً د پرچميانو اوکمونستانو نماينده دی.

په سياسي لحاظ خو به دا خبره سهوه وه، مګر ما دا پيغام مسعود ته وليږی، قانوني هم مسعود ته ويلي وو چې انجنير احمدشاه زموږ په ضد تبليغات کوي.

د احمد ولي مسعود خسر او دوستان پرچميان وو، چې کله به په سفارت کې مجلس و، تر موږ مخکې به پرچميان ناست وو، له دي کبله ده چې ما داخبرې کولي، وروسته بيا دوی (د مسعود ورور او ملګرو) عقده واخيستله او ما به ورته ويل چې دا حقايق دي.

ډاکټر عبدالله ته مې وويل چې ته خو د استاد رباني د حکومت د بهرنيو چارو وزير يې، ته چې واشنګټن ته راتلي له استاد څخه دي اجازه واخيستله، هغه وويل ما برايش تليفون کدم، خود سرې وه هرچا خپل کار کاوه. " انجنير احمدشاه

"مسعود د طالبانو سره د جګړې پر مهال د پروان قريه خشک (هغه کلی چې د سقاو د زوی حبيب الله کلکاني له ماتې وروسته د جنوب خلکو سوځولی و) ته ورغی، هلته يې لويه غونډه جوړه کړه، خلکو ته يې وويل چې تاسي ته د خپل کلي تاريخ معلوم دی، دا کلي چا سوځولی؟ بيا خل همغه خلک را روان دي، ستاسي کلي به سوځوي او ښځې به در څخه بيايې، همدغه لاملونه وو چې د روسانو په مرسته کرار کرار جنګ قومي لور ته روان وو، په بدخشان کې ورته خبرې ملا امامانو په مسجدونو کې کولي چې پښتانه راځي، ستاسي کورونه سوځوي، مال مو لوټ کوي او ښځې درڅخه بيايې. داسي راپورونه هم ورکول شوې چې د پروان په سېمو کې په ميرمنو او سپين ږيرو نامعلومو وسلوالو ډزې کړي، تر څو له طالبانو سره د همدې سيمو د خلکو نفرت زيات شي. له دي سره سره طالبان وتوانيدل چې تاجک ميشته سېمې ونيسي او د تاجکو ډېرى کسان ورسره ملګري شول، د هيواد ۹۵ سلنه خاوره يې لاندي کړه. مګر د ۱۱/۹ پيښې هر څه سرچپه واړول.

---

دارنګه د ۲۰۱۹ ولسمشرى ټاکنو د پايلې او معاملي نتيجه کې د حکومت ۵۰ سلنه ونډه وال دی.

ویل کیږي چې ډاکټر عبدالله ویل کله چې موږ د جګړې څخه ستړې شو، ډیر خسته وو، په کولاب کې به غټو غټو ماشو چیچلو، دا مو ښه ګڼله چې دریاب ته ځانونه غورځار کړو، موږ جګړه بایللي وه، ځای مو نه درلود، زموږ سره بخت یارې وکړه، په امریکا حمله وشوه او امریکا اړ شوه چې زموږ مرسته وکړي. د امریکا له خوا پیسې او امکانات راته برابر کړل شول، هوایې بمبارد پېل شو او موږ بیا ځل کابل ته ننوتلو، چې هیڅ داسي فکر مو نه کاوی.

د شمال ټلوالې مشر قسیم فهیم د مسعود په ژوند کې په دې نظر وو چې د حکومت لومړی سړی باید پښتون وي بیا نو دوېمه چوکۍ موږ ساتلی شو، مګر ویل کیږي چې مسعود د دي نظر مخالف و، هغه واک د ځان له پاره غوښت. اوس چې مسعود نه شته، د کرزي د حکومت پر مهال عبدالله عبدالله او یونس قانوني امریکا ته ډاډ ورکړ چې دوی غواړی مشر یې پښتون او نور ډیر واک له دوی سره وي." وحید مژده

د مارشال فهیم اډیو ( بږغیز پیغام) چې د ۲۰۱۸ کال د مارچ میاشتې په نهمه او لسمه په په ټولنیزو رسنیو کې خپره شوه، هغه په ناستو کسانو بږغ کوې چې خبرې یې څوک ثبت نه کړي او کامرې باید نه وي.

مارشال فهیم چې یادي خبرې یې کیدای شي په ۲۰۰۸ کال کې کړي وي، داسي وایې:" دا دومره زیاتې ستونزې ولي، غواړم چې روښانه یې کړم، د افغانستان پښتانه چې له سلګونو کلونو راهیسې په هیواد کې واکمن وو، هغوی وایې چې د هیواد مشرتوب زموږ حق دی، تاسي (تاجک) غریب او بیچاره خلک واست او د حکومت مستحق نه واست.

زه (فهیم ) ورته وایم چې ورونو! موږ دا منو چې تاسي (پښتانه) شتمن واست او موږ غریب وو، ولي یو وخت (په افغانستان د شوروي اتحاد د حملې پر وخت)

تاسي هیواد پریښود او موږ غریب خلکو (تاجکو) د هیواد څخه دفاع وکړه [۱۹۲]، اوس نو موږ مستحق یو چې د هیواد واکمن و اوسو [۱۹۳].

ټولې ستونزې همدا دي، کله د طالب، کله د ډاکټر اشرف غني، کله د ډاکټر نجیب الله او کله د حکمتیار په څیره کې را ښکاره کیږي، اصل هدف همدا یو (واک ساتل) دی. او مقابل لوری چې دوی (پښتانه) یې تاجک بولي او په ځانګړې ډول پنجشیر، متوجه اوسئ، د حامد کرزي اوسني نظام د استاد رباني تر نظام قوي نه دی. ولي هیڅوک یې مقابل کې راکټونه نه ولي، ځکه چې حامد کرزی پښتون دی [۱۹٤].

[۱۹۲] تاسي لوستونکې د همدي کتاب او روسي جنرالانو د لیکل شوو کتابونو د لوستلو په رڼا کې دا پریکړه خپله کولای شئ چې د شوروي اتحاد سره جګړه چا وکړه؟ او له روسانو سره هوکړه لیک چا کړی و؟ او هغوی (روسانو) له چا سر ټکولی، چې په افغانستان کې یې د چا د لاسه ماتې خوړلي ده.

همدا ډول تاسي (لوستونکي) د انګریز لیکوالو او جنرالانو کتابونه او خاطرې لوستلای شئ چې هغوی په افغانستان کې د چا د لاسه ماتې وخوړله او بالاخره د امریکایي لیکوالو، سیاستوالو او جنرالانو کتابونه او خاطرې ولولئ چې هغوی ته په هیواد کې چا ماتې ورکړه.

زه (لیکوال) متعصب نه یم او د افغانستان جهاد کې زموږ تاجکو، ازبکو، هزاره، ترکمن او ټولو قومونو ګډه برخه درلودله، په ګډه او اتفاق سره یې یرغلګرو ته هر وخت ماتې ورکړي، ولي د فهیم صاحب دا خبره بیخي د منلو نه ده چې هغه وایې روسانو ته دوی ماتې ورکړه.

[۱۹۳] د روسانو په واسطه د ببرک کارمل د ډلې د پرچمیانو اتحاد له جمعیت اسلامي سره او د امریکا له خوا یې نه مخنیوی او یا مخالفت نه کولو همدوی (جمعیت اسلامي) واک ته ورسول او د کابل واک یې په خپل انحصار کې ونیوی، چې حکمتیار ورسره جګړه پیل کړه.

[۱۹٤] په انتقالي دوره کې مارشال فهیم د حامد کرزي مرستیال او د دفاع وزیر و، په لنډ مهاله دوره کې هم د کرزي سره ملګری او دفاع وزیر و، ولي د ۲۰۰۴ ز کال ولسمشرۍ ټاکنو پر مهال حامد کرزي خپل لومړی مرستیال احمدضیا مسعود وټاکی او بیا وروسته مارشال فهیم له دفاع وزارت څخه هم لرې کړل شو، له همدې امله و چې فهیم د حامد کرزي مخالفت کاوه او دغه ویډیو (خبرې) کیدای شي فهیم په ۲۰۰۸ کال کې کړي وي، خو د ۲۰۰۹ ز کال ولسمشرۍ ټاکنو پر مهال بیا مارشال فهیم د حامد کرزي لومړی مرستیال و او تر مرګ

که زه (فهیم)، استاد رباني او یا احمدشاه مسعود وای، په دویمه ورځ به د څلور اسیاب له خوا راکټونه را باندي ویشتل کیدل.

کله چې احمدشاه مسعود مړ شو، په لومړي وخت کې مو د احمدشاه مسعود د مرګ خبره پټه وساتله، ولي الحمدلله حالت زموږ په ګټه شو ۱۹۵، دوه ورځې وروسته په امریکا کې د ۱۱/۹ حمله وشوه، د نړۍ ذهنیت بدلون وکړ، امریکا او نړۍ پریکړه وکړه چې د طالب او القاعده په ضد جګړه وکړي. له موږ (فهیم) څخه یې غوښتنه وکړه ویې ویل چې موږ د طالب او القاعدې ضد جګړه کوو، موږ (فهیم) ورته وویل چې موږ عملاً په جګړه کې یو.

موږ وغوښتل چې له دې حالت (د امریکا له ملګرتیا) څخه استفاده وکړو، الله ج هدایت او مرسته وکړه، چې دوی (امریکا) وویل چې د طالب مقابل کې په ګډه (تاجک او امریکا) جګړه کوو، حالت داسي راغلل چې خپل دښمن (طالب) ته مو ماتې ورکړه، هغه دښمن چې موږ یې له کابل څخه شړلي وو، موږ مات کړ او

پوري په خپله چوکۍ پاتي شو او بیا به یې په غونډو کې د حکومت او حامد کرزي ښه یادونه کوله، په داسي حال کې چې د پخوا په نسبت په ۲۰۰۹ بیا د فهیم تر مرګ پوري حکومت ورځ تر بلي کمزوری کیدی او طالبانو په کابل کې بریدونه کول او راکټونه یې کابل ته راشړل. او ښکاره خبره ده چې د امریکایې پوځیانو د شتون او حامد کرزي د حکومت مخالفت په لومړیو وختونو کې طالبانو او حزب اسلامي وکړ او عملاً یې پښتون میشتو سیمو کې ور سره جګړې پیل کړي.

[195] مارشال فهیم د امریکا ملګرتیا او په افغانستان د امریکا د حملې کولو په اړه خواشیني او خفګان نه، بلکې دا یې توبه نعوذبالله د الله ج له لوري له دوی سره مرسته ګڼلي چې امریکا او دوی په ګډه طالبان له کابل څخه وایستل او د طالبانو پر ضد د امریکا د جګړې د دریځ په اړه فهیم دلته الحمدلله (د خدای شکر) ویلي.

مسلمانان څومره کمزوري شوي چې د خپل مسلمان ورور د وژلو او د مسلمان مقابل کې د امریکا د ملاتړ له امله خوښي څرګندوي.

تعقیب مو کړ[۱۹۶]، سره له دي چې نړیوال (افغانستان) ته راغلي وو، خپل شرایط یې درلودل [۱۹۷]. ولي موږ تصمیم درلود، هغه ډول طالب له کابل څخه وشړو کوم ډول چې یې موږ له کابل څخه شړلي وو. کابل ته ننوتلو.

ملګرو ملتونو ته مو وویل چې تاسي راشئ او مداخله وکړئ، موږ (تاجک) ورسره جوړه کوو، د ملګرو ملتونو استازي پوښتنه وکړه چې له چا سره جوړه کوئ، ورته مې وویل چې د افغانستان له پښتنو سره او د دوی استازی پاچا ظاهر دی، ملګرو متلونو مداخله وکړه، د بُن غونډه وشوه او انتقالي حکومت جوړ شو. موږ په خپل ټول توان او درایت سره ډیر لوی کار وکړ، ستاسي (تاجکو) له دروازو (کورونو او سیمو) څخه مو جګړه د (پښتنو) سیمو ته انتقال کړه، دادی ۸ کلونه کیږي چې جګړه هلته (د پښتنو ) په سیمو کې جریان لري[۱۹۸].

---

[۱۹۶] رښتیا هم په شمال کې په کورنو کې پښتانه د طالب په نوم وځپل شول، ځمکې او جایداونه یې ورڅخه غصب شول، ځینې شتمن پښتانه د شمال ټلوالې د قومندانانو له خوا نیول کېدل او د پیسو مقابل کې به بیرته خوشي کېدل.

هغه طالبان چې په شمال کې بند پاتې و، لاس په لاس خرڅیدل، د یو قومندان څخه به بل په پیسو اخیستل او بیا به یې د بندي طالبانو له کورنۍ سره اړیکې نیولې، د ډیرو پیسو (تر هغه نرخ لوړ چې همدې قومندان به طالب له بل شمالیوال څخه اخیستی و) مقابل کې به یې خوشي کول، د طالبانو د نظام تر نړیدو وروسته، همدا د شمال قومندانانو یو ډول سوداګري وه.

دارنګه په جنوب او جنوب ختیځ سیمو کې هم طالبان اړ او مجبوره کړل شول چې خپل کورونه پریږدي، ځکه د امریکا او افغان ځواکونو له خوا تر ښار لاندي وو، وژل کیدل، نیول کیدل او بندي کیدل.

[۱۹۷] نړیوالو او امریکا نه غوښتل چې شمال ټلواله (د فهیم) وسلوال کابل ته ننوځي، ولي فهیم په تکرار له امریکا څخه غوښتل چې د کابل د نیولو لپاره د طالبانو لومړۍ لیکې بمبارد کړي، همهغه و چې د فهیم وسلوال، په طالبانو د امریکا تر سخت بمبارد وروسته کابل ته ننوتل.

[۱۹۸] ولي د همدي اور لمبو، چې دوی د پښتنو د سوځولو لپاره بل کړی و، د تاجکو او ځانګړي ډول د فهیم ډیر نږدې مهم ملګري هم وسوځول په خپل لاس بل کړل شوي اور کې دوی هم وسوځیدل او لا هم سوځي.

فهیم وایې چې د دفاع وزارت د مخابرې ریاست مرستیال (ناصر) راته وویل چې کله مې د کندهار ولایت سره د مخابرې تماسونه ټینکول، په سګلونو اوازونه مې اوریدل چې یو بل سره یې په مخابرو کې روغبړ کاوه، ټول هغه طالبان وو چې پخوا به په تخار او شمالي کې جنګېدل. "

" پیټرټامسن، جیمز ریچي[199] او عبدالحق د ۲۰۰۱ ز. کال اګست میاشت کې د تاجکستان په کولاب کې له احمدشاه مسعود سره ولیدل، عبدالحق غوښتل چې مسعود او ظاهرشاه سره ملګري شي او حکومت لاس کې واخلي.

د شمال ټلوالې اوسني کسان به د مسعود لاره تعقیبوی یا نه، داچې نظامي واک به له دوی سره وي، تر ډیره فکر کیږي، چې همدا غواړي، ولي توانایې نه لري، دا ډول چې له حزب سره سیالي ولري او نور جهادي ګوندونو ته ضربه ورکړي، د احمدشاه مسعود وخت کې ددوی غوښتنه وه، ځکه احمدشاه مسعود لوی قومندان او استاد رباني یې رهبر وو.

د شمال ټلوالې کې به نور تکړه کسان هم را پیداشي، خو هغه لید لوری چې له احمدشاه مسعود او استاد رباني سره وو، ممکن له دوی سره به ځکه نه وي، چې د نړۍ سیاست او د هغوی د غوښتنو په نظر کې نیولو سره نه شي کولای، دوی به اوس یواځې خپل ګوند ته کار کوي. " سید داوود اغا

[199] پیټر ټامسن Peter Tomsen له ۱۹۸۹ تر ۱۹۹۲ پورې د افغانستان لپاره د امریکا ځانګړی استازی او سفیر و.

جیمز ریچې هم امریکایې و، له پیټر سره یوځای یې د طالبانو پر ضد له قومندان عبدالحق سره مرسته کوله.

## د احمدشاه مسعود مرګ

د مسعود مرګ لاهم معما ده، په دې اړه ځېړنې نه دي شوې، د بوسنیا څخه یوه عرب استاد سیاف ته ټلیفون وکړ، چې په عربي هیوادونو کې ستاسي د شمال ټلوالې په اړه ډېر ناسم خبرونه او راپورونه وركول كيږي، دوه ژورنالستان درځي، غواړي چې له احمد شاه مسعود او استاد رباني سره مرکه وکړي، ترڅو ستاسي په اړه د عربې هیوادونو د خلکو ذهنیت جوړ کړي، همدغه لامل و چې استاد سیاف د ژورنالستانو له پاره مسعود ته د ورتګ زمینه برابره کړه.

ابوهاني چې اصلي نوم يي مهند شبانه د مصر هیواد اوسیدونکی او په پخواني جهاد کې د استاد سیاف د تنظیم مربوط البنیان المرصوص عربي مجلې مسوول مدیر و.

ابو هاني وروسته بیا په زابل ولایت کې د میشتو عرب مجاهدینو پوځي مسوول و، په افغانستان کې د کمونیستي نظام ترسقوط وروسته ابوهاني بوزنیا هرزګونیا، له هغه ځایه سومالیې او وروسته چیچنیا ته ولاړی.

نوموړي په بوزنیا کې د اوسیدو په مهال هلته له یوې بوزنیایي میرمني سره واده وکړ.

د طالبانو د واکمنۍ پر مهال د ننګر هار اسلامي پوهنتون رئیس او بیا وروسته د طالبانو د لومړنۍ رسمي او مرکزي ورځپاڼې"شریعت" مسوول مدیر ښاغلی عبدالرحیم ثاقب وایې:" ابوهاني [۲۰۰] تکړه لیکوال او د عربي ادب مشهور ادیب و، په افغانستان کې د پخواني جهاد پرمهال د استاد سیاف له نږدې او باوري کسانو څخه و، له استاد سیاف سره یي خاصه مینه او له هغه سره يې د پخوانۍ پیژنګلوي

[۲۰۰] أبو هاني المصري د القاعده ډلې مخکښ غړی، په افغانستان کې له مجاهدینو سره یوځای د پخواني شوروي اتحاد د سرو لښکرو په وړاندې جنګېدلی. وروسته له طالبانو سره ملګری شو. کله چې پر افغانستان امریکا حمله وکړه، ابوهاني له افغانستان څخه ووت. وروسته يې په سوریه کې القاعده پورې تړلي د اسلامي جهاد ډلې مشرې کوله، د فبروري ۴مه ۲۰۱۷، ادلیب ښار ته نږدې د امریکا د بې پیلوټه الوتکې برید کې ووژل شو. د هغه د مرګ خبر امریکایې پوځیانو د فبروري پر ۸مه له سي اِن اِن څخه خپور کړ.

پر اساس بلجیمي ژورنالستانو کریم او عابد ته له احمد شاه مسعود او استاد رباني سره د ملاقات زمینه برابره کړې وه .

دواړه ژورنالستان لومړی کندهار ته ولاړل، د اطلاعاتو کلتور له خوا زه همدوی ته ور پېژندل شوی وم، چې په کندهار کې د بهرنیو چارو وزیر مولوي وکیل احمد متوکل سره د مرکې کولو او ژباړې په برخه کې مرسته وکړم، له ښاغلي متوکل سره د ابو هاني په شتون کې بې خونده مرکه وشوه، ښاغلي متوکل علاقه نه درلودله چې د دوی پوښتنو ته مفصل او سم ځواب ووایې، ډېری پوښتنې د اسامه بن لادن [۲۰۱] په اړه د متوکل [۲۰۲] نظر غوښتل او د هغه سره یې د مخالفت اوازو اړوند وي، متوکل لنډ ځوابونه ورکول، مرکه ډېر ژر پای ته ورسیدله، له میاشتو انتظار وروسته نوموړي دوه ژورنالستان احمدشاه مسعود ته ورسیدل."

مسعود خلیلي چې هغه مهال په هند کې د استاد رباني د حکومت سفیر او د احمدشاه مسعود او دغو دواړو بلجیمي خبریالانو ترجماني کوله د هغې لحظې د یواځینې ژوندې پاتې شوې شاهد په توگه داسې وایي:" تقریبا د غرمې یولس نیمې بجې وې چې احمد شاه مسعود خپل دفتر ته راغی او ماته یې وویل چې دوې اونۍ کیږي دوه ژورنالیستان را ته د مرکې په نیت منتظر دي، نن غواړم ستاسي په موجودیت

---

[۲۰۱] اسامه بن لادن د القاعده شبکې بنسټگر، د پخواني شوروي اتحاد پر وړاندي یې په افغان جهاد کې برخه اخیستي، د طالبانو ملگرتیا یې وکړه، د امریکا د مرین پوځیانو له خوا په ۲۰۱۱ز. کال د مئ میاشتې پر ۲مه د ۵۴ کالو په عمر د پاکستان په ایبټ اباد کې ووژل شو.

[۲۰۲] مولوي وکیل احمد متوکل د جهاد پر مهال د حرکت انقلاب اسلامي گوند سره پاتې شوی، دینې زده کړې یې د پاکستان د بلوچستان سېمه کې د حرکت انقلاب اسلامي اړوند مدرسه کې کړي، د طالبانو له مشرانو څخه وو، د ملا محمد عمر مجاهد سلاکار او بیا وروسته د بهرنیو چارو وزیر وو، د حامد کرزي د حکومت پر مهال یې دکندهار او باگرام زندان کې ۲ کلونه تیر کړي، اوس په علمي برخه کې په خدمت بوخت دی، د افغان بنسټ موسس غړی او د افغان پوهنتون رئیس دی، د کندهار ولایت د میوند ولسوالي د مورچې کلي اوسیدونکی دی، اوسمهال کابل ښار کې استوگن دی.

کې له هغوی سره وګورم، هماغه و چې زه او دی د واړه له یادو خبریالانو سره د مرکې په نیت دفتر ته ورغلو او هلته څنګ په څنګ سره کیناستو.

وروسته د انجنیرعارف [۲۰۳] په ملتیا دوه تنه ژورنالیستان اطاق ته را دننه شول، لومړي هغه یې ښه سپینه ځیره او جګه ونه لرله او دوهم یې مغولې شکله چاغ او ځواکمن ځوان و.

ما تري وپوښتل چې تاسي له کومې ورځپاني سره کار کوئ ؟ هغوی راته وویل مونږ له ورځپانې سره نه ؛ بلکې په اروپا او لندن کې د ځینو اسلامي مراکزو لپاره رپوټونه او مرکې تیاروو.

خلیلي وایي چې ما مسعود ته وویل چې دا دواړه خبریالان نه دي،خو ده ویل پریږده یې چې خپل کار وکړي.

احمد شاه مسعود له هغوی څخه د پوښتنو پاڼه واخیسته او هغه یې تر نظر تیره کړه، د هغوی ټول سوالونه د اسامه بن لادن په اړه ول ...

که تاسو له طالبانو څخه کابل ونیسئ له اسامه بن لادن سره به څه کوئ ؟

تاسي ولي اروپا ته د سفر پر مهال (۲۰۰۱ز کال) وویل چې اسامه بن لادن ښه مسلمان نه دی ؟

ایا تاسو هغوی ته د یوه لیډر / مشر په سترګه نه ګورئ؟

خلیلي وایي دغو پوښتنو زه بلکل په غوسه کړم، خو مسعود هغوی ته وویل چې مرکه مو شروع کړئ، کمره مین سمدستي د کمرې په عیارولو بوخت شو او داسې حرکات یې کول لکه یو پهلوان چې وي نه کمره مین .

---

[۲۰۳] انجنیر عارف د شمال ټلوالې د استخباراتي جال مسؤل او مشر و. پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته د لنډې مودې لپاره د استخباراتو مشر، چې وروسته یې ځای امرالله صالح ونیو. د ۲۰۱۵ په نیمایې کې د پنجشیر والي و.

هغه د کمري پايي ډيرې ټيټې نصب کړې او زه په دې چورت کې شوم چې هغه ولي کمره مسعود ته دومره ورنيږدې کړه ؟ ځکه د ده او د مسعود ترمنځ دومره فاصله وه چې اصلا په هغې کې عکاسي ناشونې وه.

د کمري ترعياريدو وروسته مسعود ويل پوښتنې شروع کړئ، هماغه و چې کريم په عربي ژبه لومړی پوښتنه داسې پيل کړه :

تاسو د افغانستان روان وضعيت څرنګه ارزيابي کوئ ؟

خليلي وايي ما د ژباړې په ډول لا د افغانستان کلِمه نه وه پوره کړې چې درز شو او يوه شين رنګه لمبه پرې راغله او له ځان سره مي وويل چې دا مي د ژوند وروستۍ لحظه ده نو مي الله الله ويل پېل کړل او له دې سره مي يو کمزوری لاس پر سينه را ولويده چې ممکن هغه د احمدشاه مسعود لاس و، نور بيحاله شوم، ليږ وروسته چې را په حال شوم په يوه پوځي الوتکه کې وم او څنګ ته مي د احمد شاه مسعود په وينو لت پت جسد هم پروت و چې نوموړی له انفجاره سمدستي وروسته وژل شوی و. ځکه د انفجار اصلي هدف دی و چې دقيقاً يي ټول تمرکز د ده په سينه او زړه باندې و[۲۰٤]. "

"د مقاومت د وخت مشران چې نومونه يې زما ياد کې پاتې دي؛ مارشال محمد قسيم فهيم، قومندان ګدا محمد خالد، خليل بختيار / خليل پيلوټ، امرالله صالح، اغا اتخمي د ايران د سپاه استازی [۲۰۵]، جنرال اميرجان پيلوټ د هوايې قواوو قومندان، حاجي رستم خان د مسعود د قوماندو قطعې مسؤل، ناصر د مخابرې مسؤل، جمشيد د ټيليفون مسؤل، د مسعود د خور زوی جنرال عبدالودود چې په تاجکستان کې نظامي اتشه و، ممکن يو يا دوه تنه نور هم وو، دوی ته مې وويل چې احمدشاه مسعود نور ژوندی نه دی، سر مو د لاسه تللی، سنګرونه بايد محکم

---

۲۰٤ د Ghost wars يا د پيريانو جنګ د سټيف کول کتاب، ۵۷۵مه پاڼه کې ليکل شوې.

۲۰۵ ښيې چې د شمال ټلوالي سره د جګړې په ليکو کې د ايران د سپاه پاسداران پوځيانو هم شتون درلود.

وساتو او خپل ځان او اوضاع کنټرول کړو، که خپل ځانونه کنټرول نه کړو، اوضاع هم نه شو کنټرول کولای، وړاندیز مې وکړ چې قسیم فهیم مشر او مسؤلیت ومني، پریکړه وشوه چې د مسعود ځای ناستی او زموږ مشر فهیم خان دی. پریکړه وشوه چې د مسعود د مرګ خبر په تدریجي ډول خلکو ته ورکول شي او پریکړه وشوه تر څو چې اوضاع تر کنټرول لاندي راځي، د مسعود جسد د تاجکستان خاورې په دننه کې ساتو او په مناسب وخت کې به یې بیرته هیواد ته جسد انتقال او دفن کوو، پریکړه وشوه چې د مرستندویه هیوادونو سره اړیکې ونیسو چې هغوی د مسعود له مرګ وروسته د مقاومت جبهې ملاتړ کوي یا نه؟ داچې خواجه بهاءالدین کې مسعود د قوماندانانو غونډه را غوښتې وه، له فهیم صاحب څخه وغوښتل شول چې غونډې ته ولاړ او هغوی ته ووایې چې مسعود زخمې دی. زما (ریګستاني) مسؤلیت داوو چې له مرسته کوونکو هیوادونو سره اړیکې، د مسعود د جسد لپاره ځای او د رسنیو ګنګس کول (چې د مسعود مرګ افشاء نه شي[206])، ځکه د رسنیو کارکوونکو هڅه کوله چې د مسعود په اړه معلومات ترلاسه کړي.

کله چې چورلکې ته نږدې شوم، فهیم صاحب ته مې وویل دوه خبرې لرم، خو وارخطا کیږي به نه، که خدای مه کړه جبهه ماتې خورې نو د پنجشیر له انجمن، پریان څخه به یوه لاره تر تاجکستان پورې خلاصوو، د تاجکستان له ولسمشر سره خبرې کوم چې په تاجکستان کې زموږ د کسانو لپاره ځای راکړي، که جبهې ماتې وخوړه؛ هغه خلک چې کولای شې تاجکستان ته له دي لارې ولاړ شي، دا اسانتیا به ورته چمتو شوې وي.

د احمد شاه مسعود جنازه مو کلاب[207] ته یوړه او هلته مو د مجبوریت له امله په یخچال کې وساتله، زه (صالح محمد ریګستانی) د تاجکستان ولسمشر (امام علي

---

[206] په (قوسونو) کې لیکل زما (لیکوال) له خوا د لنډې تشریح په موخه شوې.

[207] کولاب د تاجکستان څلورم لوی ښار دی، د تاجکستان کورنۍ جګړې پر مهال یاد ښار ډیر اهمیت درلود. ځینې مشهور چارواکي د همدې ښار دي او د تاجکستان ولسمشر امام علي رحمان هم په کولاب کې پیدا شوی.

رحمان) ته په همهغه شپه ورغلم، ومې لیدی، ډیر متوجه وو، د تاجکستان له هیواده باید د زړه له کومې مننه وکړو. هغه ته مې د ځای په اړه وویل چې زموږ د کسانو لپاره راکول شي، په ساده ډول یې وویل: محمد صالح! جا دارم و نان نه دارم. ولسمشر ته مې وویل چې خیر، ډوډۍ موږ پیدا کوو.

بیا مې (ولسمشر) ته وویل چې که وضعیت سم شو، موږ مسعود بیرته افغانستان ته وړو، د تاجکستان ولسمشر وویل چې: نه نه! زه نه پریږدم چې مسعود افغانستان ته یوسئ او د شپې یې کوم ځای کې ښخ کړئ، همدلته، په تاجکستان کې، همدا تاجکستان یې خپل وطن دی، همدلته یې دفن کوم، امانت به وی، هر وخت چې مو غوښتل یو یې سئ، زه یې په لویو مراسمو نیولو سره دفن کوم. " د صالح محمد ریګستاني - ویډیو

د احمدشاه مسعود مرګ طراح ابوهاني المصري (۴ فبروري ۲۰۱۷) د امریکا د بې پیلوټه الوتکې برید کې په سوریه کې ووژل شو.

" داسي خبرې هم کیږي چې د مسعود په مرګ کې د ده ځینې نږدې انډیوالانو لاس درلود، مګر دغه خبره خپلواکو سرچینو نه ده تاید کړې.

د شمال ټلوالې د بل مهم قومندان او د مسعود ځای ناستی مارشال قسیم فهیم مرګ (۹ مارچ ۲۰۱۴ ) هم یو ناڅاپي وو، ځینې شنونکې د هغه مرګ هم د ځینو خاصو اهدافو له پاره بولي، ولي د هغه کورنۍ په دې اړه کومه اندیښنه نه ده ښودلې." وحید مژده

پرته له دی چې زه (لیکوال) پریکړه وکړم چې شمال ټلواله په هیواد کې جګړې ته ورټیل وهل شوي او که په خپله خوښه جنګ او جګړه غوښتونکي وو، غواړم چې هغه اسناد او شواهد ستاسي مخکې کیږدم چې زما لاس ته راغلي، پریکړه یې تاسي لوستونکو ته پریږدم.

" کله چې د مسعود او حکمتیار ترمنځ جګړه وه، ځینو عربو مجاهدینو د حکمتیار خوا ونیوله او د مسعود سره یې جګړه کوله، د مسعود څخه پوښتنه وشوه چې تاسي د اسامه بن لادن په اړه څه نظر لرئ؟

مسعود وویل چې هغه یوه مجاهد دی، زه ورته احترام لرم او قدر یې کوم، ماته اوس هم د یو مجاهد او مسلمان په صفت منلی دی.

کله چې په خوست باندی د کلنټن اداری کروز توغندي وویشتل[۲۰۸]، غوښتل یې چې اسامه بن لادن له منځه یوسي، په دغه وختونو کې اسامه بن لادن له طالبانو سره یوځای شوی و او بیا هم د اسامه جنګیالي د طالبانو ترڅنګ د مسعود په خلاف جنګیدل، د امریکا ۷۵ کروز توغندیو [۲۰۹] ۷۵ میلیونه ډالر قیمت درلود، مسعود امریکایانو ته احوال واستاوی چې اتیا میلیونه ډالر مو مصرف کړل، هیڅ نتیجه یې ورنه کړه [۲۱۰]، ماته به مو ۱۰ میلیونه ډالر راکړي وای، اسامه مې ژوندی په لاس درکاوو، همدغه خبره اسامه بن لادن ته ورسیدله، بل داچې طالبانو د مسعود اړوند د ایران، روسیې او هند څخه شکایت درلود چې د دغه قومندان ملاتړ کوي او جنګي تجهیزات ورکوي، ځکه خو د پنجشیر درې نیول ستونزمن شوې و، اسامه

---

[۲۰۸] د اګسټ پر ۷مه ۱۹۹۸، د القاعده ډلې له خوا د تانزانیا په دارالسلام او کینیا په نایروبي ښار کې د امریکا پر سفارتونو بمي بریدونه وکړل چې په نتیجه کې یې ۲۲۴ کسان مړه او تر ۴۰۰۰ کسان ژوبل شول.

په غبرګون کې یې د امریکا د ولسمشر بِل کلنټن پر افغانستان او سوډان د کروز توغندیو د برید امر ورکړ. د اکسټ ۲۰مه، ۱۹۹۸، د امریکا له خوا په سوډان کې د الشفاء درمل جوړولو فابریکه باندي ۱۳ او د افغانستان خوست ولایت کې د القاعدي اړوند ژورې نظامي مرکزونو باندي له ۶۰ تر ۷۵ کروز توغندي وویشتل. د هر کروز توغندي قیمت نږدې یو میلیون ډالر دی.

[۲۰۹] د امریکا له خوا په سوډان او خوست باندي هغه مهال ۷۵ کروز توغندي وکارول شول.

[۲۱۰] په یوې دینې مدرسي هم توغندي ولګیدل او ۲۱ زده کوونکي / طالب العلمان پکې شهیدان شول.

طالبانو ته ډاډ ورکړ چې د مسعود چاره به وکړي، همهغه وو چې مسعود ته دوه تنه د ژورنالستانو په نوم پنجشیر درې ته ځې او کمرې ته انفجار ورکوي، مسعود او د ژورنالستانو په نوم دوه تنه گرده یوځای وژل کیږي." وحید مژده

"د احمدشاه مسعود مرگ کې ممکن د ډیرو جهتونو لاس لرل وي، هغه په افغانستان او سېمه کې په شخصیت بدل شوی و، هغه هم نظامي او سیاسي شخصیت و، په وروسته وختو کې پاکستان ورسره جوړ نه وو،، ایران هم په راتلونکې اوږد مهاله گټو کې فکر کاو چې نشنلسټ تاجک دی، د هزاره او شیعه مسئله د مسعود او عبدالعلي مزاري ترمنځ تیره شوي وه، ایران ورسره مذهبې ستونزه په نظر کې نیولي وه.

د احمدشاه مسعود تگ اروپا ته امریکا هم اندیښمنه کړي وه، هغوی فکر کاوه چې د اروپا له خوا جوړ شوی مشر دی.

د اگسټ پر ۲۰مه ۱۹۹۸، امریکا د خوست ژوره غونډ کې د اسامه بن لادن مرکز باندې د ۶۰ او ۷۵ ترمنځ کروز مزایل ورخوشي کړل، چې ځینې عربان او افغانان پکې ووژل شول، د یادو کروز راکټونو ارزښت اتیا میلیونه ډالر وو، تر همدې مهاله د القاعده مشر اسامه بن لادن په تنظیمې جگړو کې ښکیل نه وو، دا ډول د طالبانو په پلوې د مسعود سره هم دده کسان په جگړو کې په ښکاره نه وو لیدل شوې، اسامه بن لادن د تنظیمې جگړو پر مهال ویل دواړه لوري مسلمانان دي او عربانو غوښتل د مسعود او طالبانو ترمنځ سوله ووشي.

په ژوره له برید وروسته، احمدشاه مسعود امریکا ته وړاندیز وکړ چې اتیا میلونه ډالر مو مصرف کړل، مگر هیڅ ونه شول، ماته لس میلیونه ډالر راکړئ، اسامه بن لادن به ژوندی درته ونیسم، کله چې اسامه او عربان د مسعود له دي کاره خبر شول، هغوی سخت خفه شول .

بالاخره عربان هم جگړي ته راووتل، د مسعود د مرگ پلان یې جوړ کړ، مسعود ته نږدي کسان هم گرم او پټ دي او له مسعود سره د مرکې وخت چې چا نیولی وو

هغوی هم غلفت کړی او د مسعود د مرګ پړه پر یو لوري او یا هم یو او دوو کسانو اچول پرځای نه ده، ډیر مشکلات او دښمنان یې درلودل، مارشال فهیم خان ونه غوښتل چې د احمدشاه مسعود د مرګ ټوله ماجراء روښانه شي." سید داوود اغا

"ځینې کړی وایي چې د مسعود په مرګ کې خپله د امریکا لاس و، یو افغان الاصله امریکایې چې د مسعود له مرګ څخه مخکې په امریکا کې و، هغه وایې چې د مسعود له مرګ څخه څو میاشتې مخکې ماته یوه مهم امریکایې وویل چې مسعود به څه موده وروسته وژل کیږي." وحید مژده




احمد شاه مسعود په اروپا کې



د شمال ټلوالي ځواکونه، باګرام پوځې اډه کې - ډسمبر ٢٠٠١

## د امریکا او شمال ټلوالې ملګرتیا

په امریکا کې د ۱۱/۹ / ۲۰۰۱ ز. کال تر برید وروسته پر افغانستان د امریکا د حملې په اړه پلانونه او هڅې په ډاګه شوې. په اسلام اباد کې د امریکا د سي آی اې مشر ګرینر په ښکاره د طالبانود نظام د چپه کولو او اسامه بن لادن د نیولو هڅې پیل کړي، ګرینر له دي وړاندي هم د طالبانو په لیکو کې د درز اچولو او اسامه اړوند معلوماتو او یا وژلو هڅې کولي[۲۱۱].

تر ډیره د ګرینر هڅې د افغانستان پښتون میشت سیمو کې رواني وي، په اسلام اباد، پېښور او کوټه کې یې هم اړیکې له پښتنو سره وي، تر دي چې له طالبانو سره یې هم اړیکې جوړې کړي وي، ولي فکر کیږي چې هغه طالبانو غولولی وو او تر ټولو زیات پکې د طالبانو د هغه وخت د بهرنیو چارو وزیر ملا جلیل اخوند هغه مصروف ساتلی و.

شمال ټلواله چې د امریکا لپاره پرته له شک حتمې انتخاب و، که څه هم د امریکا د بهرنیو چارو وزارت کې د شمال ټلوالې اړوند ښه نظر موجود نه و، مګر ددي لپاره چې طالبان له منځه یوړل شي، امریکا بل انتخاب په دغسي حساس وخت کې نه درلود، امریکا فکر کاوه چې مسعود د اروپا سړی دی، دوېمه ویره یې دا وه چې د شمال ټلواله کې واکمن تاجک دي او د طالبانو مشران پښتانه دي، که تاجک کابل ته ننوځې د مسعود د مرګ او له طالبانو سره د جګړو په غچ اخیستنه کې به مصروف شي.

حزب اسلامي هم یو انتخاب کیدای شوای، مګر داچې حزب اسلامي له امریکا سره هم ښې اړیکې نه درلودلي، روسانو، هند او ایران هم ورڅخه خطر احساس کاوه، طالبانو هم پر حزب اسلامي باور نه کاوه، له همدې وجهې امریکا او متحدینو

---

[۲۱۱] د سي آی اې د جاسوس رابرټ ایل Robert L. Grenier ګرینر کتاب (۸۸ ورځې تر کندهاره) وګورئ. د چاپ کال یې ۲۰۱۵ ز دی.

هیوادونو یې ګردو شمال ټلوالې ته مخه کړه او دطالبانو د نظام د سقوط لپاره یې ورسره مرستې کولې.

"د امریکایې پیاده نظامیانو سره زموږ مخالفت په دې نه وو چې هغوی کافر او موږ مسلمان یو، یا هغوی یهود او نصارا دی، موږ مسلمانان یو، دا د اسلام خاوره ده، چې کفر دلته را نه شي، دا بحث نه و.

بحث داو چې که همدا پوځیان (امریکایان) زموږ هیواد ته را ننوځي، هیواد مو اشغال شوی ګڼل کیږي، پاکستان به طالبان تشویق کوي چې هیواد مو د امریکا پواسطه اشغال شوی او طالبانو ته بیا ځل انګیزه ورکوي، بیا ځل طالبان راځي او د پاکستان لاس خلاصیږي او پاشل شوې طالبان بیا ځل جګړې ته را ګرځي. په حقیقت کې هغه وخت له دې په بد تر موقف کې موږ (شمال ټلوالې) قرار درلود چې د امریکایې پوځیانو سره یو ځای د طالبانو په مقابل کې جنګیږو، یا خو بې طرفه شو چې امریکایان له طالبانو سره جګړه وکړي او یا ولاړ شو د طالبانو په صف کې د امریکانو ضد جګړه وکړو؛ هغه خبره (د امریکا ضد جګړه) چې مجاهدین ( د شمال ټلوالې ټیټ پوړي وسلوال) یې هر وخت وایې. حالت له بد څخه بدتر شو، مګر دا تیروتنه زموږ په غاړه نه ده او مارشال یې مخالف و[۲۱۲]. " د صالح محمد ریګستاني ویډیو

د سپټمبر د۱۱مې (۱۱/۹) له پېښې وروسته سمدستي د سي آی اې جاسوس کریس د تاجکستان د حکومتي چارواکو په مرسته د شمال له ځینو قومندانانو سره

[۲۱۲] دلته واضح شوې نه ده چې تیروتنه کوم څه ګڼي، ممکن د امریکایې پوځیانو سره د شمال ټلوالي یو ځای کېدل او د طالبانو په ضد جګړه کول به یې هدف وي. ځکه د شمال ټلوالي ډیری ټیټ پوړي وسلوال او د شمال ولایتونو ډیری پوهان او علما د شمال ټلوالي په مشرانو نیوکه کوي چې ولې د طالبانو په مقابل کې د امریکایې پوځیانو په څنګ کې ودریدل او امریکایان یې زموږ هیواد ته راوستل.

اړیکه ونیوله، دا ډول یې له هزاره قومندانانو سره هم اړیکه ونیوله او د ۵۰۰۰۰ ډالرو مرستې وعده یې له هزاره قومندانانو سره وکړه[۲۱۳].

"د اکتوبر ۲۵مه ۲۰۰۱ ز. کال د سي آی اې کسانو ته تاشکند او دوشنبې د دوی له هواء څخه د الوت اجازه ورکړه ترڅو پنجشیر ته داخل شي، په ۲۶مه د اکتوبر له تاشکند څخه دوشنبې ته ولاړل او هلته ورسره د شمال ټلوالې استازي ممتاز او یوه تجربه لرونکی پیلوټ نصیر یوځای شول، تر څو پنجشیر ته د تګ پر مهال او هلته په پنجشیر کې د دوی لارښوونه وکړي.

د سي آی اې اوه تنه، دوه امریکایې پیلوټان، یو میخانیک (ګیري شرون، ریک،ګریس، ایډ، ګریک، بک، سټان، هانک، فرانک، پاپی) او دوه افغانان په روسی چورلکه کې پنجشیر ته روان وو. " ۷۴مه پاڼه، ګیري شرون

"امرالله صالح چې د شمال ټلوالې له خوا په تاجکستان کې استازی و، له دو کلونو راهیسي له سي ای اې سره اړیکه کې و، ممتاز له هغه سره کار کاوه، صالح په انګلیسي پوهیدی او روسي یې هم لږ لږ زده وه، د پنجشیر و، هغه وخت ۲۸ کلن و[۲۱۴].

نصیر د روسانو او کمونستانو دواکمنۍ پر مهال په افغان هوایې پوځ کې پیلوټ و، کله چې د ډاکټر نجیب حکومت سقوط وکړ، هغه له شمال ټلوالې سره یوځای شو، ډیر ځله یې د مسعود لپاره هم الوتنې کړي وي.

[۲۱۳] د سي آی اې د جاسوس ګیري شرون کتاب First in Afghanistan

ژباړه یې (سي آی اې په پنجشیر کې – لاهور منګل)، له دې وروسته یوازې د پاڼو شمیره او ګیري لیکل شوی.

[۲۱۴] پر افغانستان د امریکا تر حملې وروسته، امرالله صالح په استخباراتو کې د بهرنیانو سره د اړیکو مسؤل و، وروسته د استخباراتو عمومي رئیس شو.

د ډاکټر غني د حکومت په لومړۍ دوره کې د لنډ وخت لپاره د کورنیو چارو وزیر او د مارچ ۹مه ۲۰۲۰ کې یې د ولسمشر لومړی مرستیال په توګه لوړه وکړه.

د سي آی اې د همدې وړي ډلې مشر ګيري ليکي:" زموږ لويديځوالو لپاره دغه کار ښايې نا اشنا ښکاره شي، مګر په افغانستان کې له يو رژيم څخه بل رژيم ته خپل اړخ بدلول هيڅ نا اشنا کار نه و." ۷۸مه پاڼه، ګيري

"د سپټمبر ۲۶مه، د ماسپښين ۲:۴۰ لومړی ميوري امريکايې د پنجشير استنه سيمه کې د رود په غاړه د شمال ټلوالې په کوچنې جوړ شوې ميدان کې له الوتکې کښته شو، دا نو د ۱۱/۹ څخه ۱۷ ورځې وروسته وو، چې د امريکا د سي آی اې ډله پنجشير ته را ورسيده.

د پنجشير استنه کې د شمال ټلوالې ښه مناسب موډرن ميلمستون و، هغه بهرنيو ژورنالستانو کاراوو، مګر د سي آی اې د ډلې د ښه امنيت خونديتوب له امله هغوی بهارک کې د مسعود ميلمستون کې اوسيدل. ۸۰او ۸۱مه پاڼې

د سي ای اې دغه اوه کسيز ګروپ چې د (ژامي ماتوونکي ګروپ) نوم ورته کارول کيدی، د شپې اته نيمې بجې يې د شمال ټلوالې د اسختباراتو له مشر انجنير عارف سروري سره ناسته درلودله او هغه ته يې په لومړی ليدنه کې ۵ لکه ډالر ورکړل.

انجنير عارف په روسي ژبه ښه بلد او انګليسي ژبه يې لږ زده وه، هغه د سي آی اې د ياد ګروپ مشر شرون وپيژندی، ځکه ۲۰۰۱ ز کال کې چې مسعود سره دوو د سي آې اې افسرانو (يو يې شرون و) پاريس کې کتلي وو، هلته انجنير عارف هم له مسعود سره په سفر کې ملګری وو. له مسعود سره مخکې وختونو کې هم ګيري شرون په ۱۹۹٦ سپټمبر کابل کې او بيا د ۱۹۹۷ز کال وروستيو کې په تالقان کې کتلي وو.

پاريس ۲۰۰۱ کال غونډه کې مسعود له فرانسې او نورو اروپايې هيوادو مرسته غوښتنه، د اروپايې اتحادېې د پارلمان له غړو سره يې د فرانس په ستراسبورګ کې ليدنه وکړه، دا هغه وخت و چې طالبانو د باميانو بوتان مات کړي وو، اروپايان سخت لړزيدلي وو.

ګيري شرون انجنير عارف ته وويل چې امريکا د القاعده له منځه وړلو او د طالبانو د نظامي او سياسي واک ختمولو لپاره کار کوي. او موږ د شمال ټلوالې له هر قوماندان سره معامله کوو، هغه خوښ نه و، ويل يې قسيم فهيم مشر دی، د فهيم د لارې بايد له

نورو قومندانانو (سیاف، خلیلي، عطاء، اسماعیل خان او دوستم) سره اړیکې ونیول شي، مګر زموږ پلان داوو چې له هر قومندان سره مخاخ معامله وکړو[۲۱۵].

سي آی اې له دوستم سره مزار کې، اسماعیل خان سره هرات کې او خلیلي سره بامیانو کې اړیکې ټینګې کړې وي، عارف ته مې وویل، دا وار به د ۱۹۹۲ کال په ډول امریکا دوی (افغانستان) ته شا نه کړي، القاعده او طالبان له منځه وړي، موږ به له جګړې وروسته هم د امن، سولې، اقتصاد او بیا رغونې لپاره کار کوو. ۸۹ تر ۹۴مې پاڼې. ګیري

د سي آی اې ډلې د سپټمبر په ۲۷مه د شمال ټلوالې له مشر او د احمدشاه مسعود له ځای ناستې قسیم فهیم سره مجلس درلود، د امریکا د حملې او د القاعده او طالبانو د له منځه وړلو پلان، د شمال ټلوالې سره د امریکا د هوایې، نظامي او اقتصادي مرستو خبره یې ورسره وکړه او فهیم ته یې یو میلیون ډالر نقد ورکړل. شمال ټلوالې ویل چې دوی د طالبانو او عربانو سره د جګړې لپاره ۸۰۰۰ جنګیالي لري.

سي آی اې له فهیم څخه د ۳۰ تنو افغانانو غوښتنه وکړه، تر څو هغوی ته روزنه ورکړي او د جګړې د لومړۍ کرښې د هغو سیمو چې طالبان دي، کوردینات یې ورته واخلي[۲۱۶].

فهیم په دي خوښ نه وو چې سي آی اې وار له مخه له دوستم او اسماعیل خان سره اړیکې نیولي وي، فهیم ته ګیري وویل چې له استاد سیاف سره هم لیدل غواړي، فهیم وویل چې سي آي اې ته له دغو کسانو سره د مستقیمو اړیکو اړتیا نشته، شمال ټلواله په یادو قومندانانو پوره واک لري. فهیم د ګډوډۍ او خپلسریو

[۲۱۵] د احمدشاه مسعود له مرګ وروسته هم د شمال ټلوالې مشر قسیم فیهم غوښتل چې د استاد سیاف په شمول، نور ټول لوی او پېژندل شوې قومندانان دي د دوی تر امر لاندي وي، مګر امریکایانو ور سره ونه منله.

[۲۱۶] معلومات نشته چې دا ۳۰ کسان بیا وروسته څه شول او دوی ته کومې دندې ورکول شوې.

ځخه اندیښنه او یادونه وکړه، ګیري وویل چې دا پریکړه سي آی اې کړي، موږ به له هغوی سره مخامخ اړیکې نیسو. او تاسي به خبروم.

ګیري لیکي: انجنیر عارف او ډاکتر عبدالله د نظامي قوماندان په ډول فهیم ته درناوی درلود، مګر په سیاسي برخه کې یې پر هغه باور نه درلود، ممکن غوښتل یې چې د طالبانو له ماتې وروسته سیاسي واک دوی واخلي، په سیاسي ډګر کې دوی د فهیم له مشرتوب سره خو ښ نه وو. ۹۸ تر ۱۰۶ مې پاڼې. ګیري

ګیري او ډلې یې د سپټمبر له ۲۷مې د اکتوبر تر ۲۶مې پوري له ۴۰۰ څخه زیات طالب ضد څارګر راپورونه د پنجشیر سیمې اوسیدونکو افغانانو په مرسته برابر کړي وو، د ګیري د ډلې کسان لږ وخت لومړیو کرښو ته بیول وځنډیدل، ځکه هلته په لومړۍ کرښه کې د شمال ټلوالې سره د ایران د انقلابي قول اردو د ګارد IRGC دوو څارونکو کار کاوه، دوی نه غوښتل چې په دي وخت کي ایرانیان په امریکایانو خبر شي. ۱۱۵مه پاڼه، ګیري.

کریس له استاد سیاف سره مستقیم تماس نیولی و، سیاف لیدنې ته لیوال و، مګر عارف چې خبر شو، هغه خوښ نه و. سیاف په ګلبهار کې اوسیدی. ۱۱۶مه پاڼه، ګیري

ګریک او کریس له سیاف سره د سپټمبر په ۲۸مه لیدنه درلوده، سیاف له دوی سره په انګلیسی خبري کول خوښول.

سیاف له سي آی اې سره د همکارۍ د څرنګوالي پرمشخصاتو کې تت او بې وعدې ښکاره شو. سیاف د ظاهر شاه اړوند د امریکا ملاتړ غوښت چې هغه راشي او واک ترلاسه کړي[۲۱۷].

[۲۱۷] له پخوانی شوروي اتحاد سره د افغانانو د جهاد پر مهال استاد سیاف د پاچاظاهر خان یو له ډیرو سختو مخالفینو څخه و، استاد سیاف به ویل چې پاچا ظاهر خان کافر دی، ځوک یې را څخه مسلمان کولای نه شي، له هغه سره په لاس روغبړ کول ناروا دی.

سیاف له موږ سره ژمنه وکړه، څو د بن لادن ټینګ ملګری او د القاعدي دویم کس ډاکټر ایمن الظواهري په نیولو کې راسره مرسته وکړي، خو کوم مشخص څه تر لاسه نه شول.

سي آی اې سیاف ته یو لک ډالر ورکړل، هغه واخیستل، سیاف وویل لومړی ځل دی چې له چا څخه مخامخ پیسي اخلم[218]. مګر فهیم د یو میلون ډالرو هغه درونډ صندوق خپله وانه خیست، د هغه ملګرو پسې ور وړی. ۱۲۰ تر ۱۲۲مې پاڼې. ګیري.

---

د جولای پر ۲۰مه ۲۰۲۰، ملا عبدالسلام ضعیف ما (لیکوال) ته وویل: زه په پېښور کې وم، د جمعې لمانځه ته د پبو کیمپ کې د اتحاد اسلامي اړوند جامع مسجد ته ورغلم، استاد سیاف راغی، خبرې یې پیل کړي، هغه وویل:
"لویدیځوال غواړي چې زموږ د جهاد ثمره له منځه یوسي، زموږ ازلي او بنیادي دښمنان غواړي چې ظاهر شاه واک ته ورسوي. ظاهر شاه هغه کافر دي چې ارتداد یې مکرر او څو ځله واقع شوی، هغه هیڅ وخت نه شي مسلمان کیدلای.
که چا ولیدل چې استاد سیاف له ظاهر شاه سره ناست دی، دا فکر دي نه کوي چې ظاهر شاه مسلمان شوی، و دي وایې چې استاد سیاف کافر شوی."

[218] د جولای پر ۲۰مه ۲۰۲۰، ملا عبدالسلام ضعیف ما (لیکوال) ته وویل:"موږ (متوکل صاحب، حاجي اکبر اغا او ضعیف) له استاد سیاف سره ناسته درلودله، هغه د طالبانو له خوا دوی ته د متوجه ګواښونه یادونه وکړه.
ما (ضعیف) ورته وویل چې هیواد اشغال دی، تاسي همدا اعلان وکړئ چې هیواد مو د امریکایانو له خوا اشغال شوې، له طالبانو سره ستاسي ستونزه موږ حل کوو. او که هیواد اشغال نه وي، هم موږ ته ووایاست.
استاد سیاف قراني او نبوي احادیث پیل کړل، ډیره هڅه یې وکړه چې وښیې هیواد اشغال نه دی، مګر ونه توانېد چې دا ثبوت کړې چې هیواد اشغال نه دی.
له دلایلو وروسته موږ ورته وویل چې اوس څه وایې، هیواد اشغال دی کنه؟ استاد سیاف بالاخره وویل چې هو! هیواد اشغال دی.

عارف ته سي آی اېې ۱۷۰۰۰ ډالر د موټر رانیولو لپاره چې تیل انتقال کړي او ۵۰۰۰ ډالر د ۱۷ ټنه د چورلکو د پاکو تیلو لپاره ورکړي و، مګر موټر او تیل کله هم وانه خیستل شول. او ۲۲۰۰۰ ډالر عارف خان خپل ځان ته وګرځول.

ګیري لیکي: کله چې په ۲۰۰۲ جنوري میاشت کې کابل ته دعارف خان نوي دفتر ( د استخباراتو عمومي ریاست) ته راغلم، انجنیر عارف ته مې وویل چې هغه موټر او تیل دري (پنجشیر) ته کله هم راورسیدل؟ هغه وخندل او ټوکه یې پر ما وکړه. ۱۳۹مه پاڼه

د امریکا پلان وو چې د اکتوبر پر ۲مه امریکایې الوتکې بمبارد وکړي، مګر بمبارد وځنډیدی.

د الفا ډلې مشرې آر جې کوله، هغه په مزار کې له دوستم سره مرسته کوله، د سي آی اېې له کارکوونکو سره یوه هم د شلټر نو موسیسي دبندي کارکونکو د خلاصون موضوع وه، دغه کسان طالبانو د ۲۰۰۱ اکتوبر ۳مه په کابل کې عیسویت ته د تبلیغ له امله بندیان کړي وو.

د اکتوبر پر اوومه د شپې ۹ بجې امریکا د ولسمشر جورج بوش په امر لومړی بمبارد کابل کې د هوایي رادار دستګاوي، د طالبانو او عربانو پر نظامي ځایو پیل شوې، په کابل کې درې هدفونه، په ټول افغانستان کې ۳۱ هدفونه ویشتل شوې وو.

کابل کې د امریکا له بمبارد سره سم د امریکا د بهرنیو چارو او پاکستان اندیښنې هم راپورته شوې چې شمال ټلواله به کابل ته ننوځي او هلته به غچ اخیستنه او د واک انحصار وکړي. ډاکټر عبدالله ویل چې دا د پښتنو او پاکستان تبلیغات دي چې غواړي د شمال تاجک او نور لږکي له صحنې څخه جلا او له پامه وغورځول شي. همدا تبلیغات دي چې شمال ټلواله به کابل کې د واک انحصار او غچ واخلي.

---

موږ غوښتنه ورڅخه وکړه چې همدغه اعلان دي وکړي، مګر استاد سیاف وویل چې دا کار نه شم کولای."

د اکتوبر پر دیار لسمه، سهار دوه نیمې بجې د خواجه بهاء الدین سېمه کې د شمال ټلوالې وسلوالو لپاره د دوو سي -۱۷ ډوله امریکایې الوتکو پواسطه خوراکې مواد و غورځول شول. خواړه چې ځمکې ته رسیدلي وو، بوتلونه چاودلي او خواړه خراب شوې وو. شمال ټلواله په دي کار خفه ښکاریده، ځکه د شمال ټلوالې قومندان جنرال بریالي خان له ۱۰۰ زیاتو کسانو او ۵ لویو موټرانو سره د خوراکې موادو ځای ته ورغلي وو، د سیمې خلکو د خواړو هغه پاتې خراب بوتلونه د ورځې په رڼا کې ټولول.

شمال ټلوالې ټینګار کاوه چې اړین پوځي اکمالات او خوراکي مواد له هوا څخه ورته ورکول شي، ۱٦ اکتوبر بیاځل دوی ته خواړه ولویدل او جنرال بریالی خان خوښ وو.

د اکتوبر ۱۳مه پنجشیر ته دوه د سي ای اې نور افسران ( فرډ او براډ ) هم ورسیدل، دا ډول د اکتوبر ۱۵مه او ۱٦ شپه A ګروپ امریکایې پوځیان په خپل یونیفورم کې چې د هوایې بمبارد له پاره د لایزر په واسطه د هدف په نښه کولو دنده به لري پنجشیر ته را ورسیدل.

د اکتوبر تر نیمایې پوري درې میلونه ډالر ویشل شوې وو او د سي اې اي کسانو ته نوې پیسې را رسیدلي وي چې د شمال ټلوالې قومندانانو ته یې په بېلابېلو وختونو کې وویشي. ۱۵۱ تر ۱۸۱مې پانې، ګیري

داچې د اکتوبر ۱مه له هوا څخه ځمکې ته د امریکایې خواړو لویدل لړ او په سم ډول نه وو، له دي کبله ګیري غوښتل چې د شمال ټلوالې مشرانو ته د نویو را رسیدلو پیسو څخه ۵ لکه ډالر سمدستي ورکړي.

د سي آی اې کسانو په ۳۳ورځو کې ۴،۹ میلیونه ډالر د شمال ټلوالې کسانو ته ویشلې وو.

سي آی اې به هر مجلس کې فهیم خان ته ویل چې امریکا ستاسي سره کار ته دوام ورکوي، مګر داچې د ډاکټر عبدالله له خوا غوښتنه کیده چې امریکا ته سفر وکړي او هلته د بهرنیو چارو وزارت له مامورینو سره وګوري، ولې د بهرنیو چارو

وزارت د هغه تګ ته منفي غبرګون درلود او په شمال ټلواله یې باور نه کاوه، موږ باید دوی ته د امریکا د مرستو اړوند ویلي وای.

د اکتوبر د ۱٦مې وروستیو وختو کې د امریکا د الفا ګروپ اته پوځیان او استخباراتي کسان مزار ته ورسیدل او د اکتوبر پر ۱۷مه له دوستم ځواکونو سره یوځای شوې وو. دي کار عطاء نور خفه کړي و او منفي غبرګون یې ښودلی و، سي آی اې غوښتل د دوستم او عطاء ترمنځ حالت سم کړي، د دي لپاره سي آی اې عطاء ته ۲۵۰۰۰۰ زره امریکایې ډالر ولیږل، داچې فهیم د شمال ټلوالې مشر و، هغه ته یې هم د اکتوبر پر ۱۷مه ۱٫۷ میلیونه ډالر ورکړل.

داچې امریکایې پوځیان پنجشیر کې له خپل یونیفورم سره ګرځیدل، شمال ټلوالې یې پخوا هم په اړه اندیښنې ښودلي وي، یو ځل بیا یې وویل چې فهیم ویره لري چې د پنجشیر ولس که امریکایې پوځیان په یونیفورم کې ګوري، بد تاثیر به ولري او دا ډول استاد رباني ته هم قناعت ورکول په کار ده. ۲۰۱ تر ۲۰۵ مې پاڼې.

د دوستم او عطاء ترمنځ حالت ترینګلي ښکاره کیدل، سي آی اې هم د حالاتو ښه کولو هڅې کولي، د عطاء او دوستم ترمنځ غونډه وشوه، د دوستم پریکړې چې عطاء ته یې وویل چې ټولې وسلې او مهمات چې امریکایان راکوي، په مساوي ډول به یې سره ویشو، ټول یې هک پک کړل. ۲۱۲ او ۲۳۵مه پاڼه. ګیري

۱۹ اکتوبر چې د مسعود د مړینې ۴۰ مه ورځ وه، شمال ټلوالې یې په مرګ غمرازي کوله، تیره شپه د ۵۵۵ ګروپ ۱۱ تنه امریکایان هم پنجشیر ته رارسیدلي وو، او سهار عارف خان بیا ټینګار کاوه چې په کابل دي امریکا درنې بمبارۍ وکړي، تر څو د طالبانو او عربانو لومړۍ کرښې ماتې شي.۲۱۵مه پاڼه، ګیري

د شمال ټلوالې کسانو ویل چې طالبانو مورال دلاسه ورکړی، مګر د شپې یو ناڅاپه د سي آی اې او امریکایي پوځیانو د هستوګنې ځای ته ډزې پیل شوې، د کلاشینکوف ډزې وي، امریکایان هم په اندیښنه کې وو، د برید د امکان له امله یې په میلمستون کې د مقابل برید لپاره ځایونه په نښه کړل، کله چې ممتاز ورته راغی،

امریکایانو ته یې ویل چې د واده ډزې وې، امریکایانو وویل چې واده کې خو هوایې او ممکن تر ۵ دقیقې زیاتې ډزې نه وی، بیا ممتاز ومنله چې جګړه وه، هغه وویل چې طالب بندیان له بندي خانې تښتیدلې وو، مګر داسې نه وه، هلته له طالبانو سره جګړه وه. ۲۳۱مه پاڼه. ګیري

د اکتوبر ۲۱مه عارف خان امریکایانو ته وویل چې د شمال ټلوالې مشران له تاسې غواړي چې د سي ای اې کسان باید له دوستم څخه را ووځي. مګر امریکایانو ورته وویل چې دا د سي آی اې د مرکزي دفتر پریکړه ده. ۲۳۳مه پاڼه. ګیري

د اکتوبر پر ۲۳مه دوستم د سي آی اې او امریکایې پوځیانو په ملګرتیا د مزاري شریفي اړوند سېمه کې پر طالبانو حمله وکړه او پرمختګ یې وکړ. ۲۵۵مه پاڼه

د اکتوبر پر ۲۴مه یوځل بیا عارف خان له امریکایانو سره د فهیم اندیښنه شریکه کړه، چې د امریکایې ځانګړې ځواکونو له شتون څخه خلک خبریږي، د امریکایې پوځیانو د یونیفورم نه کارولو غوښتنه یې وکړه، مګر امریکایانو کله منله. ۲٦٦مه پاڼه

د اکتوبر۲۵ مه چې قومندان عبدالحق د مرګ اوازه شوه، پر شمال ټلواله یې هم تاثیر درلود. ۲۷۸مه پاڼه

په جنوب کې هم سي آی اې خپلې هڅې رواني ساتلې، د سي آی اې کارکونکي ګریک د پاکستان کوټه ښار کې د اکتوبر په وروستیو کې له حامد کرزي سره ولیدل، وروسته په ارزګان کې د سي آی اې د ټیم د مشر په توګه له کرزي سره پاتې شو او د طالبانو ضد جګړه کې یې له کرزي سره په ترینکوټ کې مرسته کوله. ۲۸۳ او ۲۹۱مه پاڼه. ګیري

تر دې له مخه له حامد کرزي سره ګرینر مسلسل لیدني کړې وې، دا ډول د سي آی اې بل مامور فرانک هم د کرزي سره د هوایې ځواک، وسلو او خواړو چمتو کولو لپاره کار کاوه.د ګرینر کتاب (۸۸ ورځې تر کندهاره)

۳۰ اکتوبر فهیم په دوشنبې کې د فرانک سره د هغه په لویه نظامي – سي ۱۷ ډوله الوتکه کې ولیدل، فرانک له فهیم څخه په کابل د برید طرحه وغوښتله، ولې

له فهيم سره قانع کوونکي طرحه نه وه، فرانک پري فشار راووړ، فهيم ويل چې د سي آی اې له خوا پر طالبانو او عربانو د بمبارد وعده ورسره شوې، مگر درنې بمبارۍ لا هم نه دي شوې، هغه ويل عرب او طالبان قوي دي. په تخار او تالقان کې د طالبانو ضد د بريد پلان هم فرانک وغوښت خو له فهيم سره نه وو.

فهيم په ښکاره ډول فرانک ته وويل چې د ده ځواکونه په يواځې نه شي کولای چې د طالبانو او عربو دفاعي کرښې ماتي کړي، که هغه دا ځواک درلودلای نو هغه به لا له وړاندي خپله بريد ترسره کړی وای. ۳۱۶مه پاڼه. گيري

د نومبر لومړي ورځ په مزار شريف باندي درنه بمباري وشوه، فهيم به ويل چې ولي په تخار او کابل بمبارد نه کيږي چې مزار کي کيږي، هلته دوستم دی.

مزار او کندز له طالبانو څخه ونيول شول، طالبان وارخطا وو، د نومبر پر ۱۰مه عارف خان د سي آی اې جاسوسانو ته و ويل که فهيم ته د دوستم او عطاء په ډول پوځي مرسته وشي، په دوو او دريو ورځو کې کابل نيسي، موږ پوښتنه کوو چې د دغه ځنډ تر شا کوم سياسی دليل شته؟ هغه وويل چې باميان کې هم له کريم خليلي سره د سي آی اې يو گروپ کسان شته او هلته بمبارد کيږي. ۳۲۰ تر ۳۳۸مې پاڼې، گيري.

د نومبر پر ۱۱مه په تخار کې د جنرال بريالي پوځيانو بريدونو ته چمتووالی نيوی، تخار ونيول شو. له دي وروسته سمنگان، شبرغان، سرپل او فارياب هم د شمال ټلوالې کسانو ونيول، دا ډول هرات هم د اسماعيل خان ځواکونو ونيوی، دا رنگه غور، فراه او نيمروز هم سقوط وکړ.

د کابل په لور هم د شمال ټلوالې پرمختگونه کيدل، په کابل درنې بمبارۍ پيل شوې وي او د نومبر پر ۱۴مه د شمال ټلوالې وسلوال کابل ته ننوتل[۲۱۹]." گيري شرون له ۲۴۱ تر ۳۶۳مې پاڼې. گيري

---

[۲۱۹] د جولای ۲۵مه ۲۰۱۹، د استاد سياف د هغه وخت مشهور قومندان او وراره ممتاز ما (ليکوال) ته وويل: "مارشال فهيم له امريکايانو سره ژمنه کړي وه چې له وسلو سره به کابل ته د شمال ټلوالې کسان نه ننوځي، اود کابل ښار کنټرول به نړيوالو ځواکونو سره وي، کله چې

په کندز کې تر ۷۰۰۰ زیات طالبان او نږدې ۷۰۰ بهرني طالب پلوه جنګیالي دوستم ته تسلیم شول، دوستم د هغوی سره د ژوندي خوشې کیدو وعده کړې وه، مګر په کانتینرونو کې یې واچول او د کانتینرو دروازې یې پسې بندي کړې، ترڅو چې یې مزار او کلاجنګي ته رسول، لوږه سلنه د تسلیم شوو طالبانو د اکسیجن د نشتوالي له امله مړه شوې وو، دا ډول د طالبانو ځینې مشران یې مزار کې له ځان سره وساتل او تر ۵۰۰ زیات طالبان او بهرني جنګیالی یې د جنګې کلا ته یوړل، د بهرنیو اسلامپالو جنګیالیو مشران یې هم مزار شریف ښار کې وساتل.

دوستم د طالبانو او بهرنیو جنګیالیو مشران امریکایانو ته ژوندي وسپارل او په کلا جنګي کې د سي آی اې یو کارکونکی د زندانیانو له خوا ووژل شو، بیا وروسته امریکایانو له پاڅه بمبارد او د دوستم کسانو په کلاشینکوفو او پیکا زنداني طالبان

---

استاد سیاف د مارشال فهیم او امریکا له دغې معاملې خبر شو، هغه ډیر خفه و او نه یې غوښتل چې یوازې (امریکا/ناټو) پوځیان د کابل ښار کنټرول په لاس کې واخلي، کله چې زمونږ (شمال ټلوالې) وسلوال کابل ته رانږدې شول، د امریکایانو له خوا د ۱۰۰۰ کسانو لپاره مارشال فهیم ته د پوځیانو یونیفورم ورکول شوی وو او ورڅخه غوښتل شوي و، چې کله د شمال ټلوالې کسان کابل ته ننوځي، پرته له وسلو به په یاد یونیفورم کې کابل ته ننوځي، مارشال فهیم د ۴۰۰ کسانو یونیفورم مونږ (استاد سیاف) ته راکړ، استاد سیاف زه (ممتاز) په پټه د شپې خپل ځای ته ور وغوښتم، ویې ویل چې په هر ډول کیږي، باید مخکې له دې چې امریکایې پوځیان کابل ته ننوځئ، همدا نن شپه تاسي کابل ته داخل شئ او هیڅوک هم پوه نه شي، داچې زه په سېمه کې ډیر بلد وم، له خپلو ۴۰۰ وسلوالو کسانو سره همهغه د امریکایانو له خوا چمتو شوې د پوځیانو یونیفورم کې کابل ته داخل شو، کله چې د مارشال فهیم وسلوال خبر شول چې د ممتاز کسان له وسلو سره کابل ته ننوتلي، نور نو هرې ډلې هڅه کوله چې ژر له وسلو سره کابل ته را ننوځي، همهغه و چې د امریکا دا پلان بریالی نه شو، چې کابل له دوی سره وي او نور وسلوال کابل ته داخل نه شي. زمونږ د دې کړنې له کبله د مارشال فهم او امریکایانو ترمنځ بې باوره پیدا شوه، امریکایان په مارشال فهیم باندي په غوسه و، بیا وروسته مارشال فهیم زما (ممتاز) په هکله استاد سیاف ته شکایت کړی و."

او بهرني جنګيالي ويشتل، نږدې ۴۰۰ يې ووژل شول او پاتې يې بيا دوستم د تيلو په اور کې کباب کړل[۲۲۰].

د نومبر ۵مه ۲۰۱۸، حاجې محمد عمر[۲۲۱] ما (ليکوال) ته وويل:"کله چې امريکا پر افغانستان حمله وکړه، په کندز کې طالبان محاصره پاتې شول، زموږ هڅه دا وه چې طالبان جمعيت اسلامي ته تسليم شي او زما سره په دې اړه مارشال فهيم، د شمال ټلوالې مشر هم اړيکه نيولې وه، زموږ دليل داوو چې د جمعيت قومندانان مسلمانان او پخواني مجاهدين دي، خو که دوستم ته طالبان تسليم شي، هغه پخوانی کمونسټ دی او خامخا به ضرر ورته ورسوي.

په کندز کې د حزب اسلامي پخواني قومندان هم چې له طالبانو سره ملګري شوي وو، ارباب هاشم خان او امير لطيف وو، د هغوی هڅه دا وه چې طالبان جنرال

[۲۲۰] په دې اړه د زيات معلومات او تفصل سره د ملا عبدالسلام ضعيف کتاب (طالبان له کندهاره تر مزاره) له تسليم سوو بنديانو سره د شمالي ټلوالې چلن تر عنوان لاندي له ۳۲۵مې پاڼې څخه تر ۳۲۹مې پاڼې پورې وګورئ.

[۲۲۱] حاجي محمد عمر د طالبانو په وخت کې د کندز والي و، تر ده له مخه يې ورور حاجي عارف خان په کندز کې د طالبانو والي و.

له پخواني شوروي اتحاد سره د جهاد پر مهال له جمعيت اسلامي سره ملګري و، د استاد رباني د حکومت پر مهال يې هم په کندز کې وسلوال او نظامي قوت درلود.

حاجي عارف خان له طالبانو سره د کندز په نيولو کې مرسته وکړه، وروسته په پېښور کې د احمدشاه مسعود د کسانو له خوا ووژل شو، پر ځای يې حاجي محمد عمر د ملا محمد عمر مجاهد له خوا د کندز والي وټاکل شو.

پر افغانستان د امريکا له حملې وروسته، حاجي محمد عمر د ولسمشر حامد کرزي سلاکار وزير، له ۷ ډسمبر ۲۰۰۵ تر ٦ ډسمبر ۲۰۱۰د ولسي جرګې غړی، په اپريل ۲۰۱۹ کې بيا ځل په ولسي جرګه کې د کندز د خلکو استازی شو، اوس مهال له استاد سياف سره نږدې اړيکې لري او له جمعيت اسلامي سره يې اړيکې تر ډيره پرې شوې دي.

دوستم ته تسلیم شي، ځکه جنرال دوستم یو وخت له حزب اسلامي سره د همږغی شورا کې یو ځای و.

ملا داد الله اخوند دي ته ترجیح ورکوله چې جمعیت اسلامي ته تسلیم شي، مګر ملا فاضل اخوند د ارباب هاشم خان او امیر لطیف خبره ومنله، همهغه وو چې ملا دادالله ویل چې اول زه له کندز څخه وځم، هغه پوهیدی چې د دوستم به د خپل اعتبار ساتلو له امله هم له لومړني ګروپ وسلوالو سره ممکن بد چلند ونه کړی، ملا داد الله ولاړ او بیا تری تم شو، خو وروستني طالبان د دوستم له خوا بې وسلې ونیول شول.

د امریکایې الوتکو له خوا سخت بمبارد روان وو، زموږ نظامي قرارګاه یې نه بمباردوله او طالب مشران ملا فاضل اخوند، ملا نورالله نوري، ملا دادالله به همدلته راتلل[۲۲۲].

د محاذ ملي ګوند پخوانی قوماندان میرزا ناصري چې له طالبانو سره یو ځای و، په وروسته وخت کې پېښور ته تللی و، هلته پیر سید احمد ګیلاني سټلایټ ټلیفون ورکړی و او هغه یې امریکایانو ته معرفي کړی و، ناصري ته یې ۲لکه ډالر او جي پي ایس اله ورکړی وه، زموږ د قرارګاه نقطې ناصري واخیستلي، امریکایانو ته یې راپور ورکړ چې دلته زموږ ملاتړي وسلوال دي، همهغه و چې امریکایانو زموږ پر دي مهم پوځي مرکز بمبارد نه کاوه.

کله چې له کندز څخه ملا فاضل او ملګري یې رخصت شول، د یرګنګ څخه یې ما (محمد عمر) ته ټلیفون وکړ، ویې ویل چې وضعیت خراب دی او بیا یې له ما سره اړیکه ونه نیول شوه."

داچې ولي طالبان دوستم ته تسلیم شول، ملاعبدالسلام ضعیف وایي:" ظاهر شاه ځینو مشرانو طالبانو ته پیغام استولی وو چې دوستم ته دي تسلیم شي، ترڅو طالبان ژوندي خپلو کورونو ته ولاړ شي. دا ډول دوستم بیا په یوه مرکه کې ویلي وو چې د طالبانو د وژلو خبره ورته ظاهر شاه کړي وه، هغه ورته ویلي وو چې دا خلک د جامعي میکروب دی او له منځه یې یوسي."

---

[۲۲۲] کله چې په مزار شریف کې پر طالبانو محاصره را تنګه شوه، ملا نورالله نوري او ملا فاضل اخوند د ملګرو ملتونو د یوه افغان کارکوونکي په مرسته، د ملګرو ملتونو په دوو موټرو کې کندز ته وړل شوې وو.

ښاغلی ضعیف زیاتوي:"طالبانو ویره درلودله که شمال ټلوالې ته تسلیم شي، هغوی به د احمدشاه مسعود د وژنې په غچ کې ډیری طالبان ووژني، کوم چې د طالبانو ناسمه پریکړه گڼل کیږي."

انجنیر احمد شاه احمدزی وایي:"د شمال ټلوالې اوسنی حالت داسې دی چې موږ څو تنه (استاد محمد زمان مزمل، حاجي فریداحمد او زه احمدزی) له طالبانو سره کیناستلو، هغوی د اوه نفرو سره د لیدو او خبرو کولو لپاره لست راکی[۲۲۳]، زه قانوني ته ورغلم، خبره مي ورسره وکړه، ورته مې وویل چې جنگ کوئ یا سوله، ویې ویل اوس مو جنگ له وسه نه کیږي، حال جنگ از دست ما نمیشه.

[۲۲۳] د ۲۰۱۳ ز کال په نیمایې کې د طالبانو د قطر دفتر مشر سید طیب اغا له خوا انجنیر احمدشاه احمدزي، استاد محمد زمان مزمل او حاجی احمد فرید ته د اوه کسانو (استاد سیاف، استاد محقق، استاد عطاء نور، یونس قانوني، ډاکټر عبدالله، سید حامد گیلاني او سید اسحاق گیلاني) نومونه ورکول شوې وو او طیب اغا ورته ویلي و چې له یادو کسانو سره چې هر ځای دوی وغواړي موږ ورسره ناستې ته چمتو یو.

کله چې هغه وخت د یادو کسانو سره د طالبانو د پېغام شریکولو مسئله راغله، زما (لیکوال) نظر داوو چې دغه مهمه مسئله باید مخامخ له مرستیال ولسمشر محمد قسیم فهیم او یا هم د بلخ والي عطاء نور سره شریکه شي. مگر زموږ ملگرو یاده موضوع له یونس قانوني سره شریکه کړه، هغه ژمنه وکړه چې له طالبانو سره د سولې لپاره د پټې لېدنې موضوع به له مارشال فهیم سره شریکه او بیرته به طالبانو ته پېغام لیږي، مگر ښکاري چې دا راپور غالباً د یونس قانوني له خوا تر امریکایانو ورسیدی او د سولې یاده هڅه په لومړي وخت کې شنډه شوه.

ډاکټر عبدالله د پېغام په اوریدو انجنیر احمد شاه احمدزي ته ویلي و چې د ۲۰۱۴ ولسمشرۍ ټاکنو لپاره چمتووالي نیسي. استاد محمد محقق له طالبانو سره لېدنې ته غاړه کیښوده، خو له نامعلوم لوري پر هغه باندي په کابل ښار کې د ماین چاودنه (۱۸ جون ۲۰۱۳) وشوه.

استاد سیاف ته هم دا پېغام انجنیر احمدشاه احمدزي رسولي و، خو درې میاشتې وروسته د د احمد شاه مسعود د مرگ د تلین (۲۰۱۳/۹/۹ ) په ورځ د استاد سیاف ځواب داسې و: "که حکومت غواړي چې د طالبانو د ځانمرگو بریدونو څخه مخنیوی وشی، د کابل په څلورو دروازو کې دي یو – یو طالب ځوړند کړي چې د نورو لپاره عبرت شي."

احمدزی زیاتوي: کله چې مسعود او فهیم مړ شو، د جنګ روحیه پکې ضعیفه شوې، سیاسي جوړجاړي چې امریکا یې ترشاه ده کار کوي، خپل منځ کې هم سره جوړ نه دي، اختلافات لري، د بل (نورو ډلو) له پاره سره یو دي."

د کرزي د حکومت پر مهال (۲۰۰۱ تر ډسمبر ۲۰۱۴) پوري د شمال ټلوالې مشران خوشاله او ارام ژوند یې درلود، د امریکا د شتون له امله یې زښت زیات اقتصادي ګټې او پیسې تر لاسه کړي، ډیری مشران یې پکې میلونران شول.

ولې بیا هم ځینې مشران چې خپل واک یې کم ګاڼه او یا خو اقتصادي ګټې یې زیاتې نه وي، ځینې وختونه به یې په حکومت نیوکې کولې.

د ډاکټر اشرف غني د حکومت پر مهال د شمال ټلوالې ډیری کسانو د امریکا له تګلاره سر ټکاوو او د امریکا تګلاره یې له واک څخه د مجاهدینو د ګوښه کیدو تګلاره وګڼله[۲۲٤].

استاد محمد زمان مزمل (٦ اپریل ۲۰۱۸) بګرامي کې ضعیف صاحب ته وویل: " تیره اونۍ مو له یونس قانوني سره ناسته درلودله، چې څه ډول پخوانۍ مجاهدین سره یو ځای شي، قانوني وویل چې اوسنی حکومت او په ځانګړي ډول ډاکټر غني د امریکایانو په خوښه غواړي چې مجاهدین څنډې ته او بیخې یې له صحنې څخه په بشپړ ډول وباسي، دوی غواړي افغانستان کې سیکولر نظام ته لاره هواره کړي او دا ډیره خطرناکه ده، امریکا د مجاهدینو خلاف لوبه پیل کړي ده. موږ ته په کار ده

---

[۲۲٤]ما (لیکوال) څو ځله له ملا عبدالسلام ضعیف څخه اوریدلي، هغه ویل: "کله چې یې د ګوانتانامو زندان ته یوړم، یو ځل یې داسي قفس کې واچولم چې ښې او کیڼ لور ته مې خالي یو یو قفس و، امریکایي راته وویل چې پوهیږې چې دا دواړه قفسونه د چا لپاره دي، ومې ویل چې نه پوهیږم.

امریکایي وویل: یو قفس مو د استاد رباني لپاره خالي ساتلی او بل قفس مو د استاد سیاف لپاره تش ساتلی دی."

چې مجاهدین سره یوځای او اتحاد وکړو، که نه امریکا به دلته یو سیکولر نظام راولي[۲۲۵].

مگر همدې یونس قانوني بیا د خپل واک پر مهال استاد محمد الیاس ذره ته عجیب ویلي وو، استاد ذره ما (لیکوال) ته د اکتوبر پر ۲۶مه، ۲۰۱۵ وویل: یو ځل د یوې ناستې پرمهال محمد یونس قانوني وویل:"د ملا خبرې مه کوئ، امریکا په ټوله نړۍ حکومت کوي، موږ هم باید امریکا په مشرتوب ومنو."

قانوني ته ما(ذره) وویل:" نو تاسي بیا د خدای ج خبره نه منئ؟"

قانوني چوپ شو او هیڅ یې هم ونه ویل.

د مارچ ۲۶مه، ۲۰۱۲، استاد محمد زمان مزمل ما (لیکوال) ته وویل: په وروستیو وختونو کې مې استاد برهان الدین ربانی ولید، غوښتنه یې وکړه چې پیغام یې ضعیف صاحب ته ورسوم. او د هیواد د سولې او امن لپاره کار وکړي.

استاد رباني وویل:"امریکا نه غواړي چې موږ افغانان په ارام شو، موږ د امریکایانو په راسوتلو کې غټه تیروتنه وکړه، اوس یې له هیواده د ایستلو لپاره کار کول په کار دی.

طالبان زموږ او هیواد په گټه دي، تر څو راشي او په نظام کې برخه واخلي، هیواد به مو له تجزیې څخه وژغورل شي. پرته له طالبانو بل داسي قوت نه شته چې واک ورته وسپارل شي او هغوی یې وساتي، یوازي طالبان دا وړتیا لري او د ټولو مجاهدینو په گټه هم دي.

---

[۲۲۵] ما (لیکوال) مزمل صاحب ته وویل چې د قانوني صاحب په خبرو به څومره لا زیات سړی وغولیږي، همدوی وو چې امریکایان یې راوستل، همدوی وو چې د امریکا د پلي ځواکونو رول یې د طالبانو مقابل کې سرته ورساوو، همدوی و چې بُن کې یې د امریکا غوښتنې ومنلي. که اوس هم قانوني ته د ولسمشر مرستیال او یا کومه بله چوکۍ ورسیږي، بیا امریکایان سم دي او نظام هم سم دی.

د طالبانو په راتګ سره به فحشا ختمه شي، فساد او بد اخلاقي زموږ تر کورونو را رسیدلي، زه په خپل کور کې د فساد مخنیوی نه شم کولای[۲۲۶].

جهادي ګوندونو خپل اصلي حالت ونه شو ساتلای، یو طرفه تګلارې او اهداف یې مخکې یوړل."

مزمل صاحب وایې چې استاد رباني ته مې وویل:"استاده! تر هر څه لومړی تاسي خپل ګوند (جمعیت اسلامي) سم کړئ، ټول جمعیت دي ستمي (قومي) کړی، یو مناسب او له تعصب څخه پاک مشر په خپل ژوند ورته وټاکئ."

د مئ لومړۍ ۲۰۱۲، د ولسمشر حامد کرزي سلاکار وزیر، د حزب متحد مردم افغانستان ګوند مرستیال سر معلم عبدالعزیز خان سره ما (لیکوال) ناسته درلودله، هغه وویل:" کونړ ته پر لاره روان وو، د موټر شاته چوکې کې یو لورته مې انجنیر وحیدالله سباوون (د ولسمشر سلاکار وزیر) او بل لور ته د ولسې جرګې او سولې عالي شورا غړی مولوي شاهدالله شاهد ناست وو. هغوی ته مې وویل چې تاسې عالمان یاست، تر موږ ښه پوهیږئ، هر هغه څه چې استاد برهان الدین رباني د سولې عالي شورا له مشرتوب مخکې کړي وو، الله ج مهربانه دی بخښنه به ورته وکړي. ولي کوم کارونه چې یې د سولې عالي شورا په وخت کې کړي، داسي دي چې تر پخوانیو ګناهونو درانه او سخت دي.

---

[۲۲۶] په ۲۰۱۸ کې د استاد برهان الدین رباني لور فاطمه رباني او د پیر سید احمد ګیلاني دوو لمسیانوحمیرا ناصر ضیا او ایمان ناظمي په دوبۍ کې د کشمش په نوم رسټورانټ پرانست او درې واړو په هوټل کې د میلمنو د را جلبولو لپاره ډول ډول جامې اغوستلي او له داسي لارو یې غوښتل چې هوټل یې مشهور شي چې له اسلامي او افغاني ارزښتونو سره په ټکر کې وي. یاد هوټل د ۲۰۱۸ ز کال د بي بي سي د غوره خوړو جایزه هم تر لاسه کړه.

استاد به مجاهدین او طالبان د امریکایانو مقابل کې له مقاومت څخه لاس اخیستلو او سولې ته دعوت کول، کله چې به د مجاهدینو کومه ډله له حکومت سره یو ځای شوه، استاد رباني به همدغه مجاهدین څه وخت وروسته افغان حکومت ته وسپارل، د حکومت له خوا به مسلح شول، د اربکیانو په نوم به یې د مجاهدینو په خلاف جګړه پېل او له کفارو (امریکایانو) څخه به یې ساتنه کوله. دا ډیره لویه ګناه ده چې مسلمان مجاهد د مجاهدینو له صف څخه جلا او د کفارو د ساتنې لپاره یې وګماري."

## د استاد رباني دویم ځل حکومت

(۱۴ نومبر ۲۰۰۱ – ۲۲ ډسمبر ۲۰۰۱)

کابل ته د شمال ټلوالې له ننوتلو (۱۴ نومبر ۲۰۰۱ ز کال ) سره سم هغوی سیاسي او نظامي ټول واک په خپل لاس کې واخیست، استاد رباني ولسمشر، قسیم فهیم د دفاع وزیر، یونس قانوني د کورنیو چارو وزیر، عبدالله عبدالله د بهرنیو چارو وزیر، انجنیر عارف سروري د استخباراتو مشر، دا ډول یې په نورو وزارتونو او ادراو کې هم خپل او د خپلې خوښې کسان وګمارل.

استاد رباني نه غوښتل چې واک پریږدي، مګر دده په غیاب کې قسیم فهیم، عبدالله عبدالله او یونس قانوني امریکا ته ډاډ ورکړی وو چې دوی چمتو دي واک حامدکرزي ته وسپاري، دا ډول د بُن لومړي کانفرانس کې د استاد ربانی د خوښې خلاف قانوني او عبدالله ومنله چې حامد کرزي به د حکومت مشرې کوي، واک به ورته سپاري او بالاخره د روسیې په وساطت استاد رباني هم ومنله چې واک به نوی ولسمشر ته په سولئیز ډول سره سپاري، مګر له عبدالله او قانوني څخه د ژوند تر اخره خفه وو.

"مارشال قسيم فهيم او يونس قانوني بيا ويل چې موږ ته ګرده دربدري د همدې دوو استاذانو (استاد رباني او استاد سياف) له لاسه راپيښې دي، که دوی نه وای موږ به له دومره ستونزو او بدبختيو سره نه مخ کيدلای." وحيد مژده

"عارف خان د سي آی اې سره د ارتباط لپاره امرالله صالح د يو مهم رياست مشر وټاکی، چې بيا وروسته يې صالح سره روابط خراب او هغه يې پر کښته دنده وګماری.

عارف خان د استخباراتو رياست توکميز کړ، هلته يې د يوه قوم او يوې ژبې خلک په دندو ګمارل، چې بيا وروسته په ۲۰۰۳ ز کال کې د ده له همدې کړنې کرزي سي آی اې ته شکايت وکړ[۲۲۷] او د ۲۰۰۴ جنوري مياشت کې له دندې لرې او د کرزي مشاور اعلان شو، پر ځای يې امر الله صالح د فبروري مياشت کې د استخباراتو مشر وټاکل شو." د ګرينر او S رياست کتابونه



د شمال ټلوالې ځواکونه

[۲۲۷] که څه هم حامد کرزی ولسمشر و، مګر هغه د شمال ټلوالې تر ژور اغيز لاندې و، واک يې نه درلود، نه يې شوای کولای چې د استخباراتو مشر عارف سروري له دندې ګوښه کړي، تر څو امريکايانو انجنير عارف وپوهاوه چې نور يې د استخباراتو د مشر په توګه نه مني، بيا په سمبوليک ډول د حامد کرزي لخوا، د هغه له دندې ليرې کيدو او سلاکار وزير اعلان وشو.

## د کرزي او غني حکومت کې د شمال ټلوالې ونډه

ځینې موثق سرچینې وایې چې حامد کرزی امریکا ته د أی ایس آی له خوا د نوي حکومت له پاره معرفي شوې و [۲۲۸]، حامد کرزي په هند کې زده کړې کړی، ولي ډیر وخت یې د پاکستان په کوټه ښار کې هم تیر کړی او دا ډول یې په پېښور کې د اسلامي ملي محاذ په دفتر کې له پیر سید احمد ګیلاني سره کار کړی.

عبدالله عبدالله چې د استاد رباني په وخت کې د باندنیو چارو وزیر و، حامد کرزی مرستیال وزیر و، چې بیا حزب اسلامي سره اړیکو او پاکستان ته د جاسوسي په تور باندي

---

[۲۲۸] د سپتمبر ٦مه، ۲۰۱۹، حاجي سید داوود اغا ما (لیکوال ) ته وویل: کله چې د حامد کرزي پلار عبدالاحد کرزی په کوټه کې ووژل شو، کندهار ته یې مړی غفار کرزي (د حامد کرزي سکه تره، غفار کرزی چې د کرزي د حکومت پر مهال په مصر کې سفیر و) یووړ او هلته یې هدیره کې ښخ کړ، کله چې هغه بیرته امریکا ته راغی، ما (حاجي داود) ته یې ټلیفون وکړ، ویل یې د جمعې لمانځه ته راشه، زه در سره کار لرم. تر لمانځه وروسته یو هوټل ته ولاړو، هغه راته وویل: "په کوټه او کندهار کې ټولو خلکو ویل چې عبدالاحد کرزی خپل زوی حامد کرزي وژلی دی، خو موږ فکر کاوه چې د طالبانو له خوا به وژل شوی وي، بیا وروسته مو فکر کاوه چې د دښمنې له امله به وي، بالاخره ډیرو راته وویل چې دا کار حامد کرزي کړی، اوس تاسي راته ووایاست، ځکه تاسي په کوټه او پېښور کې ډیر خلک پېژنئ چې دا کار به چا کړی وي."

هغه وخت ما (حاجي داود اغا) هغه ته وویل: زه خو پرته له ثبوت څخه څه نه شم ویلای، هیڅ داسي ثبوت نشته چې حامد کرزي دي دا کار کړی وي.

بیا کلونه وروسته زه (حاجي داود) پوه شوم چې د پاکستان استخباراتي ادارې آی ایس آی او حامد کرزي لاس یو کړی و، تر څو عبدالاحد کرزی له منځه یوسي او واک ته د رسیدو لپاره لاره حامد کرزي ته هواره شي، ځکه پاکستان نه غوښتل چې ظاهر شاه راشي، نو داچې عبدالاحد کرزی له ظاهر شاه سره نږدې پاتې شوی و او پلار یې (د حامد کرزي نیکه) هم د ظاهر شاه له کورنۍ سره نږدې پاتې شوی و، عبدالاحد کرزي غوښتل چې ظاهر شاه واک ته ورسیږي، همهغه و چې د حامد کرزي او آی ایس آی د ګډ پلان له مخې عبدالاحد کرزی له مخه لرې کړل شو.

د هغه وخت د استخباراتو رئيس قسيم فهيم بندي کړی و، د حزب اسلامي او شورای نظار د جنګ پر مهال، په زندان د راکټ لګيدو او سورې جوړيدو له امله حامد کرزي تېښته کړي وه او بيا د حزب اسلامي کسانو په مصؤن ډول سره پېښور ته رسولی و.

د بُن غونډې پر مهال عبدالله، قانونی او ټوله کې شمال ټلوالې هم د حامد کرزي د مشر کيدو ننګه وکړه، شمال ټلوالې خپل ملاتړی هيوادونه ايران، روسيه او هند هم وپوهول چې امريکا ته د حامد کرزي سپارښتنه وکړي، دا ډول رشيد دوستم ترکيې ته وويل چې امريکا ته د حامد کرزي د ولسمشر کيدو سپارښتنه وکړي.

انجنير احمدشاه احمدزی وايې:" استاد سياف نه غوښتل چې د کرزي د حکومت وخت کې زه کابل ته راشم، مخکې چې دوی په شمال کې وو، زه يې دعوت کړم خو ورنغلم، ما ورته وويل چې دغه خلک ( شمال ټلواله) چې تا (سياف) ورسره اړولي که کافر هم وای خو چې لږ غيرت يې درلودلای، زه درتلم، ولي دا خلک ډير بې وفا دي، دوی کې هيڅ وفا نشته نه شم درتلای.[229]

د اتحاد اسلامي عالي شورا کې موږ ۵۰ کسان وو، موږ ټول سياف د ملاتاج محمد کور کې دعوت کړي وو، د مقاومت اړوند يې خبري شروع کړي، استاد سياف وويل چې يوه ورځ د مقاومت تر ۱۴ کلن جهاد ډير ثواب او برتري لري. جګ شوم ومې ويل چې الحمد لله زه خو په دي ثواب کې نه وم. ټول حيران پاتې شول.

دا خبره يې د ۵۰ نفرو مخکې وکړه، بيا مې خپله لاره له استاد سياف سره بېله کړه."

---

[229] د کرزي د حکومت پر مهال استاد سياف د ولسي جرګې لومړۍ دوره (ډسمبر ۲۰۰۵ز) کې ځان د رياست لپاره نوماند کړ، په مقابل کې يې د شمال ټلوالي ځخه يونس قانوني ودريدی او استاد سياف ته يې ماتې ورکړه.

د ولسې جرګې دوېمه دوره (اکټوبر ۲۰۱۰) کې هم د استاد سياف او قانوني ترمنځ سخته سيالي وشوه، دواړو مساوي رايې واخيستلي، مګر يونس قانوني بيا هم د سياف په ګټه تير نه شو او د دوی ترمنځ د اختلاف له امله عبدالروف ابراهيمې د حزب اسلامي پخوانی غړی د ترکيې په مالي مرسته د ولسې جرګې مشر شو.

## د حامد کرزي حکومت

د لنډمهاله حکومت (۲۲ ډسمبر ۲۰۰۱) په ٦ مياشتني جوړښت کې پښتون ۳۴،۵٪ تاجک ۳۸٪، هزاره ۱۷،۲ سلنه او ازبک ۱۰،۲٪ وو. حکومت د ولسمشر اومرستيالانو په ګډون ۲۹ چوکۍ وي[۲۳۰].

د ولسمشر مرستيال او دفاع وزير فهيم، د کورنيو چارو وزير قانوني او د بهرنيو چارو وزير عبدالله تاجک او په ځانګړې ډول د پنجشير اوسيدونکي وو. دا ډول د ملي امنيت اداره د پنجشير د محمد عارف سروري سره وه

د انتقالي دورې حکومت ـ (۱۳ جولای ۲۰۰۲) په دوه کلن جوړښت کې پښتون ۵۴،۳٪، تاجک ۲۰٪، هزاره ۱۴،۴٪ او ازبک ۱۱،۴٪ وو، د ولسمشر او مرستيالانو په ګډون د حکومت ۳۵ چوکۍ وي[۲۳۱].

د ولسمشر مرستيال او دفاع وزير فهيم، بهرنيو چارو وزير عبدالله او پوهنې وزير قانوني تاجک او د پنجشير وو. د ملي امنيت اداره د پنجشير د محمد عارف سروري (اکتوبر ۲۰۰۱- فبروري ۲۰۰۴ ) سره وه.

د پخواني ولسمشر کرزي په لومړۍ دوره ( ۲۰۰۴ – ۲۰۰۹ زېږديز کال) کې د قومونو سلنه په يوه حال نه وه او نه هم وزارتونه په يو حال پاتې شول، ځينې داسي وزارتونه وو چې په ۵ کلونو کې يې ۵ وزيران او ځينو کې ۴ وزيران بدل او رابدل شول[۲۳۲].

---

۲۳۰ ويکيپيډيا:
http://en.wikipedia.org/wiki/Cabinet_of_Afghanistan#Current_cabinet_of_ministers

۲۳۱ ويکيپيډيا:
http://en.wikipedia.org/wiki/Cabinet_of_Afghanistan#Current_cabinet_of_ministers

۲۳۲ ويکيپيډيا:
http://en.wikipedia.org/wiki/Cabinet_of_Afghanistan#Current_cabinet_of_ministers

د ولسمشر لومړی مرستیال احمدضیاء مسعود، بهرنیو چارو وزیر عبدالله، د پنجشیر او یو کال وروسته د کورنیو چارو وزیر هم د پروان تاجک ضراراحمد ( ۲۰۰۵ –۲۰۰۸) وټاکل شو، دا ډول د دفاع وزیر رحیم وردګ مګر لوی درستیز بسم الله محمدي ( دپنجشیر ) چې پوره واک او صلاحیت له ده سره وو.

د پارلمان ریاست چې مشر يې یونس قانوني وو، کورنیو چارو وزارت او امنیت ریاست له پنجشیر سره وو.

امرالله صالح د ملي امنیت مشرتوب له فبروري ۲۰۰۴ څخه تر جون ۲۰۱۰ پوري وکړ. هغه وخت لیری شو چې لويې جرګې ته د ولسمشر کرزي د ننوتلو په وخت کې په هغه راکټي برید وشو او راکټ ډیر نږدې ورته ولګیدی.

د مارچ ۵مه ۲۰۱۲، د بهرنیو اډو پر ضد د ملي یووالي جبهې دفتر کې مژده صاحب وویل: " کله چې امرالله صالح د استخباراتو له عمومي ریاست څخه د کرزې د حکومت پر مهال لرې شو، له هغه سره مې ناسته درلوده، ویې ویل راتلونکی حکومت به د طالبانو وي، بل هیڅوک نه شي کولای چې حکومت ورڅخه وکړي، ماته ښه معلومیږي چې طالبان څومره زور او قوت لري، دا ځکه چې زه د استخباراتو مشر وم او ماته معلومه شوه چې طالبان ډیر زیات زور او نفوذ لري. "

په همدې ورځ متوکل صاحب د جلا ناستې پر مهال ما (لیکوال) ته وویل:"یو ځل کابل ښار کې موږ ځینې کسان او مولوي ارسلان رحماني کوم ځای ته روان وو، مخکې په سړک امریکایې پوځیان ولاړ و. رحماني صاحب وویل: آه طالبه! ته نه څه له خپله زوره خبر يې، ټوله دنیا دې سرګردانه کړي او ټوله دنیا درڅخه په ویره کې ده، که ته له خپله زوره خبر شوې؟؟؟"

د ۲۰۰۴ کال په نیمایې کې اسماعیل خان هم دده د خوښې خلاف له هرات ولایت څخه کابل ته د اوبو او بریښنا وزیر په توګه راوستل شو، دا ډول عبدالرشید دوستم چې په شمال کې د نظامي عالي شورا مشر او د ولسمشر کرزي سلاکار وو، کابل ته را وغوښتل شو.

حامد کرزي خپل لومړی مرستیال مارشال فهیم له د ندی لیری او په ځای یې احمدضیاء مسعود وټاکی، دا ډول یې انجیر عارف سروري د استخباراتو له مشرتوب څخه لرې او پرځای یې امرالله صالح وټاکل شو

د پخواني ولسمشر کرزي په دوېمه دوره ( ۲۰۰۹ - ۲۰۱۴ زېږدیز کال) کې د قومونو سلنه په یوه حال نه وه او نه هم وزارتونه په یو حال پاتې شول، ځینې داسي وزارتونه وو چې په ۵ کلونو کې په یوه وزارت کې ۴ وزیران او ځینو کې ۳ وزیران بدل او رابدل شول[۲۳۳].

د ولسمشر لومړي مرستیال قسیم فهیم، دفاع وزیر رحیم وردګ او بیا بسم الله محمدي، بهرنیو چارو وزیر زلمی رسول او بیا ضرار احمد مقبل، کورنیو چارو وزیر حنیف اتمر، بسم الله محمدي، مجتبی پتنګ او بیا داوود زی، د کلیو پراختیا وزیر ویس برمک او د ملي امنیت مشر امرالله صالح او وروسته رحمت الله نبیل و.

بلخ ولایت د امریکا له حملې بیا د کرزي په ټوله دوره کې د تاجک توکم عطاء محمد نور په لاس کي و چې د دوستم رقابت ورسره و.

د سولې عالي شورا لپاره د حامد کرزي له خوا استاد برهان الدین رباني په انحصاري ډول مشر وټاکل شو.

د حامد کرزي د حکومت پر مهال دندې د لیاقت پر بنسټ نه، بلکې د روابطو پر بنسټ ورکول کیدي، مالي فساد او رشوت زیات و.

د حامد کرزي د حکومت پر مهال نړیوالې مرستې زیاتې وي، چې پریمانه فساد پکې کیدی.

---

[۲۳۳] ویکیپیډیا:

http://en.wikipedia.org/wiki/Cabinet_of_Afghanistan#Current_cabinet_of_ministers

## د ډاکټر غني ګډ حکومت

د ډاکټر اشرف غني او ډاکټر عبدالله د ګډ حکومت درې نيمې مياشتې وروسته چې کومه کابينه معرفي شوه، په لومړی لسټ کې د کابينې ۲۵ نوماند وزيران وو چې په هغوی کې پښتون ۴۰٪، تاجک ۲۸٪، هزاره۱٦٪، ازبک ۱۲ ٪ او ترکمن ۴٪ وو.

۱۳ وزيران ډاکټر اشرف غني او ۱۲ وزيران ډاکټر عبدالله معرفي کړي وو، د ملي امنيت په مشر (رحمت الله نبيل) د دواړو اتفاق وو، د افغانستان بانک رئيس ولسمشر معرفي کړی و چې دواړه پښتانه وو[۲۳٤].

په کابينه کې د ځينو مهمو او نا امنو ولايتونو څخه کسان نه وو نيول شوې، لکه هلمند، پکتيا، کنړ، نورستان، سرپل او غور.

د ډاکټر غني او ډاکټر عبدالله د ګډ حکومت پر مهال، د دواړو ډلو پېژندل شوو کسانو باور داوو چې پخوانی کمونسټ حنيف اتمر د حکومت اربه چرخوي، په لومړي وخت کې يې دوستم هم ملاتړ کاوه. چې وروسته د حنيف اتمر او دوستم اړيکې په دوستم باندي په فارياب کې د مرګوني بريد له امله خرابې شوې[۲۳۵].

د ګډ حکومت په لومړنی جوړښت کې د ډاکټر غني لومړی مرستيال دوستم، د امنيت شورا مشر حنيف اتمر، دفاع پخوانی وزير د ملي امنيت اوسنی مشر معصوم ستانکزی، کورنيو چارو پخوانی وزير په هالنډ کې اوسنی سفير نورالحق علومي، د ترانسپورټ وزير، د ښار او کور جوړولو وزير منصور نادري، د هلمند لپاره نظامي

[۲۳٤] د ليکوال يادښتونه او موندنې د کابينې وزيرانو له پېژندګلوي څخه.

[۲۳۵] د ولسمشر لومړی مرستيال عبدالرشيد دوستم چې د فارياب ولايت کې دده په کاروان باندي د اکتوبر پر ۱٦مه ۲۰۱٦ز.کال د طالبانو له مرګوني کيمن او حملې ژوندی ووت، دوستم د ده د مرګ په پلان کې د افغانستان د امنيت شورا د مشر لاس لرل وبلل او تور يې ولګاوی چې د امنيت شورا مشر حنيف اتمر او د استخباراتو مشر معصوم ستانکزی د ده د مرګ په پلان کې شريکان وو.

اوپراتيفي مشر عبدالجبار قهرمان او ځينې نور پخواني کمونستان او د پرچم ډلې غړي وو[۲۳۶].

که د لنډمهاله، انتقالي، د کرزي لومړۍ او دوېمې دورې ته فکر وکړو او بيا يې د ډاکټر غني د لومړي وخت او بيا وروستيو وختونو سره پرتله کړو نو بيا ډېر زيات توپير ليدل کيږي. د پنجشير مهم او قوي وزيران ګوښې ته کړل شوې او دا ځل د تاجکو په پرتله هزاره او ازبک قومونو ډېره ګټه کړي.

د افغانستان په معاصر تاريخ کې لومړی ځل دی چې د ولسمشر لومړی مرستيال ازبک دی او دويم يې هزاره ده، مګر ورسره څنګ کې اجرائيوي رئيس تاجک ( ځينې تاجک ورونه يې پښتون بولي، مګر دا واضيح ده چې د تاجکو نماينده ګې کوي) او د ښې ادارې له پاره ارشد مشاور ضياء مسعود هم تاجک و.

ډاکټر اشرف غني په کرار کرار د امريکا د پخواني پلان له مخې د شمال ټلوالې پخوانيو مجاهدينو په نوم مشهورې څيرې له واکه ګوښه کېدل پيل کړل، احمدضياء مسعود (اپريل ۲۰۱۷) يې له دندې وشاړه.

دا ډول د ګډ حکومت د مشر لومړي مرستيال دوستم د فارياب ولايت د غورماچ ولسوالۍ اړوند سېمه کې د يو مرګوني کمين (۲۴ ميزان ۱۳۹۵ – ۱۵ اکتوبر ۲۰۱۶) څخه ژوندی ووت چې هغه يې پړه د امنيت شورا په مشر حنيف اتمر او ملي امنيت په مشر معصوم ستانکزي اچوله، وروسته بيا دوستم ته د احمد ايشچې قضيه جوړه او هغه له هيواده په غير رسمي او نا اعلان شوې ډول ترکيې ته تبعيد شو[۲۳۷].

---

[۲۳۶] مئ ۲۰۲۰، ما (ليکوال) ته ګلابزوی وويل:"کله چې په ۲۰۱۴ کې ډاکټر غني واک ته ورسيد، حنيف اتمر راته وويل چې په حکومت کې ور سره کار وکړم، هغه ته مې وويل چې کيدای شي ډاکټرغني زما مخالفت وکړي، اتمر وويل چې هغه زموږ پخوانی ملګری (پرچمی) دی."

[۲۳۷] احمد ايشچي د جوزجان پخوانی والي او د جنبش اسلامي ګوند مرستيال مشر د ډسمبر پر ۱۳مه ۲۰۱۶ ادعا وکړه چې چې دوستم جنسي اذيت ورکړی، هغه د قوس ۲۴مه ۱۳۹۵،

استاد عطامحمد نور د بلخ ولایت څخه د ګډ حکومت د مشر ډاکټر غني له خوا د ډسمبر ۱۸مه ۲۰۱۷، ګوښه او پر ځای یې انجنیر داوود د بلخ والي اعلان شو.

عطاء نور د ډاکټر غني فرمان ونه مانه، ولایت ته یې نوی والي پرینښود، بلکې ډاکټر غني یې وننګاوو. د حیرتان بندر د عوایدو په خپل سر د لګولو او ویش اعلان یې هم وکړ. له ۹۴ ورځو جنجال او ستونزمن حالت وروسته د ډاکټر غني او عطا نور ترمنځ پټه معامله وشوه او عطا نور د مارچ ۲۲مه ۲۰۱۸ز د بلخ ولایت پریښود پر ځای یې د ده په غوښتنه اسحق رهګذر د بلخ د والي په توګه معرفي شو.

د اپریل ۴مه ۲۰۱۸، ډاکټر غني ۱٦۲ د دفاع وزارت جنرالان تقاعد او په کور یې کښینول او د مئ ۲۱مه ۲۰۱۸ یې ٦۱ نور جنرالان او د اکتوبر ۲۳مه یې ۲۲ نور جنرالان تقاعد کړل.

د تاجک قوم سیاسي مشرانو ادعا درلودله چې ډیری پکې تاجک جنرالان تقاعد ته سوق شوي دي.

د فبروري ۱۷مه ۲۰۱۸، د سمنګان والي عبدالکریم خدام چې د جمعیت اسلامي غړی دی، د ډاکټر غني له خوا له دندې ګوښه، خو د فبروري په ۱۸مه، ګوښه شوي والي اعلان وکړ چې ډاکټر غني یې د لرې کیدو واک نه لري. له یاد والي سره هم د ارګ تر معاملې وروسته د فبروري پر ۲۱مه سمنګان ته د ولسي جرګې د رئیس عبدالروف ابراهیمي ورور عبداللطیف ابراهیمي د والي په توګه معرفي شو.

۳۱مه اکتوبر ۲۰۱۷ د ښاغلي محمد قاسم حلیمي د عدلیې مرستیال وزیر سره د ناستې پر مهال هغه وویل:" ډاکټر غني په دي خبرو ښه پوه شوی چې ادارې ملي نه دي او د قومونو تناسب په نظر کې نه دي نیول شوی، ډاکټر غني له وزارت دفاع څخه پیل وکړ، اوس یې تقریباً دا وزارت له نورو خلکو خلاص کړی، وزیر، مرستیال وزیران، رئیسان یې پښتانه ټاکلي او دا رنګه پخوا په ۲۷۱ کسانو کې یواځې ۱۳

---

له طلوع نیوز ټلویزون سره د مرکې پر مهال وویل:" جنرال دوستم جنسي اذیت را کړی، وهلی او ډبولی یې یم، ۵ ورځې یې په خپل شخصي زندان کې لوڅ لغړ ساتلی وم."

پښتانه جنرالان وو، اوس يې دغه تعداد ۱۷۰ ته رسولی دی.

له دفاع وزارت وروسته د کورنیو چارو وزرات نوبت دی، دا نوی وزير ويس برمک چې يې راوستي (۱۳ اګست ۲۰۱۷) دا به هم رخصت کيږي.

ډاکټر غني وايې چې همدې خلکو (شمال ټلوالې) له دولت څخه منصبونه او حيثيت وړی، بيرته بايد دولت همدا منصب او حيثيت ورڅخه يوسي، کرزي همدا کار وکړ، دوی ته يې واکونه، منصب او حيثيت ورکړ.

ډاکټر غني امرالله صالح راوست، په امنيتې سکتور کې د اصلاحاتو وزير (۱۱ مارچ ۲۰۱۷) يې کړ او بيرته يې رخصت (۱۳ جون ۲۰۱۷) کړ، اوس هغه هيڅ حيثيت نه لري[۲۳۸]، بسم الله محمدي يې د فساد په قضيه کې رخصت کړ او احمدضيا مسعود همداسي، جاهد ( د کورنيو چارو پخواني وزير) چې لږ حيثيت درلود، هغه هم د بې کفايتي له امله له وزارت څخه رخصت شو، همداسي د ا نور هم کوي.

د کمپيوټري تذکرو په اړه غني وايې چې زه په واک کې يم، نه ويشل کيږی او اته

---

[۲۳۸] امرالله صالح چې د ملي يووالي حکومت په جوړښت کې د اجرائيه رئيس ډاکټر عبدالله پلوي و، پر ډاکټر اشرف غني يې تونديې او سختې نيوکې کولې.

د ملي يووالي حکومت د مشر ډاکټر غني له خوا (۲۱ حوت ۱۳۹۵ / ۱۱ مارچ ۲۰۱۷) امرالله صالح په امنيتي او دفاعي چارو کې د اصلاحاتو په برخه کې د دولت د وزير وټاکل شو. داچې ياد وزارت نوی ايجاد شو، واکونه او بوديجه يې نه درلودله، امرالله صالح ته واک هم نه و ورکول شو، بالاخره د جون ۱۳مه ۲۰۱۷ کې يې استعفی ورکړه. د ډسمبر ۲۳مه ۲۰۱۸، د ډاکټر غني له خوا امرالله صالح د کورنيو چارو وزير وټاکل شو، کله چې هغه له کورنيو چارو وزارت استعفی وکړه او په ولسمشرۍ ټاکنو کې د ولسمشر لومړی مرستيال شو، د امرالله صالح پر ځای د ډاکټر غني له خوا د پښتنو منځ کې د پښتنو ضد د ملي امنيت مرستيال رئيس مسعود اندرابي يې د فبروري پر ۱۱مه، د کورنيو چارو وزير وټاکه.

امرالله صالح د مارچ پر ۹مه ۲۰۲۰، د ډاکټر غني د لومړي مرستيال په صفت لوړه وکړه.

کاله به نور هم دا پروسه ونه شي، ځکه زه به د کورنیو چارو وزرات ته وایم چې په کلیو او اطرافو کې امنیت خوندي کړه چې توزیع د تذکرو پیل کړو، هغه کار چې کورنیو چارو وزرات یې نه شي کولای، نو توزیع د تذکرو هم نه کیږي[۲۳۹].

د ملي امنیت اداري اړوند ډاکټر غني په هر څه پوهیږي چې څه روان دي، مګر د کورنیو چارو وزارت اوس ورته مهم دی، دلته به اصلاحات راولي او وروسته به بیا د بلې اداري نوبت وي.

که طالبان، ډاکټر غني او حزب اسلامي (حکمتیار) سره یوځای شي، بیا به د هیڅ زور هم ور باندي نه رسیږي."

په ټوله کې د شمال ټلوالې پخواني مشهور جنګ سالاران ډاکټر غني د امریکا په خوښه لرې کړل، او د هغوی پر ځای یې د تاجکو نوي تر ډیره ناپېژندل شوې کسان په دندو وګمارل. په نوو ګمارنو کې ډاکټر غني هڅه کوله چې هغه کسان راولي چې په لویدیځ کې یې زده کړې کړي.

همدارنګه د تاجکو، ازبکو او هزاره وروڼو پخواني مشهور کسان چې یې له دندو د امریکا په خوښه او غوښتنه لرې کول، پر ځای یې د همهغه قوم څخه بل کمزوری کس وزارت او دندو ته معرفي کول.

د اګسټ ۲۵مه ۲۰۱۸، د امنیت شورا مشر حنیف اتمر (پښتون) استعفی ورکړه، د اګسټ په ۲۶ مه ۲۰۱۸ د دفاع وزیر بهرامي (پښتون)، د کورنیو چارو وزیر ویس برمک

---

[۲۳۹] ډاکټر اشرف غني د تذکرو اړوند ډیرو جنجالو وروسته د مئ ۳مه ۲۰۱۸ د بریښنایې / کمپیوټري تذکرو لړۍ رسماً پیل او لومړنۍ تذکره یې خپله واخیستله. د ګډ حکومت اجرائیه مشر ډاکټر عبدالله عبدالله، د بلخ پخواني والي عطا نور او ګڼو نورو تاجک سیاسي مشرانو د تذکرو د ویش د لړۍ مخالفت کاوه.

(تاجک) او ملي امنیت لوی رئیس معصوم ستانکزي (پښتون) له خوا د ګډ حکومت مشر ډاکټر غني ته یوځایې استعفاوي وړاندي کړي، ولي ډاکټر غني ونه منلي[٢٤٠].

د اګست ۳۰مه، ۲۰۱۸ ماښام مهال ضعیف صاحب ما (لیکوال) ته وویل: "داګسټ پر ۲۸مه مې معصوم ستانکزي سره د افغان ښوونځې د دوو کارکونکو له زندان څخه خلاصیدو اړوند ولیدل، هغه ډیر خفه ښکاریدی او د امنیتې سکتور د وزیرانو اړوند یې وویل چې اشرف غني لیونی دی، ګوزاره ورسره نه کیږي، زموږ ټولو (دفاع وزیر، کورنیو چارو وزیر او ملي امنیت رئیس) استعفاوي یې غوښتي وي او غوښتل یې چې نور کسان راولي، کله چې امریکایان خبر شول، امریکایانو ورسره اړیکه ونیوله، غني ته یې وویل چې ټول ملګري دي د لاسه ورکړل، که دا کسان هم لرې شي، نور تا ته د خبرې کولو شخص هم نه در پاتې کیږي، بیا همهغه وو چې غني د امریکایانو په غوښتنه له دي هوډه لاس په سر شو[٢٤١].

---

[٢٤٠] د اګسټ پر ۲۵مه ۲۰۱۸، د امنیت شورا مشر استعفی وکړه او ډاکټر غني ومنله، په دوېمه ورځ (۲٦ اګسټ ۲۰۱۸) یې د دفاع وزیر، د کورنیو چارو وزیر او ملي امنیت لوی رئیس له خوا د حکومت مشر ته یوځایې استعفاوي وړاندي شوې، ډاکټر غني غوښتل چې ویې مني، خو د امریکا سفارت او په افغانستان کې د امریکا/ناټو قواوو عمومي قومندان جنرال نیکولسن مداخله وکړه، ډاکټر غني یې وپوهاوی چې دا کار ونه کړي. وروسته په بېلابېلو وختونو کې همدوي درېو هم د ډاکټر غني د فشارونو له امله استعفاوي ورکړې. پرته له برمک دا نور درې واړه پښتانه او په حکومت کې ډیر مهم او کلیدي کسان وو، له دندو ولاړل. د اګسټ پر ۲۸مه ۲۰۱۸، ضعیف صاحب ته معصوم ستانکزي ویلي و چې ډاکټر غني زموږ استعفاوي غوښتې وي، هغه درې نوي کسان راوستل، مګر جرال نیکولسن هغه له دې کاره منع کړ.

[٢٤١] ۲۷ اګسټ ۲۰۱۸، زموږ په کور کې مجلس (فیض محمد ځلاند، اسد وحیدي، انتظار خادم، عبدالله کاموال، خیرالله شینواری، ولی الله شاهین او شفیع اعظم) وو، وحیدي وویل چې ډاکټر غني له ټولو څخه استعفاوي غوښتې وي، مګر د امریکا قواوو عمومي مشر جنرال نیکولسن بیا ورته ټلیفون کړی وو او غني ته یې ویلي وو چې دا کار ونه کړي. اسد وحیدي ډیر وخت د حامد کرزي د دفتر د پخواني رئیس عبدالکریم خرم له ادرسه معلومات تر لاسه کوي او کریم خرم نږدې هر مجلس کې له پخواني ولسمشر کرزي سره ناست وي.

ډاکټر غني د خپل واک په وروستي وخت کې طالب ضد څېرې (اسدالله خالد، مسعود اندرابي، خوشال سادات) په امنيتي برخه کې په دندو وګمارل[۲٤۲].

د ملي امنيت شورا مشر حنيف اتمر او معصوم ستانکزی له دندو لرې شول، دارنګه ډېری مهمې چوکې هغوی څوانانو او پېغلو ته وسپارل شوې چې په امريکا، لندن او اروپا کې يې زده کړې کړي وي.

حکمتيار چې له افغان دولت سره يې د امريکا په خوښه سوله وکړه، د ډاکټر غني د لومړۍ دورې په وروستيو کې يې له ډاکټر غني سره اړيکې ډېرې خرابې شوې[۲٤۳].

---

د اګست ۲۰مه، چې مور. ميلمستيا ته روان وو، څلاند صاحب وويل: فريد ماموندزی په لندن کې دی، هغه راسره اړيکه ونيوله، ويې ويل چې د ډاکټر غني او حنيف اتمر ترمنځ ستونزه د ماسکو غونډې په تړاو پيدا شوې وه، حنيف اتمر له روسانو سره منلې وه چې د سپټمبر ۴مه ۲۰۱۸ په ماسکو کې کيدونکې غونډه چې طالبان به هم ګډون پکې کوي، د افغان حکومت استازي به هم ورشي، د ميز يو لور ته به د افغان حکومت استازي او بل لور ته به طالبان وي، اتمر په دې نظر و چې طالبان په قوت سره د نظام برخه شي. مګر اشرف غنی اتمر ته ويلي وو چې تاسې دومره واک نه لرئ چې په خپل سر له روسانو سره پريکړې وکړئ، لفظي شخړه شوې وه او حنيف اتمر استعفی ورکړه.

[۲٤۲] د امرالله صالح پر ځای د ډاکټر غني له خوا د پښتنو منځ کې د پښتنو ضد د ملي امنيت مرستيال رئيس مسعود اندرابي يې د فبروري پر ۱۱مه ۲۰۱۹، د کورنيو چارو وزير وټاکه.
اسدالله خالد د ډسمبر پر ۲۳مه دفاع وزير اعلان او د ډسمبر پر ۲۹مه ۲۰۱۸، رسماً سرپرست وزير معرفي شو.
د فبروري ۲مه ۲۰۱۹، خوشال سادات د کورنيو چارو ارشد امنيتي معين په توګه ياد وزرات کې معرفي شو.

[۲٤۳] کله چې د ۲۰۱۴ ز کال ټاکنې ډاکټر غني وګټلې، حکمتيار له امريکايانو او افغان حکومت سره د سولې خبرې پېل او د سپټمبر ۲۹مه ۲۰۱٦ کې د حزب اسلامي د مشر انجنير حکمتيار او د ملي يووالي حکومت د مشر ډاکټر غني ترمنځ د سولې تړون لاسليک شو.

## د ډاکټر غني دويمه دوره

د ميزان ٦مه ١٣٩٨ (٢٨ سپټمبر٢٠١٩) د ولسمشرۍ لپاره ټاکنې وشوې، خو ډېرو لږو خلکو د لاندي ٥ مهمو لاملو له کبله پکې ګډون وکړ.

١ – ولس پر ټاکنو بې باوره شوی او خپلې رايې ټاکونکي نه ګڼي.

٢ – د طالبانو له خوا پرله پسې ګواښونه چې خلک په ټاکنو کې ګډون ونه کړي.

٣ – د ټاکنو لپاره سوړ کمپاين د ولسمشرۍ نوماندانو لخوا.

٥ – د امريکا له خوا هم سياستوالو ته دا خبره چې سوله لومړيتوب او ټاکنې هم اړينې دي.

د فبروري ١٨مه ٢٠٢٠ / د سلواغې ٢٩مه ١٣٩٨، د ولسمشرۍ ټاکنو وروستۍ پايلې اعلان شوې، ډاکټر غني د ٥٠،٦٤ سلنه (٩٢٣٥٩٢) رايو باندي ګټونکي اعلان شو.
ډاکټر عبدالله عبدالله ٣٩،٥٢ سلنه (٧٢٠٨٤١) رايو په ګټلو ناکام او دويم اعلان شو.
انجنير حکمتيار ٣،٨٥ سلنه (٧٠٢٤١) رايو په ګټلو دريم کس اعلان شو.
د پايلو د اعلان غونډه مازديګر په ۴ نيمې بجې پيل او مازديګر ٥ بجې د ټاکنو خپلواک کميسون له خوا ډاکټر غني ګټونکی اعلان شو.
ډاکټر عبدالله د ټاکنو پايلې ونه منلي، ډاکتر غني د خپلو پلويانو منځ کې خپل بری ولمانځه او چمتووالی يې نياوه چې د فبروري پر ٢٧مه د لوړې مراسم تر سره کړي، مګر د امريکا د فشار په نتيجه کې يې د لوړې مراسم وځنډېدل او د مارچ پر ٩مه، په ارګ او سپيدار ماڼې کې په يو وخت سره، دواړو "ډاکټر غني او ډاکټر عبدالله" د لوړې مراسم تر سره او هر يوه خپل ځان ولسمشر ونوماوه.
د حامد کرزي، استاد سياف، استاد عبدالکريم خليلي او يونس قانوني له خوا هڅې وشوې چې دواړه ډاکټران جوړجاړي ته وهڅوي، مګر ونه توانېدل.

---

حکمتيار د مئ ۴مه ٢٠١٧، کابل ته راغی او په ارګ کې يې د حکومت له لوري نيول شوو مراسمو کې وينا وکړه.

حکمتيار د ٢٠١٩ ولسمشرۍ ټاکنو ته نوماند و، ټول ټال يې ٧٠زره رايې وګټلې.

د اپریل پر ۲۳مه، مایک پمپیو کابل ته راغی، هڅه یې وکړه چې ډاکټر غني او ډاکټر عبدالله وهڅوي چې ټول شموله افغان حکومت باندي توافق ته ورسیږي، مگر ډاکټر غني چمتو نه و چې له ډاکټر عبدالله سره ۵۰ سلنه "مساوي" واک ومني.
بیا هم د استاد سیاف، حامد کرزي، خلیلی او یونس قانوني له خوا د ډاکټرانو د جوړجاړي هڅو ته دوام ورکول شو چې بالاخره د مئ پر ۱۷مه ۲۰۲۰ / د غویې ۲۸مه ۱۳۹۹، د ډاکټر غني او ډاکټر عبدالله ترمنځ د مساوي واک ویشنې هوکړه لاسلیک شوه.
داسي چې ډاکټر عبدالله به د ملي پخلاینې د عالي شورا مشرې کوي، د هیواد د دویم کس پروتوکول به ورکول کیږي، په کابینه کې به ۵۰ سلنه وزیران لري، په هر ولایت کې چې هر یوه له دوی دوو زیاتې رایې گټلې وی، والي به د همهغه له خوا معرفي کیږي او په بهرنیو هیوادو کې ۵۰ سلنه سفیران به هم د عبدالله له خوا معرفي کیږي.
دواړو ډاکټرانو له حامد کرزي او استاد سیاف څخه مننه وکړه، مگر یونس قانوني د ډاکټر عبدالله او ډاکټر غني په هوکړه خوښ نه و.
د ډاکټر غني او ډاکټر عبدالله ترمنځ د هوکړې مخالفت د حزب اسلامي "حکمتیار" گوند او جمعیت اسلامي گوند له خوا وشو.
دغه ډول جوړښت یې ناکامه تجربه وبلله، ویې ویل چې گډ حکومتونه د حل لاره نه ده او د امریکا متحده آیالاتو – طالبانو د تړون عملې کېدل سولې ته د رسیدو لاره ده.
د ډاکټر غني له خوا د جون پر لومړۍ نیټه د حامد کرزي ورور محمود کرزی د ښارجوړولو او ځمکو وزیر وټاکل شو او د جون پر ٦مه د وزارت کارکونکو ته ور وپیژندل شو.
ډاکټر غني دندې د لیاقت نه، بلکې د معاملې پر بنسټ او هغوی چې همده ته به یې د غلاو ونډه ورکوله، ښې لوړې دندې ورکولې.
تر ډیره د میرمنو او حتی ځینو سړو په گومارنه کې د ډاکټر غني عیسوۍ میرمن رولا غني خلاص لاس درلود.

د ډاکټر غني د لومړۍ او دويمې دورې حکومتو پر مهال په هيواد کې غلا، اختطاف، فساد، رشوت او اخلاقي فساد اوج ته ورسيد.

د جون ۲۲مه ۲۰۲۰، پژواک خبري اژانس راپور ورکړ چې د کرونا ناروغي اړوند چې کومې د مصنوعي تنفس ماشينونه (وينټيلاټور) د ځينو هيوادو له خوا له روغتيا وزارت سره يې مرسته شوې وه، ۳۲ د مصنوعي تنفس ماشينونه پاکستان ته قاچاق او خرڅ شوې وو. په داسې حال کې چې په کابل کې د اکسيجن د نشتون له امله هيوادوال په روغتون کې د کرونا ناروغي له امله مړه کېدل.

دارنګه د جولای ۱۱مه ۲۰۲۰، پژواک خبري اژانس راپور ورکړ چې په واشنګټن کې د افغانستان سفارت ۷۰ متره ديوال د سفيرې رويا رحمانې له خوا په ۱،۸ ميليونه ډالر باندې رغول شوی و.

د ډسمبر ۲۰مه ۲۰۲۱، پژواک اژانس راپور ورکړ چې د رويا رحمانې ورځنی معاش او امتيازات تر زر ډالره زيات کېدل.

ډسمبر ۲۰۱۸ کې بهرنيو او کورنيو رسنيو راپور ورکړ چې د فوټبال د فدراسيون رئيس کرام الدين کريم، د فوټبال په ځينو ښځينه لوبغاړو نجونو جنسي تيری کړی، ګارډين ورځپاڼې ته ځينو نجونو منلي وه چې پر دوی د فوټبال د فدراسيون د مشر له خوا په زور جنسي تيری شوی. او د جون پر ۸مه ۲۰۱۹، د فوټبال نړيوال فدراسيون (فيفا) د هميش لپاره د فوټبال اړوند فعاليتونو څخه منع کړ.

د جنوري ۱۰مه ۲۰۱۹، ابو شمس[۲٤٤] ما (ليکوال) ته وويل چې له هرات څخه د ولسي جرګې وکيله ناهيد فريد يو ځل د ملي اردو د روزنې قومندانۍ ته راغلې وه، هغې د ملي اردو پوځيان ته وينا کوله، ويې ويل:"د ملي اردو کسان ډېر پاک نفسه او په هيواد مين ځوانان دي، يو ځل په هرات کې د اردو پوځيانو ودرولم، هغوی ته مې وويل چې زه ناهيد فريد د ولسي جرګې وکيله يم، تاسې د هيواد ساتونکي ياست، زموږ وياړ ياست.

[۲٤٤] ابوشمس د دفاع ورازت د پوځيانو د روزنې قومندانې کې د عقيدوي درسونو استاد دی او پوځيانو ته عقيدوي درسونه وايې تر څو يې مورال جګ شي.

د ملي اردو پوځي راته وويل چې سمه ده، خو يوه پوښتنه کوم، زموږ جګړه له طالبانو سره څنګه "رواه يا ناروا " ده، هغوی پر حق دي که موږ؟
ما (ناهيد) پوځي ته وويل: تاسي پر حقه او طالبان پر ناحقه دي.
پوځي وويل: طالبان پر حقه دي، هغوی د هيواد له خاورې څخه ساتنه کوی، هغوی بهرنيان په هيواد کې نه پرېږدي او موږ پوځيان د دولت له رشوت خورو قاضيانو، په فساد کې ککړو چارواکو څخه ساتنه کوو، تاسي پوهيږئ چې هره شپه د هرات ښار کې څومره ميرمنې بداخلاقي کوي، موږ همدوی ته د بد اخلاقي زمينه برابره کړي، د همدوی د ساتنې لپاره همدلته ولاړ يو، هر شپه څومره فحشا کيږي، خو د همدوی لپاره موږ پيره (ګزمه او ساتنه) کوو. اوس تاسي ووايئ چې موږ که طالبان په حقه دي."
د مئ ۲۳مه ۲۰۱۹، د ملي يووالي حکومت د مشر ډاکتر غني د ځانګړې امنيت سلاکار جنرال حبيب الله احمدزي (۱۴ اکتوبر ۲۰۱۴ وګمارل شو، د اکتوبر ۲۰۱۸ ولسي جرګې ټاکنو ته د نوماند کېدو  له امله يې له دندې استعفی وکړه)، هغه د مئ ۲۳مه ۲۰۱۹، له خورشيد تلويزون سره د  بحث پر مهال وويل چې په ارګ کې اخلاقي فساد شته، له نجونو سره بدلمني د ارګ په دننه کې کيږي، لويې څارنوالي اسناد او شواهد ورڅخه وغوښتل، هغه وويل چې اسناد او شواهد لري خو نړيوالې بې طرفه محکمې ته يې سپاري. ارګ يې څرګندونې رد کړي، خو هغه پر خپلو څرګندونو بيا بيا تکرار وکړ او په ارګ کې يې د اخلاقي فساد د شتون خبره کوله. همدارنګه احمدزي وويل چې د ۲۰۱۸ ولسي جرګې ته ځينو ښځينه وکيلانو هم په ارګ کې د ډاکتر غني له سلاکار ډاکتر فضل محمود فضلي سره د اخلاقي فساد کولو له امله پارلمان ته لاره وموندله. له دي وروسته نړيوالو رسنيو هم په ارګ او د افغانستان په ځينو وزارتونو کې له ښځينه کارکونکو سره د اخلاقي فساد او جنسي ځورنې راپورونه خپاره کړل. او د بي بي سي پښتو څانګې له ځينو ځورول شويو ميرمنو سره مرکې وکړي.

ډاکتر اشرف غني ونه توانېد چې د خپل واک تر وروستۍ ورځې هم د حکومت کابينه بشپړه کړي، ډېری وزيران او عمومي رئيسان سرپرستان وو، په دي کې تر ټولو

جنجالي بحث د افغانستان بانک د رئیس اجمل احمدي و، چې د مالي فساد تورونه ورباندي و، ځيني داسي راپورونه هم ورکول شول چې له افغانستان بانک څخه يې له ارګ سره په تفاهم ډېر ډالر غلا کړي.

جولای ۲۰۲۰ کې راپورونه ورکول شول چې د افغانستان بانک چې ۲۴ساعته برېښنايې اسنانتياوي پکې شتون لري، په قصدي ډول د ۴ ساعتونو لپاره برېښنا قطع چې امنيتي کيمري هم ور سره بندي شوې، په دغه موده کې د افغانستان بانک له خزاني پرېمانه ډالر بل ځای ته انتقال شوې. د بن له کنفرانس وروسته دا لومړی ځل و چې د افغانستان بانک برېښنا پرې او امنيتي کمرې يې بندې شوې وي.

افغان حکومت د ځينو افغان سياستوالو، علماوو او پوهنتون استادانو هدفي وژني پېل کړي؛ هغوی چې په حکومت يې سالم نقد کاوه، تر ټولو لومړي پر ما (ليکوال) وسلوال برید وشو (۱۱ اکتوبر ۲۰۱۹)، له دي وروسته پر ليکوال او سياسي شنونکي قاضي محمد حسن حقيار وسلوال برید وشو( ۳۰اکتوبر ۲۰۱۹)، له هغه وروسته د اسيا په کچه سياسي شنونکی استاد احمد وحيد مژده  په شهادت ورسيد ( ۱۸ نومبر ۲۰۱۹).

د کابل ښار د وزير محمد اکبر خان جامع مسجد خطيب او د کابل پوهنتون استاد مولوي محمد اياز نيازی (۲ جون ۲۰۲۰ )، د کابل د شيرشاه سوري جامع مسجد خطيب مولوي عزيزالله مفلح (۱۲ جون ۲۰۲۰)، د پوهني وزرات د علمي شورا رئيس او د قاصد تحليلي مرکز مشر دکتوبر عبدالباقي امين (۱۹ اګسټ ۲۰۲۰)، د جيعت اصلاح افغانستان د مرکزي شورا رئيس دکتور محمد عاطف (۲ فبروري ۲۰۲۱) او مشهر عالم مولوي محمد نعمان (۱۴ مئ ۲۰۲۱) په يادو نيټو په شهادت ورسول شول او ډيری نور علماء، د پوهنتونو استادان او سياستوال عملاً د افغان حکومت له خوا تهديد  او ځيني يې په شهادت ورسول.

د طالبانو او امريکا ترمنځ "افغانستان ته د سولې راوستلو تړون – ۱۹ فبروري ۲۰۱۹ " مخکې او وروسته جګړو ډېر زور واخيست، په تړون کې ليکل شوې وو چې امريکا او ناټو پوځيان به په ۱۴ مياشتو کې په بشپړ ډول له افغانستان څخه ووځي.

له تړون وروسته طالبانو د ولسواليو نيولو او کنټرول جګړې تيزې کړي، ډيرې ولسوالۍ د طالبانو تر کنټرول لاندې راغلي، افغان حکومت له ولسواليو څخه د دفاع او طالبانو سره مخامخ جګړې کې پاتې راغي، چې بالاخره طالبانو په ځينو سېمو کې د افغان ملي اردو په لويو قطارونو هم مرګوني حملې وکړي[۲۴۵].

څومره چې د طالبانو او مريکا ترمنځ د تړون له مخې د امريکا/ناټو پوځيانو د وتلو مودې ته نيټه نږدې کيده، په همهغه اندازه د طالبانو له خوا جګړې زور اخيست او افغان حکومت يې په وړاندې مقاومت له لاسه ورکاوه.

د طالبانو له خوا د ولسواليو د پرله پسې نيولو طالبان نور هم زوړور کړل، په کندهار ولايت يې بريد وکړ.

[۲۴۵] له تړون وروسته طالبانو په هلمند ولايت کې په ځينو ولسواليو بريدونه وکړل، د تړون له مخې امريکايانو بمبارد بند کړی و، کله چې طالبانو د ولسواليو مرکزونه ونيول او محاصره يې د ولسواليو پر مرکزونو زياته کړه، امريکايانو هم بمبارد پيل، طالبانو او امريکايانو له تړون څخه د سرغړونې پړه پر يو بل اچوله.
۲۱ اکتوبر ۲۰۲۰، د تخار ولايت بهارک ولسوالۍ کې طالبانو پر افغان پوځيانو بريد وکړ چې د ياد ولايت د امنيت امر په ګډون يې تر ۷۰ تنو زيات پوځيان ووژل.
طالبانو په بېلابېلو ولايتونو بريدونه وکړل



ارګ: ډاکټر عبدالله، استاد سیاف، حکمتیار، ډاکټر غني او حامد کرزی



بارک اوباما او حامد کرزی / بارک اوباما او اشرف غني

## د امریکا متحده آیالاتو او طالبانو مذاکرات

د اکتوبر ۷مه ۲۰۰۱، د امریکا تر حملې وروسته تر ۲۰۰۹ ز کال پورې یوازې د جګړې خبرې کېدې، د هیڅا له خولې داسې نه اورېدل کېدل چې طالبانو ته د سولې خبرو حق ورکول شي. افغان حکومت د سولې په نوم د بیا پخلاینې او بیا وروسته د سولې عالي شورا په نوم جوړښتونه جوړ کړي وو، د بیا پخلاینې مشرې حضرت صبغت الله مجددې کوله، چې له نومه یې ښکاري چې حکومت غوښتل چې طالبان له افغان حکومت سره یو ځای شي.

همدارنګه د سولې عالي شورا مشرې هم د لومړي ځل لپاره استاد برهان الدین رباني ته ورکول شوه، بیا هم ټوله هڅه دا وه چې طالبان د افغان حکومت برخه شي، له حکومت سره یو ځای شي.

په ۲۰۰۹ ز کال کې امریکایانو چمتووالی وښود چې له طالبانو سره د خپل بندي پوځي بوبریګډال د خلاصون اړوند خبرې وکړي، د طالبانو د سیاسي کمیسون مشر سید طیب اغا قطر او جرمني ته سفرونه وکړل، همدارنګه په ۲۰۱۰ ز کال کې امریکایانو درک کړه چې جګړه نه شي ګټلای، په قطر کې یې د طالبانو له سیاسي دفتر سره هوکړه وکړه او د دوی ترمنځ لېدنې وشوې.

۲۰۱۱ ز کال کې عملاً د طالبانو استازي په دوحه کې وو. په ۲۰۱۲ ز کال کې یې کورنۍ هم وروستلې او په جون ۲۰۱۳ کې د طالبانو د قطر دفتر له یوې ورځې رسمي پرانستې وروسته بیرته وتړل شو.

۲۰۱۱ او ۲۰۱۲ داسې کلونه وو چې جګړو زیات شدت درلود، د امریکا د هغه وخت ولسمشر بارک اوباما د جګړې تنور ګرم کړی و، افغانستان ته یې ۳۰ زره اضافي پوځیان نور هم را لیږلي وو.

د جګړې دواړه لوریو د نظامي پرمختګونو هڅه کوله. په همدې وختونو کې امریکایي/ ناټو او افغان پوځیانو په ځینو سېمو کې د طالبانو ضد پراخ نظامي عملیات پیل کړي وو، خونړۍ پیښې کېدلې، هره ورځ په لسګونو افغانان د جګړې دواړو لورو ته وژل کېدل، همدارنګه بې ګناه ملکي افغانان هم د جګړې د شدت

له امله وژل کېدل، زخمي کېدل او بې کوره کېدل.

تر ټولو زیات د جګړې شدت په هلمند او کندهار ولایتونو کې وو، همدارنګه په کونړ ولایت کې هم جګړو زور اخیستی وو.

په دغسې جګړېیز حالت کې د سولې خبرې اسانه هم نه وې، د چارواکو له خوا تهدیدونو شتون درلود، یوازې د ټاکنو او ډیموکراسي خبرې په کابل کې کېدلې.

د حامد کرزي د حکومت پر مهال د امریکا تګلاره دا وه چې له طالبانو او حزب اسلامي سره د سولې خبرې ونه شي، بلکې له طالبانو او حزب اسلامي څخه غوښتل کېدل چې له افغان حکومت سره یوځای شي.

کله چې د ډاکټر اشرف غني حکومت (۲۹ سپټمبر ۲۰۱۴) راغی، د امریکا تګلاره دا وه چې حزب اسلامي کابل ته راوستل شي او له طالبانو سره د افغان حکومت د سولې خبرې پیل شي.

د اکتوبر پر ۹مه ۲۰۱۸، د سې شنبې ورځ، په اسلام اباد کې د جګپوړي طالب هیئت او جګپوړي امریکایي هیئت ترمنځ لیدنه وشوه، له ډیرې مودې د پاکستان له خوا غوښتنه او فشار و چې طالبان دي د افغان حکومت له استازو سره مخامخ خبرې وکړي، طالبانو ونه منله او بیا وروسته یې هڅه داوه چې د امریکایانو، طالبانو او افغان حکومت ترمنځ درې اړخیزه خبرې وشي، خو د طالبانو غوښتنه داوه چې یوازې له امریکایانو سره مخامخ خبرو ته کېښیني او طالبان خپل هدف ته ورسیدل.

د طالبانو د هیئت مشرې د شیخ هبة الله د دفتر رئیس مولوي امیرخان متقي کوله، د قطر سیاسي دفتر څخه شیخ شهاب الدین دلاور، مولوي عبدالسلام حنفي او قاري دین محمد هم د هیئت غړي وو او د پلاوي ۴ نور غړي (چې ځینې یې د رهبري شورا غړي وو) ټولو د امریکایي لوري له لوړ پوړي پلاوی سره وکتل[۲٤٦].

[۲٤٦] مولوي عبدالسلام حنفي د کابل نیولو وروسته د رئیس الوزراء اقتصادي وروسته اداري مرستیال، ملا امیرخان متقي د بهرنیو چارو سرپرست وزیر، شیخ دلاور صاحب د معدن او پټرولیم سرپرست وزیر او قاري دین محمد حنیف د اقتصاد سرپرست وزیران اعلان شول.

د امریکا له خوا د بهرنیو چارو وزارت سولې برخه کې ځانګړی استازی زلمی خلیلزاد، د سپینې ماڼې ځانګړی استازی، په افغانستان کې د امریکا/ناټو پوځیانو عمومي قوماندان سکاټ میلر[۲۴۷]، د سي آی اې رئیس او لوړ پوړي چارواکي وو، چې له طالبانو سره یې خبرې وکړی.

د طالبانو – امریکا ترمنځ د مخامخ خبرو اړوند تر ټولو لوی خنډ د سپټمبر ۸مه ۲۰۱۹ کې ځکه را منځته شو چې طالبانو کمپ ډیویډ کې له ولسمشر ټرمپ سره لېدنه رد او د ټرمپ له خوا د ۱۱ میاشتو مخامخ خبرو درولو ټویټ وشو[۲۴۸].

[۲۴۷] جنرال سکاټ میلر په افغانستان کې ډیر کلونه پوځې دنده کړې چې د سپټمبر ۲مه ۲۰۱۸ د جولای ۱۲مې ۲۰۲۱، په افغانستان کې د پریکنده ماموریت (امریکا/ناټو پوځیانو) عمومي قوماندان و.

[۲۴۸] د سپټمبر پر ۸مه ۲۰۱۹، د امریکا ولسمشر ډونالډ ټرمپ درې یو له بل سره تړلې ټویټونه وکړل، ویې ویل چې د یکشنبې ورځ، د سپټمبر ۸مه، د طالبانو له مشرانو سره پلان شوې پټه ناسته او په جلا ډول د افغانستان له ولسمشر سره پټه ناسته په کمپ ډیویډ کې لغوه کوم، ځکه طالبانو په کابل کې تیره ورځ (۵ سپټمبر) یو امریکایې پوځي او ۱۲ بې ګناه کسان ووژل.

ټرمپ پر خپل ټویټر ولیکل:" ټاکل شوې وه د یکشنبې په ورځ د کمپ ډیویډ په تفریح ځای کې د طالبانو د لوړ پوړو مشرانو او د افغانستان د جمهور رئیس سره جلا جلا په پټه توګه ووینم، دوی همدا نن شپه امریکا ته راتلل، متاسفانه د طالبانو ډلې د کاذب فشار راوړلو په خاطر په کابل کې د یو برید مسولیت ومانه چې په هغه کې زمونږ یو ستر سرتیری او ۱۱ تنه نور ووژل شول.

ما سمدستي دا لېدنه لغوه کړه، او د سولې مذاکرات مې ودرول، څه ډول کسان بیشمیره خلک په ظاهره د خپلو چاڼه وهلو د موقف د قوي کولو لپاره وژني؟

دوی (طالبانو) په کابل کې په وروستي برید سره د خپلو چاڼه وهلو موقف غښتلی نه بلکه "خراب" کړ.

که چیري هغوی(طالبان) د سولي د دې مهمو خبرو په جریان کي پر اوربند کولو باندي موافقه نه سي کولای او حتی د دې توان لري چي۱۲ تنه بې ګناه خلګ ووژني، نو ښایي

طالبانو د سیمې هیوادونو ته سفرونه پیل کړل، ایران، ازبکستان، چین، ماسکو او اندونیزیا ته د ملا برادر اخوند [۲۴۹] په مشرۍ د طالبانو د پلاوي سفرونه او په لوړه کچه

هغوی د دې توان هم و نه لري چي د سولې یوه ګټوره او با مفهومه هوکړه لاسلیک کړي. هغوی (طالبان) د څو نورو لسیزو لپاره جګړه کول غواړي."
اصلاً ټرمپ په دي غوسه شوی و چي طالبانو کمپ ډیویډ ته دده بلنه ونه منله، د طالبانو – امریکا مخامخ خبرو په جریان کي ډیر ځله د طالبانو له خوا پر بهرنیو پوځیانو بریدونه شوي وو او مرګ ژوبله یې هم ورته اړولي وه.
د سپټمبر پر ۵مه ۲۰۱۹، د کابل ښار شش درک سیمه کي پر بهرنیو پوځیانو د طالبانو له خوا موټر بم برید وشو، چي پایله کي یې امریکا ومنله چي یو پوځي یې وژل شو.
رسنیو راپور ورکړ چي د برید له امله یو امریکایي سرتیري، د ناټو ځواکونو یو رومانیایي سرتیری او لس افغان ملکي وګړي ووژل شول او ۴۲ تنه ټپیان شول.
طالبانو د برید پړه پر غاړه واخیستله او د طالبانو ویاند ذبیح الله مجاهد پر خپل ټویټر ولیکل:"تن لس بجې د کابل ښار ۹مه حوزه کې د کابل ادارې د استخباراتو د ریاست چهل په نظام قراول کی د بهرنیو اشغالګرو په هغه قطار فدایي برید وشو چې دغه ریاست ته داخلیده، ۳ لنډکروزر موټر بشپړ ویجاړ شول، ۱۲ بهرني اشغالګر او ۸ تنه د کابل ادارې د ملي امنیت په نامه عسکر ووژل شول" .
[۲۴۹] ملا برادر اخوند د ملامحمد عمر اخوند نایب و، د طالبانو اړوند چارو کې یې د پاکستان غوښتنې په نظر کې نه نیولي، سولې ته ژمن و، د پاکستان د استخباراتو له خوا دفبروري ۸مه ۲۰۱۰ سهار مهال ونیول او زنداني شو. د سپټمبر ۲۱مه ۲۰۱۳ په ښکاره د سولې پروسې سره د همکارۍ په نوم له زندان څخه خوشی شو، مګر ډیر ژر بیرته د پاکستاني استخباراتو له خوا ونیول او زنداني شو.
کله چې د امریکا او طالبانو مخامخ خبرې د اکتوبر پر ۹مه، په اسلام اباد کې وشوې، د اکتوبر پر ۲۴مه ۲۰۱۸، ملا برادر اخوند له پاکستاني زندان څخه ازاد شو، د جنورۍ ۲۴مه ۲۰۱۹، د طالبانو د مشر شیخ هبة الله اخوندزاده سیاسي مرستیال او د قطر سیاسي دفتر مشر وټاکل شو.
ملا برادر اخوند د طالبانو له خوا د کابل تر نیولو وروسته د سپټمبر پر ۷مه ۲۰۲۱، مرستیال رئیس الوزراء اعلان شو.

لېدنې د دې لامل شوې چې د افغان حکومت غوسه را وپاروي او د طالبانو د سفرونو اړوند يې رسمي غبرګون وښود.

۲۱ نومبر ۲۰۱۸، له امريکا سره د طالبانو د مذاکراتي ډلې مشر حاجي شيرمحمد عباس ستانکزي [۲۵۰] ما (ليکوال) ته په دوحه کې د ناستي پر ماله وويل:" د طالبانو او امريکا ترمنځ خبرې له ۲۰۱۵ ز کال راپه ديخوا، د اوباما د ولسمشرۍ له وخته جريان درلود، لومړي وخت کې د ريچارډ اولسن Richard Gustave Olson په نوم، بيا د لورال ميلر Laurel Miller په نوم د بهرنيو چارو مرستيال وزيرې او له هغې وروسته د امريکا د بهرنيو چارو مرستيال وزيرې اليس ويلز Alice Wills او بالاخره له زلمي خليلزاد سره طالبانو مذاکرات درلودل[۲۵۱].

---

[۲۵۰] عباس ستانکزی د طالبانو د قطر سياسي دفتر مشر او د رهبري شورا غړی، د طالبانو د نظام پرمهال د بهرنيو چارو او بيا وروسته دعامې روغتيا مرستيال وزير پاتې شوی. هغه د قطر سياسي دفتر مرستيال مشر او کله چې طالبانو خپل نوی مشر ملا اختر محمد منصور وټاکی، سيد طيب اغا د ۲۰۱۵ ز.کال د اګسټ پر ۴مه د سياسي دفتر له مشرتوبه استعفی ورکړه او په قطر کې په علمي او فرهنګي چارو کې بوخت شو. په قطر کې د سياسي دفتر لپاره عباس ستانکزی سرپرست مشر وټاکل شو، چې بيا وروسته د ياد دفتر رئيس وټاکل شو. له امريکا سره د مذاکراتي ډلې مشر، له افغان حکومت سره د مذاکراتي ډلې مرستيال مشر او د کابل تر نيولو وروسته د بهرنيو چارو سياسي مرستيال وټاکل شو.

[۲۵۱] ريچارډ اولسن د بارک اوباما په وخت کې د افغانستان او پاکستان لپاره د امريکا ځانګړی استازی (۱۷ نومبر ۲۰۱۵ تر ۱۷ نومبر ۲۰۱٦) و، له ده وروسته همدا دنده لورال ميلر مخکې وړله. ميلر د ۲۰۱۳ له نيمايي بيا د ۲۰۱۷ تر نيمايي، لومړي وخت کې د افغانستان او پاکستان لپاره د امريکا د ولسمشر د ځانګړي استازي مرستياله او بيا وروسته د ولسمشر ځانګړې استازې وه.

اليس ويلز د جون ۲٦مه ۲۰۱۷، د ولسمشر ټرمپ له خوا د جنوبي او مرکزي اسيا لپاره د امريکا د بهرنيو چارو وزارت ځانګړې استازې په دنده وګمارل شوه.

د اوباما د حکومت پر مهال طالبان له امريکا سره ډير پر مخ ولاړل، ۱۴ مادو کې مقدماتي تګلاره ترتيب شوې وه، چې د قطر دفتر خلاصيدل، د طالبانو او امريکا مخامخ خبرې پيل کېدل او دواړه لوري به په ذمه واري خبرې کوي او تضمين به شتون ولري، مګر بيا هم هغه وخت خبرې ناکامه شوي او حامد کرزي په قطر کې د طالبانو لپاره د دفتر د خلاصيدو سره مخالفت وکړ[۲۵۲].

که ډاکټر غني هم د بهرنيو ځواکونو د وتلو اعلان وکړي، پر سبا يې ورسره خبرې پيل کوو.

امريکايانو ويل چې په قطر کې د طالبانو د دفتر خلاصيدو سره هم مهاله تاسي له افغان حکومت سره خبرې پيل کړئ، ولي موږ ورته ويل چې موږ د امريکا اړوند خبرې له امريکا سره کوو او د افغانانو اړوند خبرې په خپل وخت کې له هغوی سره کوو.

له خليلزاد سره ناستو کې اصلي موضوع د امريکايي پوځيانو د وتلو وه، له دوی (امريکايانو) سره دا انديښنه وه چې په راتلونکي کې بياځل افغانستان د امريکا خلاف ونه کارول شي."

[۲۵۲] د جون مياشتي پر ۱۸مه ۲۰۱۳ ز. کال په قطر کې د دوحې ښار کې د مازيګر پر ٦:۳۰ بجو د طالبانو سياسي دفتر د يو لړ مراسمو په ترڅ کې په رسمې ډول پرانستل شو. په ويډيو کې ښکاريدل چې طالبانوخپل سپين بيرغ د دفتر په دننه کې اوچت کړ او دا ډول د سياسي دفتر لپاره ځانګړي لوحه يې هم د دفتر په مخ کې نصب کړه.

ولسمشرحامد کرزي له دي کبله د ياد دفتر مخالفت وکړ چې د موازي سفارت حثيت لري او د افغانستان سفارت په قطر کې وجود لري. هغه وويل چې د طالبانو بيرغ او د اسلامي امارت په نوم لوحه په قطر کې طالبانو ته د رسميت پېژندلو په معنی ده، شديد مخالفت يې وکړ او بالاخره ياد دفتر له يوې ورځي وروسته وتړل شو.

## د ۱۱ پړاوه خبرو لنډيز د طالبانو له خولې

د نومبر پر ۱۰مه ۲۰۱۹، موږ "پوهاند محمد اسماعيل يون، ډاکټر فيض محمد ځلاند، استاد اسد وحيدي، ولي الله شاهين، خيرالله شينواری، شفيع اعظم او مطمئن" له طالب مشرانو "شيخ شهاب الدين دلاور، شيخ سيد رسول حليم، قاري دين محمد حنيف، سهيل شاهين، مولوي محمد نبي عمري، مولوي ضياء الرحمن مدني، دکتور مزارګل صالح، ملا عبدالاحد جهانګيروال" سره د دوحې په موقنپيک هوټل Movenpick Hotel Doha د جنيوا سالون کې ۵ ساعته ناسته درلودله

طالب مشرانو وويل:"موږ د ولس له غوښتنو پرته نورې غوښتنې نه لرو، له امريکا سره له نږدې ۹ کلونو زموږ مذاکرات روان و، خو يوازې دا يو کال له خليلزاد سره مذاکرات ښکاره و، له دې مخکې د امريکا د ولسمشر بوش له هغه وروسته د ولسمشر اوباما او بيا د ولسمشر ټرمپ د حکومت پر مهال خبرې شوې، هر ځل زموږ او امريکا ترمنځ د بهرنيو ځواکونو د وتلو اړوند مذاکرات چې مخکې وړل شوې، بيا د امريکا له خوا پکې خنډ پيدا شوی او بلې ډلې يې له سره د مذاکراتو د پيل غوښتنه کړې، کله چې خليلزاد مذاکرات پيل کول، هغه ويل چې د تيرو مذاکراتو ۸۰۰ پاڼې راپور مې لوستلی دی.

له امريکايانو سره د اجنډا لپاره ۴ مسايل (له افغانستان څخه د ټولو بهرنيو ځواکونو بشپړ وتل، له افغانستان خاوري امريکا، د دوی ايتلافي او ملګرو هيوادو ته نه ګواښ، بين الافغاني تفاهم او اوربند) وو، چې موږ بايد ورسره خبرې کړې وای، خو موږ له هغوی سره پر دوو مسئلو (له افغانستان څخه د بهرنيو ځواکونو؛ که تر هر نوم لاندې وي، بشپړ وتل او له افغانستان څخه امريکا، د امريکا ايتلافي غړو هيوادونو او متحدينو ته نه ګواښ) باندې بحثونه درلودل، پاتې دوه نور يې زموږ افغانانو داخلي موضوع ده.

د خليلزاد له خوا داسې بلنه وه چې د ملا برادر په ګډون به د مذاکراتي ډلې ټول غړي د سپټمبر پر ۹مه يا ۱۰مه واشنګټن کې له ټرمپ سره ګوري، خو موږ ته يې نه و ويلي چې ډاکټر غني هم واشنګټن ته بلل کيږي او لېدنه به په کمپ ډيويډ کې

وي، بلکې موږ ته يې داسې ښودله چې لېدنه به په واشنګټن کې له ټرمپ سره يوازې د طالبانو وي. موږ د امريکايانو بلنه منلې وه، د دوی غوښتنه وه چې د تړون د لاسليک د نيټې تر اعلان وروسته او د تړون تر لاسليک مخکې به له ټرمپ سره ګورئ، خو موږ ور سره ونه منله او دوه لاملونه يې درلودل:

۱ - مخکې د تړون له لاسليک څخه که له ټرمپ سره ووينو، دا انديښنه پيدا نه شي چې طالبانو معامله وکړه.

۲ - دافغانانو دود دادی چې د دښمن کور ته له روغې مخکې نه ورځي.

کله چې موږ واشنګټن ته خپل تګ لغوه کړ، دلته په قطر کې شپه وه چې ټرمپ ټويټ کړی و چې خبرې درول شوې، سهار مې قاري حنيف ته وويل چې خبره خطرناکه شوه. اصلاً خبره د مذاکراتو د لغوه کېدو نه، بلکې زموږ د نه تګ له امله ټرمپ دا کار وکړ.

موږ وروسته بيا خبر شوو چې د امريکا له خوا لېدنه په کمپ ډيوېډ کې ترتيب شوې وه او ډاکټر غني هم ور غوښتل شوی و.

له خليلزاد سره موږ د بنديانو د تبادلې په اړه ناسته درلوده، خليلزاد ويل چې د ښه نيت له کبله تاسې بايد د پوهنتون دوه استادان (جان ويکس او کيون کېنګ) خوشې کړئ، موږ ورته وويل چې تاسې هم بايد انس حقاني، حافظ عبدالرشيد او حاجي مالي خان خوشې کړئ."

بالاخره د خبرو د بيا پيل او دواړو لورو له خوا د ښه نيت ښکاره کولو په موخه د انس حقاني او دوو ملګرو تبادله د افغان -امريکايي پوهنتون له دوو استادنو سره وشوه[۲۵۳].

---

[۲۵۳] د بحرين هوايي ډګر کې د امريکا له خوا بې وسلې انس حقاني او حافظ عبدالرشيد د ۲۰۱۴ز. کال د اکتوبر مياشت کې ونيول شوو، دوحې ته يوړل شول او له هغه ځايه باګرام زندان ته راوستل شول. په مقابل کې يې د حقاني شبکې له خوا د امريکايي پوهنتون دوه استادان "ټيموتي جان ويکس او کيون کېن" د ۲۰۱۶ز. کال د اګسټ په مياشت کې له کابل څخه وتښتول شوو.

د يادې تبادلې له امله د طالبانو او امريکا ترمنځ ولاړ مذاکرات بياځل پيل، په لنډه موده کې دواړه لوري تفاهم ته ورسېدل، د فبروري ۲۹مه ۲۰۲۰، په دوحه کې د امريکا او طالبانو ترمنځ "افغانستان ته د سولې راوستلو تړون"، د طالبانو د مرستيال مشر ملا عبدالغني برادر او د افغانستان لپاره د امريکا د بهرنيو چارو وزارت ځانګړي استازي زلمي خليلزاد ترمنځ لاسليک شو، په مراسمو کې د امريکا د بهرنيو چارو وزير مايک پمپيو [254] او ګڼو هيوادو بهرنيو چارو وزيرانو او ځانګړو استازو ګډون کړی وو.

له تړون څخه په ځينې مواردو کې دواړو لورو سرغړونې درلودلې، امريکايې او ناټو پوځيان د تړون مطابق په خپله نيته له افغانستان څخه په بشپړ ډول ونه وتل، له طالبانو يې وغوښتل چې لږ نور وخت هم ورته ورکړي.

له افغانستان څخه د اګست پر ۳۱مه ۲۰۲۱، د شپې ۱۲ بجې، ورووستی امريکايې پوځي د کابل نظامي هوايي ډاګر څخه پوځي الوتکې ته پورته او په بشپړ ډول زموږ له هيواده د امريکا/ناټو پوځيان ووتل.

د امريکا او طالبانو د مذاکراتو اړوند تفصيل، جزئيات او مسايل زما "د امريکا او طالبانو د سولې تړون، ۱۱ پړاوه مخامخ خبرې" کتاب کې ولولئ.

---

د نومبر پر ۱۸مه ۲۰۱۹، درې طالب بنديان (انس حقاني، حافظ عبدالرشيد او حاجي مالي خان ) دوحې ته يوړل شول او د نومبر پر ۱۹مه يې تبادله د افغان - امريکايې پوهنتون له دوو استادانو (امريکايي پروفيسور کوين کينګ او استراليايي پروفيسور ټيموتي ويکس) سره وشوه. طالب بنديان د طالبانو د قطر د سياسي دفتر غړو ته په دوحه کې وسپارل شول او د پوهنتون استادان د زابل ولايت په نوبهار ولسوالۍ کې امريکايانو ته وسپارل شول.
انس حقاني د مشهور جهادي قومندان مولوي جلال الدين حقاني زوی، د طالبانو د مرستيال مشر ملا سراج الدين حقاني ورور دی، حاجي مالي خان يې ماما دی او حافظ عبدالرشيد په قطر کې د طالبانو د سياسي دفتر غړي مولوي محمد نبي عمري ورور دی.

[254] د امريکا د بهرنيو چارو وزير (۲٦ اپرې ۲۰۱۸ تر ۲۰ جنوري ۲۰۲۱)، د سي آی اې مشر (۲۳ جنوري ۲۰۱۷ تر ۲٦ اپريل ۲۰۱۸).

## د حکومت او طالبانو مخامخ خبرې

د امریکا او طالبانو د سولې تړون پر بنسټ او تفاهم چې د تړون له لاسلیک وروسته به په ۱۰ ورځو کې د طالبانو ۵۰۰۰ بندي جنګیالي د افغان حکومت له زندانو خوشي کیږي، د مارچ پر ۱۰مه ۲۰۲۱ به د افغانانو خپلمنځي خبرې پیل کیږي.

افغان حکومت د ۵۰۰۰ طالب بندیانو لړۍ ډیره وځنډوله، چې د دې لړۍ لومړۍ جوپه ۱۰۰ تنه طالب بندیان د اپریل ۱۲مه ۲۰۲۰[255] او وروستي ٦ طالب بندیان د سپتمبر ۱۰مه ۲۰۲۰ خوشي شول، ۲ تنه یې کابل کې طالبانو ته وسپارل شول او پاتې ۴ تنه یې د امریکایي پوځیانو له خوا دوحې ته انتقال، وروسته طالب مشرانو ته وسپارل شول.

د طالبانو له ۵۰۰۰ بندیانو خوشي کېدو وروسته طالبانو ومنله چې د افغان حکومت له لوري ور پېژندل شوې پلاوي سره د سولې خبرې وکړي[٢٥٦].

د سپتمبر ۵مه ۲۰۲۰، طالبانو د افغانانو د خپلمنځي خبرو لپاره لاندي پلاوی اعلان کړ.

---

[٢٥٥] د اپریل پر ۸مه افغان حکومت د ۱۰۰ طالب بندیانو، دارنګه پر ۱۰مه او ۱۱مه هم د سل سل کسانو د خوشې کیدو اعلان وکړ، مګر طالبانو تاید نه کړه چې خوشي شوې کسان طالبان وو، د اپریل پر ۱۲مه د طالبانو لخوا د حکومت د امنیتي ځواکونو ۲۰ تنه بندیان په کندهار کې خوشي شوو او د حکومت لخوا ۱۰۰ تنه طالب بندیان په کابل کې خوشي شوو.

[٢٥٦] طالبانو غوښتل چې د افغانانو خپلمنځي خبرو کې به افغان حکومت د نورو سیاسي ګوندونو او لورو تر څنګ یو لوری وي، هڅه یې داوه چې افغان حکومت سره د ټولو جهتونو په استازولي خبرې ونه کړي، د امریکا او نړیوالو له خوا پر طالبانو فشار و چې د افغان حکومت او طالبانو؛ دوو جهتونو ترمنځ سولې ته د رسیدو خبرې وشي، په دي برخه کې د امریکا په غوښتنه د پاکستان او قطر هیوادو له خوا پر طالبانو ډیر فشار و، بالاخره طالبانو ومنله چې په کور دننه د ټولو سیاسي ګوندونو په استازولي له افغان حکومت سره مخامخ د سولې خبرې وکړي.

د انجنیر ګلبدین حکمتیار په مشرې حزب اسلامي او د صلاح الدین رباني په مشري جمعیت اسلامي د افغان حکومت تر مشري لاندي د سولې خبرو کې له ګډون څخه ډډه وکړه.

شیخ عبدالحکیم د پلاوي مشر، حاجي شیرمحمد عباس ستانکزی مرستیال مشر او مولوي عبدالکبیر، مولوي عبدالسلام حنفي، مولوي امیرخان متقي، شیخ شهاب الدین دلاور، ملا نورالله نوري، ملا خیرالله خیرخواه، مولوي عبداللطیف منصور، ملا عبدالمنان عمري، محمد انس حقاني، سهیل شاهین، ملا محمد فاضل مظلوم، مولوي محمد نبي عمري، مولوي دین محمد حنیف، ملا عبدالحق وثیق، مولوي مطیع الحق خالص، مولوي محمد قاسم راسخ، ملا شیرین اخوند، مولوي فرید الدین او ډاکټر محمد نعیم وردګ غړي.

د مارچ پر ۲٦مه ۲۰۲۱، د افغان حکومت له خوا د خبرو لپاره لاندي ۲۱ کسان اعلان شول: معصوم ستانکزی د افغان پلاوي مشر، میرمن فاطمه ګیلاني، نادر نادري، عبدالمتین بیګ، فوزیه کوفي، ضرار احمد مقبل، عبدالهادي ارغندیوال، محمد رسول طالب، حبیبه سرابي، ډاکتر غیرت بهیر، محمد حفیظ منصور، غلام فاروق مجروح، مولوي عنایت الله بلیغ، باتور دوستم، کلیم الله نقیبي، محمد ناطقي، جنرال ایوب انصاري، شهلا فرید، شریفه زرمتی، خالد نور او ډاکتر امین احمدي.

له ځنډونو، ستونزو، مشکلاتو او بې باوریو وروسته، د امریکا او نړیوالو د ډېر فشار پایله کې د سپټمبر ۱۲مه ۲۰۲۰ په دوحه کې د طالبانو او افغان حکومت ترمنځ د سولې خبرې رسمي پیل شوې، مګر ډېر ژر له ځنډ او ځنډ سره مخ شوې، د اجنډا په سر نه توافق، د امریکا-طالبانو تړون اړوند د دواړو لورو د نظر اختلاف او ډېر نور مسایل وو چې د افغانانو خپلمنځي ناستې او مذاکرات یې له ځنډ او ځنډ سره مخ کړي وو، نږدې درې میاشتې دواړو لوریو د اجنډا پر سر توافق باندي ناندرۍ ووهلې، د دوی ترمنځ د بې باورۍ له امله ناستې یې په ډېر ځنډ کیدلې، تر دې چې طالبانو په نظامي ډګر کې پرمختګ وکړ، یو په بل پسې یې ولایتونو ونیول، د کابل په څنډو کې د څو ساعتونو لپاره تم او بیا د افغان سیاستوالو په غوښتنه، په دوحه کې له امریکایانو سره تر لنډې ناستې وروسته طالبان کابل ښار ته ننوتل.

د افغان حکومت مذاکراتي ډله لا هم په دوحه کې د سولې خبرو په تمه وه چې کابل طالبانو ونیو، د حکومت د پلاوي غړي له دوحې بېلابېلو هیوادو، ډېری یې

ترکیې ته ولاړل او بیرته کابل ته را ونه ګرځیدل.

د افغان حکومت او طالبانو د سولې مذاکراتو د پیل، ستونزو، ناغیړیو او د طالب بندیانو خوشې کېدو باندې زوروري چنې او نانډریو اړوند جزئیات او مسایل زما "لیکوال" په راتلونکې کتاب کې لوستلای شئ.

د طالبانو له خوا د ولسواليو تيز او له مقابلې پرته په اساني نيولو هغه زړور کړل چې د ولايتونو په مرکزونو هم بريدونه وکړي.

تر ټولو زياته توجه کندهار ولايت ته وه، طالبانو په ارغنداب ولسوالي کې سختې جګړې له افغان حکومت سره وکړي او ښار ته نږدې کېدل چې د امريکا هوايي ځواکونو له خوا تر سخت بمبارد لاندې راغلل، طالبانو ته ډېر ځاني او مالي زيان واوښت خو جګړې يې ونه درولې، طالبانو د کندهار ښار باندې بريد او محاصرې لپاره له نورو ولايتونو هم نظامي ځواکونه وغوښتل.

په کندهار کې طالبانو ډېر کرار پرمختګ کاوه، همهاله يې په هلمند ولايت کې هم مرکز ته نږدې ولسوالۍ په اساني او پرته له سختو جګړو ونيولې، د هلمند طالبانو پر لښکرګاه بريدونه زيات او محاصره يې پرې را تنګه کړه.

په هلمند ولايت کې جګړه تيزه او سخته شوه، د لښکرګاه ډېری سيمې طالبانو تر خپل کنټرول لاندې راوستې، ډېر کرار کرار يې پرمختګ کاوه، د لښکر ګاه ښار کې ځينې حوزې يې هم تر واک لاندې راغلې، مګر د افغان امنيتي ځواکونو له خوا په ښار کې له طالبانو جګړه ورځ تر بلې سختېده، بمبارد او د لويو توپونو له امله د لښکرګاه ښار ځينې ودانۍ زيانمنې شوې، د بست شخصي پوهنتون ودانۍ هم بمبارد شوه، دارنګه د قالينو مارکيټ اور واخيست.

فکر کيده چې تر ټولو مخکې به هلمند ولايت د طالبانو له خوا ونيول شي، مګر له تصور پورته هلته جګړې ورځ تر بلې زور اخيست، د طالبانو په وړاندې افغان امنيتي ځواکونه سخت مقاومت کاوه.

امنيه قومندان په زخمي حالت کې د جګړې مشرې کوله، دارنګه د قول اردو قومندان د جګړې قومانده په غاړه درلوده او په لښکرګاه ښار د بمبارد امرونه يې ورکول.

کندهار کې دا مهال چې هلمند کې جګړې زور واخيست، د لښکرګاه ښاريانو ته پکې درانه مالي زيانونه واوښتل، د کندهار امنيتي ځواکونه د طالبانو په وړاندې

جګړې کمې او ویې نه غوښتل چې هلته هم د لښکرګاه په ډول خلکو ته مالي زیانونه واوړي.

د کندهار د مشرانو له خوا له افغان امنیتي ځواکونو او طالبانو غوښتنه وشوه چې په ښار کې جګړې ونه کړي.

د بولدک مهمه ولسوالي چې د پاکستان سره د تګ راتګ کرښه هم ده، د طالبانو له خوا ونیول شوه، افغان امنیتي ځواکونه یې د بیرته نیولو لپاره لویه قوه چمتو او یادې ولسوالي ته نږدې له طالبانو سره مخامخ شوه، د جنوري ۱۳مه ۲۰۲۲، د جګړې عیني شاهد مولوي محمد ابرار لبیب ما (لیکوال) ته وویل:" طالبان خبر نه وو چې د بولدک د نیولو لپاره دومره لویه او مجهزه قوه بولدک ته را راونه ده، کله چې پوځیانو ټانکونه بولدک ښار ته را نږدې شول، طالبان سره پاشلي وو، هر چا فکر کاوه چې بولدک ښار به د افغان پوځیانو له خوا ونیول شي، یو ناڅاپه د طالبانو له خوا دوه یا درې ټانکونه را ښکاره شول، همداسي مخامخ یې د افغان امنیتي ځواکونه د قوې د قطار په مخکنیو ټانکونو ور وزغلول او ورسره ټکر یې کړل، کله چې افغان امنیتي پوځیانو دا حالت ولېدل او بولدک ښار ته د دوی لاره یې هم بنده کړه، دغه حالت پوځیان نا ارامه او وډار کړل، لنډ وخت لپاره جګړه وشوه او لویه قوه بیرته د کندهار د قول اردو په لور حرکت وکړ، طالبانو تعقیب کړه، افغان پوځیانو ته مرګ ژوبله واوښته، همدا وروستې جګړه شوه چې له دې وروسته د کندهار ښار تر سقوط پورې بیا سخته جګړه ونه شوه."

د طالبانو د ارشاد او دعوت کمیسون مشر مولوي امیرخان متقي[۲۵۷] هم په هیواد کې دننه د ټولنیزو رسنیو د لارې له افغان پوځیانو په تکرار غوښتل چې پرته له جګړې تسلیم شي، دارنګه د طالبانو د مشر شیخ هبة الله اخوندزاد له خوا د افغان دولت چارواکو او

[۲۵۷] مولوي امیرخان متقي د طالبانو د لومړي ځل واکمنۍ پر مهال د اطلاعاتو او کلتور وزیر، د اداره امور رئیس او د پوهنې وزیر و، له امریکا/ناټو سره د جګړې پر مهال د سیاسي کمیسون مشر، د شیخ هبة الله اخوندزاده د دفتر مشر، د ارشاد او دعوت کمیسون مشر، د کابل تر نیولو وروسته د سپټمبر پر ۷مه ۲۰۲۱، د بهرنیو چارو سرپرست وزیر شو.

امنيتي ځواکونو ته د عمومي عفوې فرمان هم په رسنيو کې خپور شو.

د ټولو ولايتو نظامي طالبانو تمه درولودله چې تر ټولو لومړی به هلمند ولايت ونيسي، کله چې په هلمند کې له طالبانو سره د افغان امنيتي ځواکونه مقاومت زيات او نږدې دوه اونۍ وخت يې ونيو، طالبانو په کندهار، هرات او ځينې شمالي ولايتونو کې هم د ولايتو پر مرکزونو بريدونه پېل کړل.

د توقع پر خلاف تر ټولو لومړی او پرته له جګړې، د اګسټ ٦مه ۲۰۲۱، د نيمروز ولايت طالبانو ته په سولئيز ډول د افغان حکومت والي عبدالکريم براهوي له خوا وسپارل شو.

د اګسټ پر ۷مه، د جوزجان ولايت، د اګسټ پر اتمه سرپل او کندز، د اګسټ پر ۹مه، سمنګان، د اګسټ ۱۰مه، فراه او بغلان، دارنګه د شپې ناوخته بدخشان هم طالبانو ونيو چې اعلان يې د اګسټ پر ۱۱مه وشو.

د اګسټ پر ۱۲مه، سهار مهال د غزني والي او امنيه قومندان ته طالبان د کابل په لور د وتلو لاره ورکړه، ولايت ته طالبان ننوتل، مګر د افغان حکومت والي په ميدان ښار کې د کورنيو چارو وزارت له خوا ونيول شو. په همدې ورځ د ماښام ناوخته هرات ولايت هم تر سختو جګړو وروسته طالبانو ونيو.

له هرات سره همهاله د بادغيس ولايت هم طالبانو تر واک لاندي ورغی چې طالبانو يې د بشپړ نيولو اعلان پر سبا سهار وکړ.

د اګسټ پر ۱۲مه، ناوخته ماخوستن مهال د طالبانو له خوا د هلمند محاصره افغان امنيتي ځواکونو ته د شوراو پوځي اډې [۲۵۸] پر لور د خوندي تګ اجازه ورکول شوه،

[۲۵۸] د شورا پوځي اډه Camp Bastion چې تر باګرام وروسته د امريکا/ناټو پوځيانو تر ټولو لويه اډه وه، د هلمند ولايت کې يې موقعيت درلود. ياده پوځې آده د بريتانوي پوځيانو له خوا په ۲۰۰۵ او ۲۰۰٦ کې جوړه شوه، چې له دويېمې نړيوالې جګړې را وروسته د بريتانوي پوځيانو تر ټولو لويه آده وه، په نومبر ۲۰۰٦ کې د بريتانيا لومړی وزير ټوني بلير هم يادې پوځې اډې ته ورغلی و. د شوراو پوځي آدې اړوند چارې په ۲۰۱۴ کې د

له درنو جګړو، مالي او زياني تاوانو وروسته په همدې شپه د هلمند ولايت هم د طالبانو تر واک لاندي راغی او اعلان يې پر سبا سهار وشو.

دارنګه د اګست پر ۱۲مه، ماخوستن ناوخته د کندهار ولايت چارواکو ته هم د کندهار هوايي ډګر په لور د تګ خوندي لار د طالبانو له خوا ورکول شوه، ياد ولايت هم طالبانو ته وسپارل شو. د کندهار والي او امنيه قومندان او نور لوړ پوړي چارواکې په کندهار کې پاتې او طالبانو يې ژوند هم وژغوره. د ياد ولايت د پوره نيولو اعلان هم طالبانو سهار وختي وکړ.

په يوه ورځ کې پنځه ولايتونه چې د کندهار، هلمند او هرات مهم ولايتونه پکې وو، د طالبانو تر واک لاندي راغلل، نور نو افغان حکومت عملاً له سقوط سره مخ شوی و.

د اګست پر ۱۳مه، څلور (غور، ارزګان، لوګر او زابل) ولايتونه طالبانو پرته له جګړې ونيول.

په همدې ورځ؛ په هرات ښار کې له طالبانو سره د جګړې کوونکي پوځ مشر تورن اسماعيل خان، د کورنيو چارو مرستيال وزير عبدالرحمن، د هرات ظفر قول اردو قومندان خيال نبي احمدزی، د هرات والي عبدالصبور قانع او د ملي امنيت رئيس حسيب صديقي او يو شمير نور لوړ پوړي چارواکي له زرګونو پوځيانو سره طالبانو ته ژوندي تسليم شول، لنډ مهال وروسته يې ټول خوشي کړل.

د تورن اسماعيل خان خوشې کېدو د دولت نور لوړ پوړې چارواکې ډاډه کړل چې طالبان خپل مخالفين نه وژني، د خپل مشر شيخ هبة الله اخوندزاده د عفوي فرمان ته ژمن دي.

د اګست پر ۱۴مه، د بلخ ولايت مرکز مزار شريف په شمول ٦ ولايتونه (پکتيکا،

افغانستان دفاع وزرات ته وسپارل شوې، مګر تر ۲۰۲۱ پوري لا هم هلته ګڼ شمير بهرني پوځيانو شتون درلود.

پکتیا، کنړ، فاریاب او لغمان) د طالبانو ځواکونو ته پرته له جګړې تسلیم شول.

مزار شریف کې د عطاء نور او عبدالرشید دوستم په مشرۍ وسلوالو له طالبانو سره تر لنډې جګړې وروسته ماتې وخوړله، خپله دوستم او عطاء محمد نور د حیرتان پُل د لارې ازبکستان ته وتښتېدل او ډیرى جنګیالي یې طالبانو ته تسلیم شول چې هغوى بیا ډیر ژر ټول یې خوشي شول.

د اګسټ پر ۱۵مه، د کابل له نیولو سره همهاله پاتې ټول ولایتونه (ننګرهار، لوګر، نورستان، میدان وردګ، خوست، کاپیسا، پروان، بامیان، ډایکنډي، تخار) طالبانو ته تسلیم شول، یوازې د پنجشیر ولایت د جګړې لپاره تیارى نیوى.

د پنجشیر له قومي مشرانو، علماوو او چارواکو سره د ملا امیرخان متقي په مشري طالبانو خبرې وکړې، د طالبانو او پنجشیر د چارواکو ترمنځ خبرې بې نتیجې وې، امرالله صالح او احمد مسعود عملاً د جګړو مشرۍ کوله، مګر صالح وار له مخه له هیواده وتلی و، ویل کیږي چې احمد مسعود چمتو و چې پرته له جګړې د پنجشیر مسئله حل شي، خو د پنجشیر د چارواکو او جګړه مارو غوښتنې ډیرې لویې او د افغانستان په ګچه وې، بالاخره طالبانو د پنجشیر ولایت باندې برید وکړ، یاد ولایت د سپټمبر پر ٦مه، د طالبانو له خوا ونیول شو او احمد معسود ایران ته وتښتیدی.

## د کابل نیول

افغان حکومت یو په بل پسې د ولایتونو کنټرول د لاسه ورکاوه، په یوه ورځ کې ٦ ولایتونه هم د طالبانو له خوا ونیول شول.

طالبان د کابل څنډو ته راورسیدل، مگر له امریکا سره د تفاهم له مخې طالبانو نه غوښتل چې د جګړې او زور د لارې کابل ښار ته ننوځي، هغه مهال د افغان حکومت او طالبانو ترمنځ مړاوي او بې نتیجې خبرې رواني وې[۲۵۹].

د اګسټ پر ۱۴مه ۲۰۱۲، ماخوستن مهال حامد کرزی او ځینې نور سیاسي مشران له ډاکټر غني سره ناست وو، تر څو خپل بشپړ واک لرونکی پلاوی دوحې ته ولیږي او طالبانو ته د سولئیز واک د انتقال پر مسئله خبرې وکړي، په همدې شپه له ډاکټر غني څخه د استعفی لیک غوښتنه هم شوې وه.

ډاکټر غني له حامد کرزي او نورو افغان سیاستوالو سره ژمنه کړې وه چې د اګسټ پر ۱۵مه به خپل استازي له پوره واک سره دوحې ته لیږي، مګر داسې ونه شول.

د وروستیو معلوماتو پر بنسټ، د اګسټ پر ۱۵مه، د طالبانو وسلوال د پغمان ولسوالي له لوري د کابل ښار څنډو ته را رسیدلي وو، کابل د محاصرې حالت درلود، اوازې داسې وې چې د کمپنۍ بازار ته طالبان ننوتلي، په همدغه ډول حالت کې د افغانستان بانک څخه ځینې تجاranو او لوړ پوړو چارواکو غوښتل پیسې له خپلو

[۲۵۹] د افغان حکومت او طالبانو ترمنځ مخامخ رسمي مذاکرات د سپټمبر ۱۲مه ۲۰۲۰ په دوحه کې پیل شوې، څو ځله مذاکرات له خنډ او ځنډ سره مخ شول، مګر لا هم افغان حکومت تمه درلوده چې خبرې به رواني وساتي، بل خوا طالبانو فکر کاوه چې یاد مذاکرات یوازې د وخت ضیاع، ډاکټر اشرف غني د واک پریښودل سولې ته ژمن نه دی.
په مذاکراتو کې د ځنډ او خنډ پړه طالبانو پر حکومت او حکومت پر طالبانو ور اچوله.
تمه وه چې د اګسټ پر ۱۵مه ۲۰۲۱ به د افغان حکومت له خوا بشپړ واک لرونکی پلاوي دوحې ته ځي او هلته به له طالب مشرانو سره د سولئیز واک د انتقال پر مسئله خبرې کوي، چې په همدې ورځ ډاکټر اشرف غني له هیواده وتښتیدی او په کابل کې د واک خلا رامنځته شوه.

اکونټونو څخه تر لاسه کړي، هلته ګڼه ګونه زیاته وه، د نوبت نیولو او بانک ته ننوتلو لپاره د یوه حکومتي چارواکي ساتونکو د بانک مخې ته ډزې کړي وي، همدغه ډزې د ډاکټر غني د تیښتې لامل هم شوي.

د اګست پر ۱۵مه، ډیری ادارې له مامورینو تشې وي، دولتي چارواکي په ویره کې وو، هر چا ځان تر کوره رساوه، په کمپینۍ او د افغانستان بانک مخې او کابل ښار ځینې نورو برخو کې د ډزو کیدو له امله دا اوازه قوي شوې وه چې طالبان کابل ښار ته ننوتلي دي، ډاکټر غني له دې ویرې چې ژوندي ونه نیول شي له ارګ څخه د ۳ چورلکو په واسطه وتښتیدی، د ازبکستان ترمذ ښار ته ورسید، له ازبک چارواکو یې مننه وکړه چې هلته یې د ده د سپرلۍ الوتکې ته اجاره ورکړه، له هغه ځایه د متحده عرب اماراتو مرکز ابوظبۍ ته له خپلو نږدې ملګرو، د ملي امنیت شورا مشر ډاکټر حمدالله محب او د ډاکټر غني د دفتر رئیس ډاکټر فضل محمود فضلي سره ورسیدل.

د دفاع وزیر بسم الله محمدي، د ملي امنیت رئیس احمد ضیاء سراج، لوی درستیز سمیع سادات او د پوځي او امنیتي ادارو لوړ پوړي چارواکي د کابل نظامي هوایې ډګر ته تښتیدلي وو[۲۶۰]،

مخکیني ولسمشر حامد کرزی او د سولې او پخلاینې رئیس ډاکټر عبدالله عبدالله کابل ښار کې پاتې وو، دارنګه د کورنیو چارو وزیر عبدالستار میرزکوال هم کابل کې و[۲۶۱].

---

[۲۶۰] د مارچ ۱۹مه ۲۰۲۱، د دفاع وزیر اسدالله خالد استعفی ورکړه، له هیواده ووت، پر ځای یې د لنډ وخت لپاره یاسین ضیاء سرپرست وګمارل شو. د جګړو د شدت له امله ډاکټر غني مجبور شو چې بیاځل بسم الله محمدي (۱۹ جون تر ۱۵ اګست ۲۰۲۱) ددفاع وزیر کړي.

[۲۶۱] د مارچ ۱۹مه ۲۰۲۱، حیات الله حیات د اندرابي پر ځای د کورنیو چارو وزیر وټاکل شو او درې میاشتې وروسته د جون ۱۹مه ۲۰۲۱ میرزکوال د حیات الله حیات پر ځای د کورنیو چارو وزیر وټاکل شو، د اګست پر ۱۵مه یې طالبانو ته د کابل ښار سپارلو اعلان وکړ. اندرابي دوه کاله او دوه میاشتې (۱۹ جنوري ۲۰۱۹ تر ۱۹ مارچ ۲۰۲۱) د کورنیو چارو وزیر و.

د ډاکټر غني له تيښتي څخه د ماسپښين نږدې ۳ بجې حامد کرزی خبر شوی وو، هغه له دفاع وزير بسم الله محمدي او د ملي امنيت له رئيس احمد ضياء سراج څخه غوښتې وو چې له هيواده ونه تښتي، خپلو دنده وگرځي او د کابل امنيت خوندي کړي.
د کابل ښار څخه د غلاوو او لوټ خبرونه ورکول کېدل، د شپې په راتلو د هر کابل ښاري سره ويره وه چې په دي ښار کې به په پرېمانه کچه غلاوي او لوټ کيږي.

ملا عبدالسلام ضعيف د اگسټ پر ۱۸مه، له قطر څخه استانبول ته راغی، هغه وويل: "د اگسټ پر ۱۵مه، حامد کرزي ټليفون راوکړ، ويې ويل چې ډاکټر اشرف غني او نور لوړ پوړي چارواکي له ارگ او وزارتونو څخه تښتيدلي، شپه را روانه ده، که طالبان کابل ښار ته داخل نه شي، دلته به گډوډي، چور، غلا او لوټ وشي، بې نظمي او ډيرې امنيتي پېښې به وشي، تاسي طالب مشرانو ته ووایاست چې کابل ښار ته را ننوځي، د ښار کنټرول او امنيت په خپل لاس کې واخلي.

کرزي ته مې وويل چې زه طالب مشرانو ته خبره کوم، مگر هغوی له امريکايانو سره تفاهم کړی چې کابل ښار ته به په زور نه ورننوځي، په سولئيز ډول به د واک انتقال ورته کيږي، مگر د کرزي ټينگار پر دي وو چې طالبان بايد کابل ښار ته مخکې له شپې را رسيدو داخل شي.

کرزي ته مې وويل چې تاسي دا خبره زلمي خليلزاد سره هم وکړئ، امريکايان دي له طالبانو وغواړي چې د کابل ښار د کنټرول او امنيت لپاره خپلو وسلوالو ته ښار ته د ننوتلو اجاره ورکړي.

پيغام مې ملا محمد فاضل اخوند ته ورساوه، هغه وويل چې موږ خپلو ټولو جنگيالو ته امر کړی چې د کابل ښار ته داخل نه شي، موږ هغه تفاهم ته ژمن يو کوم چې مو له امريکايانو سره کړی، د کابل ښار د امنيت ساتل د حکومت او چارواکو مسؤليت دی.

ځنډ وروسته بيا ځل حامد کرزي ټليفون وکړ، د هغه غوښتنه دا وه چې طالبان پرته له ځنډ څخه کابل ښار ته داخل شي، کرزي او ملا محمد فاضل اخوند خبرې سره وکړي، بياځل ملا فاضل اخوند هغه ته وويل چې موږ ښار ته نه داخليږو.

لږ وروسته زلمي خلیلزاد له طالبانو د بیړنۍ ناستې غوښتنه وکړه، په ناسته کې د امریکا پوځي او سیاسي مشرانو او د طالبانو مرستیال مشر ملا برادر او مهمو طالب مشرانو ګډون درلود، د امریکایانو له خوا له طالبانو وغوښتل شول چې د کابل ښار د امنیت ساتلو، له ګډوډۍ، غلا، لوټ، چور او چپاول څخه د مخنیوي په خاطر چې څومره ژر کیدای شي، طالبان دې خپلو جنګیالیو ته؛ پرته د کابل ملکي او نظامي هوایې ډګر، نور ټول کابل ښار ته د ننوتلو اجازه ورکړي."

د اګست پر ۱۵مه، مازدیګر قضاء ماښام مهال طالبان کابل ته ننوتل، د ملا احمدالله په مشرۍ یوه ډله طالبان ارګ ته ننوتل[۲۶۲]، هلته یې تود هرکلی وشو، له هر لوري کابل ښار ته طالبان ننوتل، کابل کې دننه د شپې مهال، د مدرسو طالبانو هم د تېر نظام له امنیتي ځواکونو څخه وسلې تر لاسه او د کابل امنیت یې ونیو، په لومړۍ شپه ګډ وډې وه، ویره وه، غلاوې هم وشوې.

د اګست پر ۱۵مه، د بېلابېلو افغان سیاستوالو او ځینې مشرانو له خوا له ما "لیکوال" څخه هم وغوښتل شول چې ددوي پیغام طالبانو ته ورسوم چې کابل ښار ته داخل شي، که داخل نه شي، شپه را روانه ده، کابل ښار کې به غلاوې او ګډوډې وشي.

د اګست پر ۱۶مه، ځینې طالبان مشران هم کابل ته ننوتل، د حامد کرزي او ډاکټر عبدالله له خوا هم خلکو ته ډاډ ورکول شو چې د کابل ښار امنیت نیول شوی، خلک دې ویره نه خپروي.

د جنوري په ۳مه ۲۰۲۲، مرستیال رئیس الوزراء ملا عبدالغني برادر اخوند د افغانستان ملي راډیو ټلویزون سره د ځانګړې مرکې پر مهال وویل:"هیڅاته د مرګ ګواښ نه و، په کابل کې د واک خلا را منځته شوې وه، موږ نه غوښتل چې کابل

---

[۲۶۲] د اکتوبر ۴مه ۲۰۲۱، ملا حمدالله نورزی د کابل قول اردو قومندان اعلان شو، د نومبر ۲مه ۲۰۲۱، د داعش وسلوالو د شهید سردار داوودخان پر پوځي روغتون برید وکړ چې په مخامخ جګړه کې د کابل قول اردو قومندان هم ووژل شو.

ښار ته په زور داخل شو[۲۶۳]، امریکایانو له مو‌ږ وغوښتل چې د کابل ښار د امنیت ساتلو او ګډوډۍ څخه د مخنیوي په خاطر ښار ته داخل شو[۲۶۴].
موږ ته ویل شوې وو چې په همدې ورځ (۱۵ اګست) به د ډاکټر غني استازي (ډاکټر حمدالله محب او فضلي) دوحې ته راځي، هلته به د واک د انتقال پر مسئله خبرې کیږي.

---

[۲۶۳] **په کابل ښار کې د جګړې نه کولو په اړه د اسلامي امارت اعلامیه**
داچې د الله تعالی جل جلاله په نصرت او زموږ د ولس په پراخ ملاتړ الحمدلله د هیواد ټولې برخې د اسلامي امارت تر کنترول لاندې راغلې، زموږ د ولس لپاره خورا ستره بریا ده چې ټولو ته یې مبارکي وایو.
خو د هیواد پلازمینه کابل چون خورا ستر او ګڼ میشتی ښار دی، د اسلامي امارت مجاهدین اراده نه لري چې دې ښار ته په زور او جګړې سره داخل شي، بلکې کابل ښار ته په مسالمت آمیزه توګه د داخلیدو په سر له مقابل جهت سره خبرې اترې روانې دي، ترڅو د انتقال پروسه په باامنه او اطمیناني توګه تکمیل شي، د هیچا سر، مال او عزت ته په کې زیان ونه رسیږي او د کابل ښاریانو ژوند هم له کومې ستونزې او خطر سره مخ نشي.
اسلامي امارت خپلو ټولو ځواکونو ته هدایت کوي چې د کابل په دروازو کې ودریږي، ښارته د ننوتو هڅه ونه کړي.
همدا ډول د انتقال د پروسې تر بشپړیدو پورې د کابل ښار امنیت مقابل لوري ته راجع دی چې باید ویې ساتي.
ورسره یوځل بیا تکراروو چې اسلامي امارت له هیچا څخه د انتقام اخیستلو په فکرکې نه دی، هغه کسانو چې د کابل په اداره کې په نظامي او ملکي برخو کې دندې درلودې ټولو ته عفوه او امن دی، له هیچا سره هم انتقامي برخورد نه کیږي، ټول دې پخپل هیواد کې، پرخپل ځای او کور کې پاتې شي او له هیواد څخه د وتلو هڅه دې ونه کړي.
موږ غواړو چې په راتلونکي اسلامي نظام کې ټول افغانان، بیلابیل جهتونه او قشرونه ځان وګوري یو داسې بامسئولیته حکومت ولرو چې د ټولو لپاره خدمتګار او د منلو وړ وي. ان شاءالله
د افغانستان اسلامي امارت
۲۰۲۱/۸/۱۵

استاد عبدالرب رسول سیاف له خپلې کورنۍ سره د اګسټ پر ۱۵مه هند ته ولاړ، استاد خلیلي، استاد محقق، صلاح الدین رباني او ګڼ شمیر سیاسي مشران وار له مخه پاکستان او ځینې یې ترکیې او ایران ته تللي و.

امرالله صالح تر ډاکټر غني مخکې له کابله وتلی و، سرور دانش، حنیف اتمر او ځینې نور د اګسټ پر ۱۵مه د کابل هوایې ډګر ته رسیدلي وو چې هلته له اوږد انتظار وروسته د امریکایې پوځیانو په مټ ترکیې ته ورسیدل.

---

[264] **کابل ښار ته د مجاهدینو د داخلیدو د اړتیا په اړه د اسلامي امارت اعلامیه**
اسلامي امارت سهار یوه اعلامیه خپره کړه چې په کې راغلي وو، زموږ ځواکونه له کابل څخه د باندې دي او موږ نه غواړو له نظامي لارې کابل ته داخل شو.
خو اوس راپورونه رارسیږي چې د کابل په ښار کې حوزې تخلیه شوې دي، پولیسو د امنیت ساتلو دنده پریښې ده، همدا ډول وزارت خانې هم تخلیه شوې دي او د کابل اداري امنیتي کسان تښتیدلي دي.
نو د دې لپاره چې خدای مه کړه په کابل کې عام چور او تالان ګډ نشي، سوء استفاده کونکي افراد خلکوته ضرر او صدمه ونه رسوي، اسلامي امارت خپلو ځواکونوته امر وکړ چې د کابل هغو ساحوته داخل شي له کومو څخه چې دښمن تللی او سیمې د چور او تالان له خطر سره مخ دي.
بناء د کابل ښاریان دې له مجاهدینو څخه هیڅ ویره نه محسوسوي، زموږ ځواکونه به په ډیر آرام سره د کابل ښار ته داخلیږي، له هیچا سره کار نه لري، حکومتي نظامي او ملکي کارونکي دې ډاډه اوسي چې هیڅوک په هغوی کارنه لري، هیڅ مجاهد ته اجازه نشته چې د چا کورته داخل شي، یا څوک وځوروي او یا د چا د آزار او اذیت سبب شي.
د افغانستان اسلامي امارت
۲۰۲۱/۸/۱۵

## د نوي اسلامي حکومت کابينه

ډير ژر د طالبانو مشر شيخ هبة الله اخوندزاده صاحب کندهار ته را ورسيد، هلته يې طالب مشران وغوښتل، د اګسټ پر ۲۸مه تر ۳۰مې، درې ورځې د رهبري شورا غونډه وه. د طالبانو د وياند له خولې په ياده غونډه کې: "د هيواد په روانو سياسي، امنيتي او اجتماعي چارو هر اړخيزي خبري شوې وي، د امنيتي وضعيت د لاښه والي، اداري نظم، شفافيت، د بيت المال د اجناسو او تاسيساتو د حفاظت، له ولس سره د ښه چلند او هغوی ته د سهولتونو د برابرولو په اړه يو لړ تصميمونه ونيول شول، همدارنګه په هيواد کي د نوي اسلامي حکومت د جوړيدو او کابينې په اړه لازمي مشورې وشوې، د غونډې په پای کي د اسلامي امارت محترم مشر د شوری غړو ته هر اړخيزي لارښووني وکړې او ټول يې خپلو مسئوليتونو ته متوجه کړل".
په درې ورځنی غونډه کې د بېلابېلو پريکړو تر څنګ د افغانستان د نوي حکومت د سرپرستې کابينې په اړه هم بحث شوی و.
د سپټمبر ۷مه ۲۰۲۱، د نوي حکومت وياند ذبيح الله مجاهد د سرپرستې کابينې د مشر او ګڼ شمير غړو اعلان د رسنيو مخ کې وکړ.
دارنګه د کابينې د نورو غړو اعلان د سپټمبر پر ۲۱مه او له هغه وروسته هم ځينې ټاکنې وشوې.
د نوي اسلامي حکومت کابينه په لاندي ډول ده:
ملا محمد حسن اخوند سرپرست رئيس الوزرا
ملا عبدالغني برادر، مولوي عبدالسلام حنفي او مولوي عبدالکبير د رياست الوزراء اقتصادي، اداري او سياسي مرستيالان.
مولوي عبدالحکيم حقاني د سترې محکمې سرپرست
ملا محمد يعقوب مجاهد د دفاع وزارت سرپرست
الحاج سراج الدين حقاني د کورنيو چارو وزارت سرپرست
مولوي امير خان متقي د بهرنيو چارو وزارت سرپرست
ملا عبدالحق وثيق د استخباراتو عمومي رياست سرپرست
ملا هدايت الله بدري د ماليې وزارت سرپرست

مولوي نورالله منير د معارف وزارت سرپرست
مولوي عبدالحکيم شرعي د عدليې وزارت سرپرست.
ملا خيرالله خير خواه د اطلاعاتو او کلتور وزارت سرپرست
قاري دين حنيف د اقتصاد وزارت سرپرست
مولوي نور محمد ثاقب د حج او اوقافو وزارت سرپرست
ملا نورالله نوري د سرحدونو او قبايلو چارو وزارت سرپرست
ملا محمد يونس اخوند زاده د کليو ودې او پراختيا وزارت سرپرست
شيخ محمد خالد د دعوت او ارشاد، امر بالمعروف او نهی عن المنکر وزارت سرپرست
ملا عبدالمنان عمري د ټولګټو وزارت سرپرست
ملا محمد عيسي اخوند د معادن او پټروليم وزارت سرپرست[265].
ملا عبداللطيف منصور د اوبو او برېښنا وزارت سرپرست
ملا حميدالله اخوند زاده د هوايي چلند او ټرانسپورټ وزارت سرپرست
مولوي عبدالباقي حقاني د لوړو زدکړو وزارت سرپرست
مولوي نجيب الله حقاني د مخابراتو وزارت سرپرست
حاجي خليل الرحمان حقاني د کډوالو چارو وزارت
حاجي نورالدين عزيزي د سوداګرۍ وزارت سرپرست
ډاکتر قلندر عباد د روغتيا وزارت سرپرست.
ملا محمد عباس اخوند د ضدحوادث وزارت سرپرست
څارنوال عبدالولي د کار او ټولنيزو چارو وزارت سرپرست
مولوي حمدالله نعماني د ښار جوړولو او ځمکو وزرات سرپرست
ډاکتر محمد فقير د احصائې د مرکزي ادارې سرپرست
ملا عبدالمجيد اخوند د شهيدانو او معلولينو چارو وزارت سرپرست
حاجي عبدالقاهر ادريس د افغانستان بانک سرپرست
ډاکټر محمد فقير د احصايې د مرکزي ادارې سرپرست
مولوي احمد جان احمدي د اداره امور سرپرست
مولوي عبدالرشيد د کابل ښاروال

[265] د نومبر ۲۳مه ۲۰۲۱، مولوي شهاب الدين دلاور د معادن او پټروليم سرپرست وزير شو.

## د لیکوال پېژندنه

نظر محمد مطمئن د جوم سرمست زوی په۱۹۷۳زېږدیز کال کی د هلمند ولایت د نادعلي ولسوالۍ په زرغون کې کلي سترگې رڼې کړي.

**زده کړې**

دولسم ټولگی یې په پېښور کې د سید جمال الدین افغان په عالي لیسه کې پای ته رسولي. په ۱۳۷۷لمریز کال کې د کابل پوهنتون د سیول انجنیري په څانگه کی خپلي لوړي زده کړي بشپړي کړي .

د افغان پوهنتون د شرعیاتو څانگې د فقهې او قانون۱۳۹۳ تر ۱۳۹۶ ل کال) څخه فارغ، اوسمهال دعوت پوهنتون کې په فقه او قانون کې د ماسټري وروستي کال زده کړي کوي.

**څیرمه دندي**

په ۱۳۷۵ل. کال د ننگرهار ولایت د راډیو او تلویزیون رئیس، په ۱۳۷۶ کې په کابل کې د عامه کتابتون او ملي آرشیف د لوی ریاست مرستیال او د کتاب مجلې مسؤل مدیر، په۱۳۸۷ کي دبیهقي کتابتون رئېس، په ۱۳۷۹ کې د هلمند ولایت اطلاعات او کلتور رئیس . په ۱۳۸۰ کې یې له بهرنیو نړیوالو مؤسیسو او د ښوونځیو او کوچنیو روغتونو جوړولو نړیوالو ادارو سره کار پیل کړ او د ۱۳۸۴ تر ۱۳۸۸ کال پوري یې د ملگرو ملتونو د ساختماني پروژو د تطبیق (یو ان او پي ایس ) دفتر سره په کندهار او کابل کې د مشر انجنیر په صفت دنده درلودله.

**د سولې هڅې**

په کابل کې د اوسیدو پرمهال د بېلابېلو سیاسي او اصلاحي ټولنو سره یې ناستې درلودلي، په هیواد کې د ریښتونې سولې اړوند یې هلې ځلې پیل کړي او د سولې اړوند په ځینو کورنیو او نړیوالو کنفرانسونو کې یې گډون کړی، چې یو له ډیرو مهمو کنفرانسونو څخه د جاپان د کیو ټیو ښار د دوشیشاپوهنتون کې په ۲۰۱۲ ز. کال کې هغه کنفرانس چې د طالبانو استازو، د اسلامي حزب (حکمتیار) استازي هم گډون کړی ؤ، له دي مخکې په ۲۰۱۱ کې هم په نوموړي پوهنتون کې د سولې

اړوند کنفرانس کې شرکت کړی ؤ. په ۲۰۱۰ کې د ترکیې په استانبول ښار کې په نړیوال اسلامي کانفرانس او په ۲۰۱۴ کې د پاکستان په اسلام آباد کې د سولې اړوند نړیوال کانفرانس کې یې شرکت درلود. د افغانستان اړوند مسایلو له پاره یې د پولنډ هیواد وارسا او کاراکوب ښارونو، اندونیزیا، قطر، متحده عرب اماراتو او ازبیکستان کې هم په ځینو مهمو ناستو کې ګډون کړی.

د افغانانو لومړي خپلمنځي ناسته چې ماسکو کې وشوه، مطمئن یې هم ګډونوال و.

**لیکلي چاپ آثار**

۱. طالب مشرانو سره شپږورځې
۲. د ګوانتانامو ۳ بندیان
۳. طالبان په جاپان او موږ په وارسا کې
٤. د امریکا او طالبانو د سولې تړون
۵. د قطر بین الافغاني غونډه او د سولې مشورتي لویه جرګه
٦. د ماسکو لومړۍ او دوېمه بین الافغاني غونډې
۷. د سولې ناستې (له افغان سیاستوالو او چارواکو سره)
۸. د سولې ناستې (له ناټو او بهرنیانو سره)
۹. د مجاهدینو خپلمنځي جګړې
۱۰. د ملي امنیت زندان

**لیکلي ناچاپه آثار**

۱۱. اندونیزیا کې د علماوو غونډه
۱۲. قطر کې له طالبانو سره ناستې
۱۳. له استاد سیاف او حکمتیار سره ناستې